# اِصلاحي مُدَلَّل تقريرونه

دریم جلد

دَقرآن کریم. نبوی احادیثو او دامت داسلافو دقیمتی اقوالو اصلاحی نصیحتونو، عِلمی لطائِفو او دعِبرت
ډک زړه راښکونکو مُعتمدو واقعاتو په رڼا کی۔ دمعاشری دإصلاح. خوف خدا، دحقوق اللّٰه او حقوق العباد
اهمیت او د دارینو دسعادت او نیک بختئ په باره کی. دعلماو. طلباو. مقررینو او عامو مسلمانانو دپاره
یوه مفصله معتمده علمی او تحقیقی ذَخِیره:


تالیف
أبُو الشَّمس مولانا نُور الهُدیٰ عفی عنه
مدرس دار العلوم فیض القرآن اکاخیل کالونی کاټلنګ روډ مردان



مکتبهٔ عزازیه محله جنګی پشاور
زیر اهتمام
کفایت الله ارمانی
0344-9995990
076495773

دَ قرآن کریم، نبوي احادیثو او د امت د اَسلافو د قیمتي اقوالو، اِصلاحي نصیحتونو، عِلمي لطائِفو او د عِبرت نه ډَک زړه راښکونکو مُعتمدو واقعاتو په رڼا کې. د معاشرې د اِصلاح، خَوفِ خُدا، د حقوق الله او حقوق العبادو اَهمیت اود دارینو د سَعادت او نیک بختئ په باره کې. د علماو، طلباو، مُقرّرینو او عامو مسلمانانو د پاره یوه مفصّله مُعتَمَده عِلمي او تحقیقي ذَخیره:

# اِصْلَاحِيْ مُدَلَّلْ تَقْرِیْرُوْنه

جلد ۳

تالیف

آبُوالشَّمْس مولانا نُوْرُالْهُدٰی عُفِيَ عَنْهُ

مُدَرِّس دَارُالعلوم فیضُ القُرآن اکاخیل کالونی، مردان

بِسۡمِ اللهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

**د کتاب نوم** اِصۡلَاحِيۡ مُدَلَّلۡ تَقۡرِيۡرُوۡنه جلد ۳


**مؤلف** اَبُوالشَّمۡس مولانا نُوۡرُالۡهُدٰی عُفِيَ عَنۡهُ

مُدَرِّس دَارُالعلوم فیضُ القُرآن اکاخیل کالونی مردان

فون نمبر ۰۳۰۶ ۵۴۴۷۱۷۴



**کمپوزر** مؤلف پخپله

**د چاپ کال** ۱۴۳۶هـ ق ، ۱۳۹۳هـ ش، مطابق ۲۰۱۵ ء








زیر اهتمام

کفایت الله ارماني

۰۳۴۴-۹۹۹۵۹۹۰

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

# اجمالي فهرست

| نمبر شمار | موضوع | صفحه |
|---|---|---|

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

# تفصيلي فهرست

| نمبرشمار | موضوع | صفحه |
|---|---|---|

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

# سریزه ( د دریم جلد )

اَلْحَمْدُ لله وَكَفٰى، وَسَلَامٌ عَلٰى عِبَادِهِ الَّذِيْنَ اصْطَفٰى . اَمَّابَعْد !

ددې کتاب ( اِصْلَاحِيْ مُدَلَّلْ تَقْرِيْرُوْنَه ) متعلق تفصيلي خبر. د اول جلد په سریزه کې بیان شوی، دلته صرف د ''تَحْدِيْثِ بِالنِّعْمَة'' په طور دا خبره کوم چې کله ما ددې کتاب دویم جلد. ولیکل نو د هغې په سریزه کې مې دا وعده کړې وه چې '' انشاء الله په همدې انداز به دریم (۳) جلد هم لیکم'' بیا کله چې هغه دویم (۲) جلد چاپ شو نو الله رب العزت د اول جلد په شان هغې ته هم په عِلمي میدان کې داسې مقبولیت ورپه برخه کړو چې د علماؤ ،طلباؤ ، خطیبانو او عامو مسلمانانو د پاره د اِستفادې وَړ اُوګرځیده ، او د هر ممبرو محراب د زِینت سبب جوړ شو .

د کله نه چې دویم جلد چاپ شوی نو د هماغې ورځې نه راپه دیخوا داسې ورځ نده تیره شوی چې په هغې کې د پاکستان او افغانستان دمختلفو علاقو نه اهلِ عِلمو د ټیلفون په ذریعه د دریم جلد د چاپ کیدو پوښتنه نه وي کړي ، بلکه په هره ورځ د کتاب د اِفادیت او د دریم جلد د چاپ کیدو په باره کې بې شماره ټیلفونې کیږي چې په دې سره به زما حوصله اَفزایي هم کیده .

اګر چې ماته د دَرسي مصروفیاتو په وجه فارغه وخت ډیر نه ملاویږي، خو بیا هم کله چې ما ددې اهلِ عِلمو دا نه ختمیدونکې شوق ، اِصرار او مَحبت ددې کتاب سره اوکته نو زه په دې مجبوره شوم چې د دوی عِلمي تَنده ماته کړم ، او دریم (۳) جلد هم ولیکم.

لهذا د مدرسې په سالانه رُخصتی کې مې یو ځل بیا خپل عِلمي صلاحیت په کار واچول او د دریم جلد په لیکلو مې شروع وکړه .

د الله ﷻ د خصوصي فضل و اِحسان ، د والدینو او استاذانو د دُعاؤ په برکت، او د څو میاشتو مسلسل شب و رُوز د محنت په نتنجه کې مې داسې قیمتي ملغلرې

د تالیف په تار کې اُوپائللی چې په لوستو او اَوریدو سره یې عِلمي تَنده ماتیږي ، د معاشرې د اِصلاح ، او د دارینو د سعادت او نیک بَختیا ذریعه گرځي .

دا یقیني خبره ده چې لکه څرنګ چې مې د مخکیني جلدونو په لیکلو کې ډیره خواري او محنت کړې وُ نو دغه شان ددې دریم جلد په لیکلو کې مې هم پوره خواري او محنت کړی .

بلکه چې کله ما د علماؤ ، طلباؤ ، خطیبانو او عامو دینداره مسلمانانو بې اَندازې مینه ددې کتاب سره ولیده نو زما په شوق کې نوره اِضافه هم اوشوه ، او نور هم دې مسئولیت طرف ته متوجه شوم .

لهذا په ډیر اِحتیاط مې د قرآن کریم ، احادیثو ، د اسلافو د قیمتي اَقوالو ، اِصلاحي نصیحتونو ، عِلمي لطائفو ، فِقهي مسائلو او د عبرت نه ډک زړه راښکونکو معتمدو واقعاتو نه مې داسې بهترینه عِلمي ذخیره تیاره کړه چې په اَوریدو او کتو یې د انسان سترګې یَخیږي ، عِلمي تَنده پرې ماتیږي ، د انسان په زړه کې د الله ﷻ نه ویره پیدا کیږي ، د حقوق الله او حقوق العبادو اَهمیت ورسره پیدا کیږي ، او د دواړو جهانو کامیابي ورته نصیبه کیږي .

الله رب العزت دې ددې عاجز بنده دا خدمت په خپل دربار کې قبول کړي ، او د خپلې رَضا ذریعه دې وګرځوي ، زما او زما د والدینو ، اُستاذانو او ټول امتِ مُسلمه د پاره دې د مغفرت او نجات ذریعه وګرځوي . او الله ﷻ دې یقیني دا کتاب د معاشرې د اِصلاح ، او د مسلمانانو د دواړو جهانو د فلاح او کامیابۍ ذریعه وګرځوي . آمِیْن یَارَبَّ الْعَالَمِیْن .

**خوشخبري** : ډیرو ملګرو او علماؤ راته دا مشوره راکړی که په همدې اَنداز باندې د تقریرونو دا سلسله جاري اوساتلې شي ، او په اَهمو موضوع ګانو باندې دغه شان لیکل اوشي نو فایده به یې ډیره زیاته وي .

لهذا زه يو ځل بيا اَهلِ عِلمو ، خطيبانو او ددې كتاب مينه والو ته دا خوشخبري اَوروم چې اِن شاء الله په همدغه انداز باندې به بل جلد هم ليكم چې هغه به هم په نزدې وخت كې چاپ شي .

خو هغه به په دې نوم باندې نه وي ، بلكه آينده راتلونكي جلدونه به په بل نوم وي، شائقين حضرات بيا د ټيليفون په ذريعه معلومات تر لاسه كولې شي .

رَبَّنَا تَقَبَّلْ مِنَّا اِنَّكَ اَنْتَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ .

اِنْ اُرِيْدُ اِلَّا الْاِصْلَاحَ مَا اسْتَطَعْتُ وَمَا تَوْفِيْقِيْ اِلَّا بِاللهِ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَاِلَيْهِ اُنِيْبُ

وَصَلَّى اللهُ تَعَالٰى عَلٰى خَيْرِ خَلْقِهٖ مُحَمَّدٍ وَّآلِهٖ وَاَصْحَابِهٖ اَجْمَعِيْن

ابوالشمس نورالهدیٰ عفی عنه

**نوټ** : كه د كتاب متعلق يا بله څه مفيده مشوره وي نو په دې نمبر رابطه كولې شئ .

موبائل نمبر : ۰۳۰۶ ۵۴۴۷۱۷۴

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

﴿ وَأَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ وَارْكَعُوْا مَعَ الرَّاكِعِيْنَ ﴾ البقرة آیت ۴۳ .

# د زكوٰة اَهميت ، فضيلت او اَحكام

تَاليف :

اَبُوالشَّمْس مولانا نُوْرُالْهُدٰى عُفِيَ عَنْهُ

مُدَرِّس دَارُالعلوم فيضُ القُرآن اكاخيل كالونى، مردان

بِسۡمِ اللهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

# د زکوة اهميت، فضيلت او احکام :

اَلۡحَمۡدُ للهِ نَحۡمَدُهٗ وَنَسۡتَعِيۡنُهٗ وَنَسۡتَغۡفِرُهٗ وَنُؤۡمِنُ بِهٖ وَنَتَوَكَّلُ عَلَيۡه. وَنَعُوۡذُ بِاللهِ مِنۡ شُرُوۡرِ اَنۡفُسِنَا وَمِنۡ سَيِّئَاتِ اَعۡمَالِنَا مَنۡ يَّهۡدِهِ اللهُ فَلَا مُضِلَّ لَهٗ وَمَنۡ يُّضۡلِلۡهُ فَلَا هَادِيَ له. وَنَشۡهَدُ اَنۡ لَّآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ وَحۡدَهٗ لَا شَرِيۡکَ لَهٗ وَنَشۡهَدُ اَنَّ سَيِّدَنَا وَنَبِيَّنَا وَمَوۡلَانَا مُحَمَّدًا عَبۡدُهٗ وَرَسُوۡلُه.

اَمَّا بَعۡدُ فَأَعُوۡذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيۡطٰنِ الرَّجِيۡمِ بِسۡمِ اللهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ. قَالَ اللهُ تَبَارَکَ وَتَعَالٰى فِي الۡقُرۡآنِ الۡمَجِيۡدِ وَالۡفُرۡقَانِ الۡحَمِيۡدِ:

﴿وَاَقِيۡمُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ وَارۡكَعُوۡا مَعَ الرّٰكِعِيۡنَ﴾. (۱)

و قَالَ فِيۡ مَوۡضِعٍ اٰخَر: ﴿وَرَحۡمَتِيۡ وَسِعَتۡ كُلَّ شَيۡءٍ فَسَاَكۡتُبُهَا لِلَّذِيۡنَ يَتَّقُوۡنَ وَيُؤۡتُوۡنَ الزَّكٰوةَ وَالَّذِيۡنَ هُمۡ بِاٰيٰتِنَا يُؤۡمِنُوۡنَ﴾. (۲)

وَقَالَ النَّبِيُّ ﷺ: بُنِيَ الۡإِسۡلَامُ عَلٰى خَمۡسٍ شَهَادَةِ أَنۡ لَّآ إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا عَبۡدُهٗ وَرَسُوۡلُهٗ، وَإِقَامِ الصَّلٰوةِ وَإِيۡتَاءِ الزَّكٰوةِ وَحَجِّ الۡبَيۡتِ وَصَوۡمِ رَمَضَانَ. (۳)

صَدَقَ اللهُ الۡعَظِيۡم.

## دزکوة اهميت

زما خوږو قدرمنو او عزت مندو مسلمانانو ورونو! د اسلام په بنيادي او اَهمو اَرکانو کې دريم رُکن د زکوة دی، دغه وجه ده چې په قرآن کريم کې دوه ديرش (۳۲) ځايه د لمانځه سره يو ځای د زکوة حکم راغلی (۴)

---

(۱) البقرة آيت ۴۳.

(۲) الاعراف آيت ۱۵۶.

(۳) اخرجه البخاري في الزکاة/۳۴ (۱۳۱۵) ومسلم في الايمان/ ۴، الترغيب والترهيب ۱۸/ ۵۱۶.

(۴) په بعضې کتابونو کې د دوه ديرش (۳۲) په ځای دوه اتيا (۸۲) عدد ذکر دی خو دا صحيح نه معلوميږي ځکه د علماو تحقيق دادی چې په قرآن کريم کې د لمونځ سره د زکوة ذکر دوه ديرش ځايه راغلی.

او د دې نه علاوه ځان له هم په ډيرو ځايونو کې د زکوة ذکر راغلی ، چې د دې نه د زکوة اَهميت ، عظمت او تاکيد معلوميږي ، دغه شان په ګڼو احاديثو کې د زکوة اهميت او فوايد بيان شوي . وجه داده چې لکه څرنګ چې لمونځ په عباداتِ بدنيو کې لوي عبادت دی نو دغه شان زکوة هم په عباداتِ ماليهؤ کې لوي مالي عبادت دی .

## د زکوة لغوي معنی

اول درته د زکوة لغوي او شرعي معنی بيانوم چې زکوة چاته وايي ؟ نو زکوة په لغت کې طِهارت ، برکت او زياتيدو ته وايي .(۱)

## د زکوة شرعي ( اِصطلاحي ) معنی

زکوة په اصطلاح کې عبارت دی د ''إِيْجَابُ طَائِفَةٍ مِّنَ الْمَالِ فِيْ مَالٍ مَخْصُوْصٍ لِمَالِكٍ مَخْصُوْصٍ .(۲)

د يو مخصوص مالک (صاحبِ نصاب) په مخصوص مال (مالِ نامي) کې مخصوصه حصه واجبيدل کومه چې شريعت مقرر کړې .

---

(۱) هي لغة الطّهارةُ والنَّماءُ اى الزِّيادةُ . ولها معان أخر : اَلبركة ... والمدح ... والثناء الجميل .. وكلّها توجد فى المعنى الشرعي . فتح الملهم لمولانا شبير احمد عثماني رحمه الله ج۵ ص ۵ كتاب الزكوة ./ په نضرة النعيم کې ليکي : أصلُ المادَّةِ يَدُلّ على الزِّيادةِ وَالنَّماءِ . يقولُ ابنُ فارسٍ : اَلزَّايُ وَالْكافُ وَالحرفُ الْمُعْتَلُّ أَصْلٌ يدلُّ على نَماءٍ و زِيادةٍ . نضرة النعيم في مكارم اخلاق الرسول الكريم صلى الله عليه وسلم ج ٦ ص ۲۱۹۷ الزكاة ./ بعضې علماء وايي : اَلزكوةُ لغةً النُّمُوُّ والزِّيادةُ . وشَرْعًا : تَمْلِيكُ جُزْء مالٍ مَخصوصٍ مِن مالٍ مخصوصٍ لِشخصٍ مخصوصٍ عَيَّنهُ الشَّارِعُ لِوَجه الله تعالى . فقه اسلامي ج۲ ص ۷۲۹ .

(۲) التعريفات (۱۱۴)، نضرة النعيم ج ٦ ص ۲۱۹۷ الزكاة . بعضې علماء د زکوة داسې تعريف کوي : اَلزَّكاةُ : إِسمٌ لِأَخذِ شَيْءٍ مَخصوصٍ مِن مالٍ مَخصوصٍ عَلى أَوصافٍ مَخصوصةٍ لِطائفةٍ مخصوصةٍ . المجموع شرح المهذب ۵/ ۳۲۵ ، نضرة النعيم ج ٦ ص ۲۱۹۷ الزكاة ./ او چا د زکوة داسې تعريف کړی : اَلزَّكاةُ شَرعًا على رَأيِ الحَنفيّةِ : تَمْلِيكُ جُزْء مالٍ عَيَّنهُ الشَّارِعُ مِن مسلمٍ فقيرٍ غَيرِ هاشمِيٍ ولا مَوْلَاهُ مَعَ قَطعِ المَنفَعَةِ عَنِ المُمَلِّكِ من كلّ وجهٍ لِلّهِ تَعالى . كما فى الدر المختار ، فتح الملهم ج۵ ص ۵ .

# دزکوة حکم

په قرآن کريم او احاديثو کې ځای په ځای د زکوة اداکولو حکم بيان شوی او د دې اجر بيان شوی .

۱ . الله تعالی فرمايي :

﴿ إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ وَأَقَامُوا الصَّلٰوةَ وَآتَوُا الزَّكٰوةَ لَهُمْ أَجْرُهُمْ عِنْدَ رَبِّهِمْ وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ﴾ . (۱)

ترجمه : بيشکه کومو خلقو چې ايمان راوړو ، نيک عملونه يې وکړه ، لمونځ يې قائم کړو او زکوة يې ورکړو نو ه‌دوی د پاره اجر دی (د دې کارونو په عوض کې) د خپل رب سره او (په آخرت کې به) په دوی هيڅ ويره نه وي ، او نه به (د څه شي په پاتې کيدو) غمجن وي.

۲ . بل ځای الله رب العزت فرمايي :

﴿ وَأَقِيمُوا الصَّلٰوةَ وَآتُوا الزَّكٰوةَ وَارْكَعُوا مَعَ الرَّاكِعِينَ ﴾ . (۲)

ترجمه : او تاسو لمونځ کوئ ، زکوة ورکوئ او رکوع کوئ د رکوع کوونکو سره (يعنی د جمعې سره لمونځ کوئ) .

۳ . د سورة حج په آخر کې الله تعالی په مومنانو باند د احسان د تذکرې نه روستو فرمايي

﴿ فَأَقِيمُوا الصَّلٰوةَ وَآتُوا الزَّكٰوةَ وَاعْتَصِمُوا بِاللهِ هُوَ مَوْلَاكُمْ فَنِعْمَ الْمَوْلٰى وَنِعْمَ النَّصِيرُ ﴾ . (۳)

ترجمه : پس تاسو لمونځ قائموئ ، زکوة ورکوئ ، او (د) الله تعالی (حکمونه) مضبوط اونيسئ ، هم هغه ستاسو کار ساز دی ، پس څومره ښه آقا او څومره ښه مدد ګار دی

۴ . بل ځای الله جل جلاله فرمايي :

﴿ وَأَقِيمُوا الصَّلٰوةَ وَآتُوا الزَّكٰوةَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ ﴾ . (۴)

---

(۱) البقرة آيت ۲۷۷ .

(۲) البقرة آيت ۴۳ .

(۳) الحج آيت ۷۸ .

(۴) النور آيت ۵۶ .

ترجمه : (اې مسلمانانو !) تاسو لمونځ قايموئ، زکوة ورکوئ، او د رسول حکم منئ ددې د پاره چې په تاسو رحم وکړې شي .

## زکوة د اسلام بُنيادي رُکن دی

۱ . زکوة چونکه د اسلام په بُنيادي اَرکانو کې دی، ځکه د اِسلام بُنياد په پنځو (۵) غټو اَرکانو دی کوم چې رسول الله صلی الله عليه وسلم په دې حديثِ مبارکه کې ذکر کړي . نبي عليه السلام فرمايي :

بُنِيَ الْإِسْلَامُ عَلٰى خَمْسٍ شَهَادَةِ أَنْ لَّآ إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ، وَإِقَامِ الصَّلٰوةِ، وَ إِيْتَاءِ الزَّكٰوةِ، وَحَجِّ الْبَيْتِ، وَصَوْمِ رَمَضَانَ . (۱)

د اسلام بُنياد په پنځو شيانو باندې دی (اول) ددې خبرې ګواهي ورکول چې د الله ﷻ نه بغير بل معبود برحق نشته او محمد ﷺ د الله ﷻ بنده او رسول دی، (دويم) لمونځ قائمول، (دريم) زکوة ورکول، (څلورم) د بيت الله شريف حج کول، (پنځم) د رمضان روژې نيول .

۲ . په بل حديث کې ذکر دي چې زکوة د اسلام پُل دی . رسول الله ﷺ فرمايي :

اَلزَّكٰوةُ قَنْطَرَةُ الْإِسْلَامِ . (۲)

زکوة د اسلام مضبوط پُل دی .

يعنی لکه څرنګه چې پُل بل طرفته د رسيدو ذريعه وي نو دغه شان زکوة ورکول هم الله ﷻ ته د رسيدو ذريعه ده .

۳ . په بخاري او مسلم شريف کې ذکر دي چې کله رسول الله ﷺ حضرت معاذ رضي الله عنه يمن ته د والي او عامِل په حيث ليږلو نو د رخصتيدو په وخت يې ورته دا هم وفرمايل :

---

(۱) اخرجه البخاري في الزكاة/ ۳۲ (۱۳۱۵) ومسلم في الايمان/ ۴ ، الترغيب والترهيب ۱۸/ ۵۱۶ .

(۲) رواه الطبراني في الاوسط والكبير ، الترغيب والترهيب كتاب الصدقات ٦/ ۵۱۲ .

إِنَّكَ تَأْتِي قَوْمًا أَهْلَ كِتَابٍ فَادْعُهُمْ إِلَى شَهَادَةِ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللهِ ، فَإِنْ هُمْ أَطَاعُوا لِذٰلِكَ فَأَعْلِمْهُمْ أَنَّ اللهَ قَدْ فَرَضَ عَلَيْهِمْ خَمْسَ صَلَوَاتٍ فِي الْيَوْمِ وَاللَّيْلَةِ فَإِنْ هُمْ أَطَاعُوا لِذٰلِكَ فَأَعْلِمْهُمْ أَنَّ اللهَ قَدْ فَرَضَ عَلَيْهِمْ صَدَقَةً تُؤْخَذُ مِنْ أَغْنِيَائِهِمْ فَتُرَدُّ عَلَى فُقَرَائِهِمْ ... (۱)

ته به داسې يو قوم ته ورځې چې اهلِ کتاب دي نو ( د ټولو نه مخکې ) ته هغوی دې خبرې ته را اُوبله چې دوی ددې خبرې ګواهي ورکړي چې '' نشته دې لايق د عبادت مګر يو الله دی ، او محمد ﷺ د الله ﷻ رسول دی '' ، که چيرته هغوی دا خبره اومنله نو بيا ورته دا اُوښايه چې الله تعالی په دوی باندې په شپه او ورځ کې پنځه لمونځونه فرض کړي دي ، که چيرته هغوی دا هم اومنله نو بيا ورته دا اوښايه چې الله تعالی په دوی باندې صدقه يعنی زکوة فرض کړی چې د دوی د مالدارو نه به اخيستلې شي ، او هم د دوی فقيرانو ته به ورکولې شي .....

۴ . حضرت علقمه ؓ وايي چې زمونږ د صحابه کرامو څه کسان د نبي عليه السلام په خدمت کې حاضر شو ، نو رسول الله ﷺ راته وفرمايل :

إِنَّ تَمَامَ إِسْلَامِكُمْ أَنْ تُؤَدُّوا زَكٰوةَ أَمْوَالِكُمْ . (۲)

بيشکه ستاسو د اسلام تکميل ( او پوره والې ) په دې کې دی چې تاسو د خپلو مالونو نه زکوة اداء کړئ .

**فائده** : د اسلام تکميل په زکوة کې ځکه دی چې زکوة د اسلام په بُنيادي اَرکانو کې داخل دی ، نو چې کله دا رُکن په کې نه وي نو بيا خو د اسلام تکميل نه کيږي .

معلومه شوه چې زکوة د اسلام اهم رُکن او عبادت دی او ددې ډير تاکيد راغلی .

---

(۱) رواه البخاري كتاب الزكاة باب وجوب الزكاة حديث ۱۳۱۲ ، ورواه مسلم .

(۲) رواه الهيثمي في المجمع ۳/ ۶۲ ، المنذري في الترغيب ۱/ ۵۲۰ ، المتجرُ الرّابح في ثواب العمل الصّالح ص ۱۲۸ ابواب الصدقات ثواب اداء الزكاة ./ وفي رواية : مِنْ تَمَامِ إِسْلَامِكُمْ أَنْ تُؤَدُّوا زَكٰوةَ أَمْوَالِكُمْ . المعجم الكبير للطبراني ج۱۸ ص۸ حديث ۶

# زكوة په مخكيني امتونو هم فرض ؤ

زكوة لكه څرنګ چې په دې امتِ محمّدي فرض دی نو همدغه شان په مخكيني امتونو باندې هم د لمانځه سره سره زكوة هم فرض ؤ . (۱)

يو څو نمونې درته د قرآن كريم نه بيانوم :

۱ . په سورة انبياء كې د حضرت ابراهيم ، او د هغه د ځوي حضرت اسحاق ، او د هغه د نمسي حضرت يعقوب د ذكر نه روستو الله تعالى فرمايي :

﴿ وَأَوْحَيْنَآ إِلَيْهِمْ فِعْلَ الْخَيْرَٰتِ وَإِقَامَ الصَّلَوٰةِ وَإِيتَآءَ الزَّكَوٰةِ وَكَانُوا لَنَا عَابِدِينَ ﴾ . (۲)

ترجمه : او مونږ وحي وكړه دوی ته د نيكيو د كولو ، او (خاصكر) د لمونځ قائمولو ، او زكوة وركولو ، او دوی زمونږ عبادت ګزار بندګان وو .

۲ . په سورة مريم كې د حضرت اسماعيل عليه السلام په باره كې ذكر دي :

﴿ وَكَانَ يَأْمُرُ أَهْلَهُ بِالصَّلَوٰةِ وَالزَّكَوٰةِ ... ﴾ . (۳)

ترجمه : او حضرت اسماعيل به د خپل كور خلقو ته د لمانځه او زكوة حكم كولو .

۳ . دغه رنګې حضرت عيسى عليه السلام خپل قوم ته وفرمايل :

﴿ وَأَوْصَانِي بِالصَّلَوٰةِ وَالزَّكَوٰةِ مَا دُمْتُ حَيًّا ﴾ . (۴)

ترجمه : او تر څو پورې چې زه ژوندې يم الله تعالى ماته د لمانځه او زكوة وصيت (حكم) كړی .

۴ . همدغه رنګې كله چې الله د بني اسرائيلو نه د ايمان او نورو احكاماتو عملي كولو كلكه وعده واخيسته نو په هغې احكاماتو كې يې ورته دا هم فرمايلي وو :

(۱) مظاهر حق شرح مشكوة .
(۲) سورة الأنبياء آيت ۷۳ .
(۳) سورة مريم آيت ۵۵ .
(۴) سورة مريم آيت ۳۱ .

﴿ وَأَقِيمُوا الصَّلَوٰةَ وَءَاتُوا الزَّكَوٰةَ ﴾ . (۱)

ترجمه : تاسو لمونځ اداکوئ ، او زکوة ورکوئ .

۵ . په سورة مائده کې ذکر دي چې الله ﷻ بني اسرائيلو ته فرمايلي وو :

﴿ إِنِّي مَعَكُمْ لَئِنْ أَقَمْتُمُ الصَّلَوٰةَ وَءَاتَيْتُمُ الزَّكَوٰةَ وَءَامَنتُم بِرُسُلِي ﴾ . (۲)

ترجمه : بيشکه زه (په اعتبار د مدد سره) د تاسو سره يم که چيرته تاسو لمونځونه قائم کړه ، او زکوة مو اداء کړو .

**فائده** : ددې آيتونو نه معلومه شوه چې زکوة دومره اَهمه فريضه ده چې لکه څرنګ چې دا په دې امت باندې فرض دی نو همدغه شان په مخکيني امتونو باندې هم فرض وُ . (۳)

## په دې اُمت باندې دزکوة د فرضيت وخت

په دې باره کې د علماؤ اختلاف دی چې په دې امت باندې د زکوة فرضيت اول په کوم ځای کې شوی ؟ نو بعضې علماء ددې قايل دي چې د زکوة فرضيت اولاً په مکه معظمه کې شوی، او بعضې وايي چې په مدينه منوره کې په دويمه هجري کې په اول د رمضان المبارک اولاً ددې د فرضيت حکم راغلی .

خو صحيح او د اکثرو علماؤ قول دادی کوم چې امام نووي رحمه الله هم ذکر کړی چې :

د زکوة د فرضيت حکم خو د هجرت نه مخکې په مکه معظمه کې نازل شوی خو تفصيلي احکام يې نه وو نازل شوي ( لکه د سورة مومنون ، سورة نمل او سورة لقمان په ابتدايي آيتونو کې د مومنانو په صفاتو کې د لمانځه او زکوة ذکر راغلی ، حالانکه دا سورتونه په مکه معظمه کې نازل شوي ) .

بيا د هجرت په دويم ( ۲ ) کال په مدينه منوره کې په اول د رمضان المبارک د زکوة تفصيلي احکامات نازل شو . (۴)

---

(۱) البقرة آيت ۸۳ .

(۲) المائدة آيت ۱۲ .

(۳) معارف الحديث ج۴ ص ۳۰۲ .

(۴) مظاهر حق شرح مشکوة ج ۴ ص ۳۰۳ .

يعنی د نصاب مقررول ، د واجب مقدار تفصيل ، د اسلامي حکومت د طرفه د زکوة وصولول ، او په مصرَف باندې د لړولو تفصيلي احکامات په مدينه منوره کې نازل شو . (۱)

## د زكوة فوائد :

قدرمنو ! زکوة يو فرضي عبادت او د الله تعالی حکم دی ، انسان ته که د الله ﷻ په احکاماتو کې څه فوائد په نظر راځي او که نه راځي خو دې به د الله ﷻ حکم په هر حالت مني. خو داد الله ﷻ عظيم فضل و کرم دی چې څوک زکوة ورکوي هغه ته ددې په عوض کې بې شماره اجرونه او فوائد هم ورکوي.

دغه وجه ده چې په قرآن کريم او احاديثو کې د زکوة ورکولو ډير فضايل او فوايد بيان شوي ، خو زه به درته صرف يو څو مشهور فوايد بيان کړم.

## ۱ . د زكوة اداء كولو په وجه د جنت مستحق كيدل

څوک چې زکوة ورکوي نو دا خلق په دُنيا او آخرت دواړو کې کامياب دي ، او د داسې خلقو سره الله ﷻ د جنت وعده کړی.

۱. الله رب العزت فرمايي :

﴿ قَدْ أَفْلَحَ الْمُؤْمِنُوْنَ . الَّذِيْنَ هُمْ فِيْ صَلَاتِهِمْ خَاشِعُوْنَ . وَالَّذِيْنَ هُمْ عَنِ اللَّغْوِ مُعْرِضُوْنَ . وَالَّذِيْنَ هُمْ لِلزَّكٰوةِ فَاعِلُوْنَ ﴾ . (۲)

---

(۱) معارف القرآن سورة لقمان آيت ۴ . علامه شبير احمد عثماني رحمه الله په فتح الملهم کې ليکلي : قَالَ الحافظ : اختلف فِي أوّلِ وقت فرض الزّكوة . فَذَهَبَ الأكثر إلى أنّه وقع بعد الهجرة . فقيل كان في السنة الثانيةِ قبلَ فرضِ رمضان . أشار إليه النّوويُّ رحمه الله في باب السير من " الروضة " ... وَقَال ابنُ كثيرٍ في تفسير الْمُزَّمِّلِ تحت قوله تعالى : ﴿ وَأَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ وَآتُوا الزَّكٰوةَ ﴾ وهذا يَدُلُّ لِمَنْ قال بِأَنَّ فرض الزّكوة نزل بمكّةَ . لكن مقادير النصب والمخرج لم تبيّن إلّا بالمدينة . والله اعلم . فتح الملهم ج ۵ ص ۶،۵ مع اختصار .

(۲) المؤمنون آيت ۱ تا ۴ .

ترجمه : بیشکه کامیابه شو هغه مؤمنان کوم چې په خپل لمانځه کې عاجزي کوونکي دي، او کوم چې د فضول خبرو نه ځان ساتي ، او کوم چې زکوة ورکوونکي دي.

فایده : د سورة مومنون په دې اولو آیتونو کې الله ﷻ دا بیانوي چې په کومو مومنانو کې دا آینده اووه (۷) صفات موجود وي هغوی په دُنیا او آخرت کې کامیابه دي ، په هغې کې یو صفت د زکوة اداء کولو هم دی . بیا ددې صفتونو په آخر کې الله ﷻ وفرمایل :

﴿ أُوْلَئِكَ هُمُ الْوَارِثُونَ . الَّذِينَ يَرِثُونَ الْفِرْدَوْسَ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ ﴾ . (۱)

ترجمه : همدا خلق حقیقي وارثان دي کوم چې به جنت الفردوس په میراث کې اخلي . او دوی به په دې جنت الفردوس کې همیشه وي .

۲ . همدارنګې الله ﷻ د بني اسرائیلو نه هم پخه وعده اخیستې وه ، که چیرته تاسو د لمونځونو پابندي وکړه ، او زکوة مو ورکړو ... نو زما امداد به د تاسو سره وي ، ستاسو ګناهونه به ختم کړم او جنت ته به مو داخل کړم . الله ﷻ ددې خبرې تذکره په قرآن کریم کې داسې کړې :

﴿ وَقَالَ اللهُ إِنِّي مَعَكُمْ لَئِنْ أَقَمْتُمُ الصَّلٰوةَ وَآتَيْتُمُ الزَّكٰوةَ وَآمَنْتُمْ بِرُسُلِي وَعَزَّرْتُمُوهُمْ وَأَقْرَضْتُمُ اللهَ قَرْضًا حَسَنًا لَأُكَفِّرَنَّ عَنْكُمْ سَيِّئَاتِكُمْ وَلَأُدْخِلَنَّكُمْ جَنّٰتٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ ... ﴾ . (۲)

ترجمه : او الله تعالی بني اسرائیلو ته فرمایلي وو : زه د تاسو سره یم که چیرته تاسو لمونځ قائم کړو ، زکوة مو اداء کړو ، زما په پیغمبرانو مو ایمان راوړو ، او (د دشمنانو په مقابله کې) تاسو د هغه مدد وکړو ، او الله تعالی ته مو قرضِ حسَنه ورکړو ، نو زه به ضرور له تاسو نه ستاسو ګناهونه لرې کړم ، او خامخا به تاسو داسې جنتونو ته داخل کړم چې د هغې (د محلونو) لاندې به نهرونه بهیږي .

---

(۱) المؤمنون آیت ۱۰، ۱۱ .

(۲) المائدة آیت ۱۲ .

۳ . د بخاري شريف حديث دی چې رسول الله ﷺ ته يو کس راغی ، او ورته وې ويل :
أَخْبِرْنِي بِعَمَلٍ يُدْخِلُنِي الْجَنَّةَ ؟ ماته داسې يو عمل اُوښايه چې ما جنت ته داخل کړي .
نبي عليه السلام ورته وفرمايل :
تَعْبُدُ اللهَ لَاتُشْرِكُ بِهِ شَيْئًا ، وَتُقِيْمُ الصَّلٰوةَ ، وَتُؤْتِي الزَّكٰوةَ وَتَصِلُ الرَّحِمَ . (۱)
صرف د يو الله ﷻ عبادت کوه ، څوک ورسره په عبادت کې مه شريکوه ، لمونځ اداء کوه، زکوة ورکوه او صله رحمي کوه (نو په دې کارونو کولو سره به جنت ته داخل شې) .
۴ . حضرت ابوهريرة ﷺ وايي چې يو اعرابي (د باندې اوسيدونکې) نبي عليه السلام ته راغی ، او ورته وې ويل :
دُلَّنِيْ عَلَى عَمَلٍ إِذَا عَمِلْتُهُ دَخَلْتُ الْجَنَّةَ ؟
اې د الله ﷻ رسوله ﷺ ! ماته داسې يو عمل اوښايه چې د هغې په کولو سره زه جنت ته داخل شم .
رسول الله ﷺ ورته وفرمايل :
تَعْبُدُ اللهَ لَاتُشْرِكُ بِهِ شَيْئًا ، وَتُقِيْمُ الصَّلٰوةَ الْمَكْتُوْبَةَ ، وَتُؤْتِي الزَّكَاةَ الْمَفْرُوْضَةَ ، وَتَصُوْمُ رَمَضَانَ .
د الله داسې عبادت کوه چې د هغه سره په عبادت کې څوک مه شريکوه ، فرض لمونځ کوه، فرضي زکوة ورکوه ، او د رمضان روژې نيسه .
دې اعرابي چې دا خبره واوريده نو وې ويل : وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهِ لَا أَزِيْدُ عَلَى هٰذَا
زما دې قسم وي په هغه ذات د چا په قبضه کې چې زما ساه ده چې په دې کې به زيادت نه کومه (او نه به د دينه کمې کوم) .
کله چې دا اعرابي د دې مجلس نه لاړو نو رسول الله ﷺ وفرمايل :

(۱) وَعَنْ أَبِيْ أَيُّوْبَ ﷺ : أَنَّ أَعْرَابِيًّا أَتَى النَّبِيَّ ﷺ فَقَالَ : أَخْبِرْنِيْ بِعَمَلٍ يُدْخِلُنِي الْجَنَّةَ ؟ قَالَ : تَعْبُدُ اللهَ لَاتُشْرِكُ بِهِ شَيْئًا ، وَتُقِيْمُ الصَّلٰوةَ ، وَتُؤْتِي الزَّكَاةَ وَتَصِلُ الرَّحِمَ . رواه البخاري في الزكاة /۱ ، ومسلم في الايمان / ۴

مَنْ سَرَّهُ أَنْ يَنْظُرَ إِلَى رَجُلٍ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ فَلْيَنْظُرْ إِلَى هٰذَا . (١)

د چا چې دا خوښه وي چې يو جنتي سړي ته اوګوري نو هغه دې دې اعرابي ته اوګوري .

٥ . حضرت ابو هريره ﷺ وايي چې مونږ ته رسول الله ﷺ خطبه وويله ، او وې فرمايل وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهِ . قسم دې په هغه ذات د چا په قبضه کې چې زما ساه ده .

نبي ﷺ درې (٣) کرته قسم وکړو ، بيا يې سر مبارک ښکته کړو ، په مونږ کې هم هر يو کس سر ښکته کړو او ژړل يې ، خو هيڅوک په دې نه پوهيده چې رسول الله ﷺ ولې درې کرته قسم وکړو ، بيا رسول الله ﷺ سر مبارک راپورته کړو چې په مخ مبارک يې خوشحالي وه . (صحابه کرام فرمايي چې : ) د رسول الله ﷺ خوشحالي مونږ ته د سرو اُوښانو نه ډيره خوښه وه . نو نبي عليه السلام وفرمايل :

مَا مِنْ عَبْدٍ يُصَلِّي الصَّلَوَاتِ الْخَمْسَ وَيَصُوْمُ رَمَضَانَ . وَيُخْرِجُ الزَّكَاةَ وَيَجْتَنِبُ الْكَبَائِرَ السَّبْعَ إِلَّا فُتِحَتْ لَهُ أَبْوَابُ الْجَنَّةِ . وَقِيْلَ لَهُ ادْخُلْ بِسَلَامٍ . (٢)

---

(١) عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ ﷺ أَنَّ أَعْرَابِيًّا أَتَى النَّبِيَّ ﷺ فَقَالَ : يَارَسُوْلَ اللهِ ! دُلَّنِي عَلَى عَمَلٍ إِذَا عَمِلْتُهُ دَخَلْتُ الْجَنَّةَ ؟ قَالَ : تَعْبُدُ اللهَ لَاتُشْرِكُ بِهِ شَيْئًا ، وَتُقِيْمُ الصَّلوةَ الْمَكْتُوْبَةَ ، وَتُؤْتِي الزَّكَاةَ الْمَفْرُوْضَةَ ، وَتَصُوْمُ رَمَضَانَ . قَالَ : وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهِ لَا أَزِيْدُ عَلَى هٰذَا . فَلَمَّا وَلَّى قَالَ النَّبِيُّ ﷺ : مَنْ سَرَّهُ أَنْ يَنْظُرَ إِلَى رَجُلٍ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ فَلْيَنْظُرْ إِلَى هٰذَا . رواه البخاري فى الزكاة /٣٤ (١٣١٥) ، ومسلم فى الايمان /٤ ، الترغيب والترهيب ١٨ /٥١٦ .

(٢) وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ وَأَبِي سَعِيْدٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَا : خَطَبَنَا رَسُوْلُ اللهِ ﷺ فَقَالَ : وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهِ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ . ثُمَّ أَكَبَّ . فَأَكَبَّ كُلُّ رَجُلٍ مِنَّا يَبْكِيْ لَايَدْرِيْ عَلَى مَاذَا حَلَفَ . ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهُ . وَفِيْ وَجْهِهِ الْبُشْرٰى . وَكَانَتْ أَحَبَّ إِلَيْنَا مِنْ حُمْرِ النَّعَمِ . قَالَ : مَا مِنْ عَبْدٍ يُصَلِّي الصَّلَوَاتِ الْخَمْسَ وَيَصُوْمُ رَمَضَانَ . وَيُخْرِجُ الزَّكَاةَ وَيَجْتَنِبُ الْكَبَائِرَ السَّبْعَ إِلَّا فُتِحَتْ لَهُ أَبْوَابُ الْجَنَّةِ . وَقِيْلَ لَهُ ادْخُلْ بِسَلَامٍ . رواه النسائي فى الزكاة ٢ واللفظ له ، وابن ماجه وابن خزيمة وابن حبان والحاكم وقال صحيح الاسناد ، الترغيب والترهيب ١ /٥٢٨ ، السنن الكبرى للنسائي ج٣ ص ٦ حديث ٢٢٣٠ . وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ ﷺ قَالَ : قُلْتُ : يَارَسُوْلَ اللهِ ! أَخْبِرْنِيْ بِعَمَلٍ يُدْخِلُنِي الْجَنَّةَ وَيُبَاعِدُنِيْ مِنَ النَّارِ . قَالَ : لَقَدْ سَأَلْتَ عَنْ عَظِيْمٍ وَإِنَّهُ لَيَسِيْرٌ عَلَى مَنْ يَسَّرَهُ اللهُ (تَعَالَى) عَلَيْهِ . تَعْبُدُ اللهَ وَلَاتُشْرِكُ بِهِ (شَيْئًا) وَتُقِيْمُ الصَّلوةَ وَتُؤْتِي الزَّكَاةَ وَتَصُوْمُ رَمَضَانَ وَتَحُجُّ الْبَيْتَ . رواه احمد ٥/٢٣١ ، ٢٣٧ ، والترمذي وصححه ، والنسائي وابن ماجه ، والمنذري فى الترغيب ١ /٥١٧ ، ٣/ ٥٢٨ .

کوم بنده چې د پنځو لمونځونو اهتمام کوي، د رمضان روژې نيسي، زکوة اداء کوي، او د اووه (۷) لويو ګناهونو نه ځان ساتي، نو دده د پاره به د جنت دروازې پرانيستلې شي، او ده ته به وويلې شي چې " ته په سلامتيا سره جنت ته داخل شه ".

٦. حضرت ابوهريرة ﷺ فرمايي چې د رسول الله ﷺ سره کوم صحابه کرام ناست وو نو هغوی ته يې وفرمايل:

أُكْفُلُوْا لِيْ بِسِتٍّ أَكْفُلْ لَكُمْ بِالْجَنَّةِ.

تاسو ما ته د شپږو (٦) شيانو ضمانت راکړئ (چې دديې حفاظت به کوئ) نو زه به تاسو ته د جنت ضمانت درکړم.

حضرت ابوهريره ﷺ وايي چې ما ورنه پوښتنه وکړه هغه شپږ شيان کوم دي؟ نو رسول الله ﷺ را ته وفرمايل:

اَلصَّلٰوةُ وَالزَّكَاةُ وَالْأَمَانَةُ وَالْفَرْجُ وَالْبَطْنُ وَاللِّسَانُ. (۱)

لمونځ اداکول، زکوة ورکول، د امانت حفاظت، د شرمګاه حفاظت، د خيټې حفاظت (د حرام خوراک نه)، او د ژبې حفاظت (د دروغو، غيبت، چُغل خورۍ او بُهتان وغيره نه).

٧. په يو بل حديث کې راځي، رسول الله ﷺ فرمايي:

مَنْ أَقَامَ الصَّلٰوةَ وَأَتَى الزَّكَاةَ وَحَجَّ الْبَيْتَ وَصَامَ رَمَضَانَ وَقَرَى الضَّيْفَ دَخَلَ الْجَنَّةَ. (۲)

---

(۱) عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ ﷺ عَنْ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ أَنَّهُ قَالَ لِمَنْ حَوْلَهُ (مِنْ أُمَّتِهِ): اُكْفُلُوْا لِيْ بِسِتٍّ أَكْفُلْ لَكُمْ بِالْجَنَّةِ. قُلْتُ مَا هِيَ يَا رَسُوْلَ اللهِ؟ قَالَ: اَلصَّلٰوةُ وَالزَّكَاةُ وَالْأَمَانَةُ وَالْفَرْجُ وَالْبَطْنُ وَاللِّسَانُ. رواه الهيثمي في المجمع ۱ ۲۹۳، ۱۰/ ۳۰۱، والمنذري في الترغيب ۳/۴، وابن كثير في التفسير ۶/۴۴، والسيوطي في الدر المنثور ۱/ ۲۴۶، ۲۹۵، ۱/ ۴۱، المتجر الرابح في ثواب العمل الصالح ص ۱۲۷ ابواب الصدقات ثواب اداء الزكاة.

(۲) رواه المنذري في الترغيب ۱/ ۵۲۶، ۳/ ۳۷۲، والسيوطي في الدر المنثور ۱/ ۲۹۵، والهندي في الكنز ۱۴۴۹، ۴۳۴۷۵، المتجر الرابح في ثواب العمل الصالح ص ۱۲۸ ثواب اداء الزكاة. وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَآءِ ﷺ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: خَمْسٌ مَنْ جَاءَ بِهِنَّ مَعَ إِيْمَانٍ دَخَلَ الْجَنَّةَ مَنْ حَافَظَ عَلَى الصَّلَوَاتِ الْخَمْسِ عَلَى وُضُوْئِهِنَّ وَرُكُوْعِهِنَّ وَسُجُوْدِهِنَّ وَمَوَاقِيْتِهِنَّ، وَصَامَ رَمَضَانَ وَحَجَّ الْبَيْتَ إِنِ اسْتَطَاعَ إِلَيْهِ سَبِيْلًا وَأَعْطَى الزَّكَاةَ طَيِّبَةً بِهَا نَفْسُهُ... رواه ابوداؤد ۴۲۹، والهيثمي في المجمع ۱/ ۴۷، والسيوطي في الدر ۱/ ۲۹۶، والمنذري في الترغيب ۱/ ۲۴۱، ورواه الطبراني باسناد جيد.

څوک چې د لمونځ پابندي کوي ، زکوة ورکوي ، د بيت الله حج کوي ، د رمضان روژې نيسي ، او د ميلمه ميلمستيا کوي نو دا کس به جنت ته داخل شي .

## ۲ . د زکوة په وجه د انسان نفس او مال پاکيږي

زکوة ورکول لکه څرنګې چې يو فرضي عبادت دی همدغه شان په دې کې يوه فايده دا هم ده چې ددې په وجه د انسان نفس د ګناهونو او د مال د محبت نه پاکيږي ، او ورسره ورسره د مال پاکوالې پرې هم راځي .

۱ . الله ﷻ پيغمبر عليه الصلوة والسلام ته فرمايي :

﴿ خُذْ مِنْ أَمْوَالِهِمْ صَدَقَةً تُطَهِّرُهُمْ وَتُزَكِّيهِمْ بِهَا ... ﴾ : (۱)

ترجمه : اې پيغمبره ! ته د دوی د مالونو نه صدقه ( او زکوة ) واخله چې ته د دې صدقې په ذريعه دوی ( د ګناهونونه ) پاک او صفا کړې .

**فائده** : ددې آيت نه يو څو خبرې معلومې شوی :

اوله خبره دا معلومه شوه کومه چې تفسير قرطبي ، مظهري او احکام القرآن واله نقل کړې او په دې دټول امت اتفاق هم دی چې په دې آيت کې د شانِ نزول په اعتبار سره اګر چې د يوې خاصې ډلې نه د زکوة وصولولو حکم شوی خو دا د مفهوم په اعتبار سره عام دی .

يعنی خطاب اګر چې خاص رسول الله ﷺ ته دی خو حکم يې د هغوی د زمانې پورې خاص نه دی ، بلکه هر هغه څوک چې د نبي عليه السلام قائم مقام وي هغه ددې حکم مخاطب او مأمور دی ، هغه به د مسلمانانو نه زکوة وصولوي او په خپل خپل ځای کې به يې لږوي .

دويمه خبره د آيت نه دا معلومه شوه چې د ﴿ خُذْ مِنْ أَمْوَالِهِمْ صَدَقَةً ﴾ نه پس د ﴿ تُطَهِّرُهُمْ وَتُزَكِّيهِمْ بِهَا ﴾ سره ديته اشاره ده چې زکوة او صدقات څه د حکومت ټيکس نه دی چې په

(۱) التوبة آيت ۱۰۳ .

دې سره ګني دوی صرف خپل حکومت چلوي ، بلکه زکوة یو مالي حق او عبادت دی چې په دې سره انسان د ګناهونو نه صفا کیږي ، او د زړه نه یې د مال محبت او لالچ اوځي . (۱)

۲ . حضرت انس رضي الله عنه وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم ته دبني تمیم قبیلې یو کس راغی ، او وې ویل :

يَارَسُوْلَ اللهِ ! إِنِّيْ ذُوْ مَالٍ كَثِيْرٍ وَذُوْ أَهْلٍ وَمَالٍ فَأَخْبِرْنِيْ كَيْفَ أَصْنَعُ ؟ ( وَكَيْفَ ) أُنْفِقُ ؟

اې د الله جل جلاله رسوله صلى الله عليه وسلم ! بیشکه زه د ډیر مال او اهل وعیال خاوند یم نو تاسو ماته خبر راکړئ چې زه څه وکړم ؟ او څه طریقې سره خرچ وکړم ؟

نبي عليه السلام ورته وفرمایل :

تُخْرِجُ الزَّكٰوةَ مِنْ مَالِكَ فَإِنَّهَا طُهْرَةٌ تُطَهِّرُكَ وَتَصِلُ أَقْرِبَاءَكَ وَتَعْرِفُ حَقَّ الْمِسْكِيْنِ وَالْجَارِ وَالسَّائِلِ (۲)

ته د خپل مال نه زکوة اوباسه ، ځکه چې زکوة پاکوونکې شی دی ، تا به ( د ګناهونو نه ) پاک کړي ، د خپلو رشته دارو سره صله رحمي کوه ، د مسکین ، ګاونډي او د ( ضرورتمند ) سوالګري حق اوپیژنه .

۳ . په یوه موقع رسول الله صلى الله عليه وسلم حضرت عمر رضي الله عنه ته وفرمایل :

إِنَّ اللهَ لَمْ يَفْرِضِ الزَّكٰوةَ إِلَّا لِيُطَيِّبَ مَا بَقِيَ مِنْ أَمْوَالِكُمْ . (۳)

(۱) معارف القرآن لمولانا مفتي شفيع رحمه الله مع اختصار ، التوبة آيت ۱۰۳ .

(۲) وَعَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رضي الله عنه قَالَ : أَتَى رَجُلٌ مِنْ بَنِيْ تَمِيْمٍ رَسُوْلَ اللهِ صلى الله عليه وسلم فَقَالَ : يَارَسُوْلَ اللهِ ! إِنِّيْ ذُوْ مَالٍ كَثِيْرٍ وَذُوْ أَهْلٍ وَمَالٍ فَأَخْبِرْنِيْ كَيْفَ أَصْنَعُ ؟ ( وَكَيْفَ أُنْفِقُ ؟ ) فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صلى الله عليه وسلم : تُخْرِجُ الزَّكَاةَ مِنْ مَالِكَ فَإِنَّهَا طُهْرَةٌ تُطَهِّرُكَ وَتَصِلُ أَقْرِبَاءَكَ وَتَعْرِفُ حَقَّ الْمِسْكِيْنِ وَالْجَارِ وَالسَّائِلِ . رواه احمد ۳ / ۱۳۶ ، والمنذري في الترغيب ۱ / ۵۱۶ ، والبيهقي في المجمع ۳ / ۶۳ .

(۳) رواه ابوداؤد ( ۱۶۶۴ ) واللفظ له ، وذكره ابن كثير في التفسير ( ۲ / ۳۵۲ ) وعزاه لابن ابي حاتم والحاكم وقال صحيح على شرطهما ، و وافقه الذهبي ، وحسّن اسناده محقق جامع الاصول ( ۲ / ۱۶۳ ) . نضرة النعيم ج۶ الزكاة حديث ۲ ، معارف الحديث حصه چهارم كتاب الزكاة ص ۳۰۸ .

الله تعالی زکوة صرف ددې د پاره فرض کړی چې ددې په اداء کولو سره ستاسو باقي پاتې مال پاک کړي .

## ۳ . دزکوة په وجه د مال حفاظت او د مرضونو نه شفاء حاصلیږي

د زکوة یوه فایده دا هم ده چې ددې د اداء کولو په وجه د مَابَقِيَ مال د هر قسم آفت نه حفاظت کیږي ، او د بیماریانو نه شِفاء حاصلیږي .

۱ . رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي :

حَصِنُوْا أَمْوَالَكُمْ بِالزَّكٰوةِ . وَدَاوُوْا (أَمْرَاضَكُمْ) بِالصَّدَقَةِ . وَاسْتَقْبِلُوْا أَمْوَاجَ الْبَلَاءِ بِالدُّعَاءِ وَالتَّضَرُّعِ . (۱)

تاسو خپل مالونه د زکوة په ذریعه محفوظ کړئ ، او د خپلو بیمارو علاج په صدقې سره وکړئ ، او د مصیبتونو د چپو استقبال په دُعاګانو او د الله ﷻ د وړاندې په عاجزۍ کولو سره وکړئ ( یعنی د غټو مصیبتونو ختمولو دپاره د دُعا او عاجزۍ په ذریعه مدد حاصل کړئ ) .

## د یو نصراني د اسلام راوړ واقعه

سید علي زاده په خپل کتاب " شرح شِرعة الاسلام " کې په " فصل في سنن الزكاة والصدقة " د لاندې د همدې حدیث نه روستو یوه واقعه رانقل کړی چې نبي کریم ﷺ دا حدیث صحابه کرامو ته بیانول نو یو نصراني دلته تیریده ، هغه چې دا خبره د پیغمبر علیه السلام نه واوریده ( چې : حَصِنُوْا أَمْوَالَكُمْ بِالزَّكَاةِ . په زکوة ورکولو سره د خپلو مالونو حفاظت وکړئ ) . کله چې دې کورته لاړ نو دخپل مال نه یې زکوة وویست ، او د ځان سره یې وویل : که چیرته دا کس ( نبي علیه السلام ) ریښتینې وي نو زما مال به هم محفوظ وي ، بیا به زه ایمان راوړم ، او که چیرته دې دروغجن وي نو په توره به یې سَر پریکوم .

---

(۱) رواه ابوداؤد في مراسيله ; وقد روي عن جماعة من الصحابة متصلا ، والمرسل اشبه ، و رواه البيهقي ۳۸۲/۳ ، والهيثمي فى المجمع ۶۳/۳ ، والطبراني فى المعجم ۱۰ /۱۵۸ ، والمنذري فى الترغيب ۱ /۵۲۰ .

ددې نصراني د تجارت يو شريکوال ؤ ، هغه په دې وخت کې مصر ته د يوې قافلې سره د تجارت په غرض تللې ؤ ، د هغه قافلې نه يوه ورځ خط راغی چې په هغې کې ليکلي وو :

قَطَعَ اللُّصُوْصُ عَلَيْنَا الطَّرِيْقَ ، وَسَلَبُوا الْأَمْوَالَ وَالْإِبِلَ وَكُلَّ شَيْءٍ مَعَنَا .

غلو مونږ په لاره کې اوشوکولو ، مالونه ، اُوښان او څه چې د مونږ سره وو هغه ټول يې رانه واخيست .

دې نصراني چې دا خبره واوريده نو وې ويل : ددې کس (نبي عليه السلام) خبره خو دروغ شوه " چې په زکوة سره د مال حفاظت راځي " . نو تُوره يې راواخيسته ، او د نبي ﷺ د قتل پسې راووت ، په لاره کې ورته د خپل تجارت شريکوال د طرفه ورته خط راورسيده چې په هغې کې ليکلي وو :

ته غم مه کوه ، زه اول د قافلې مخې ته روان ووم ، خو زما د اُوښ خپه زخمي شوه نو زه د قافلې نه په فلانکي ځای کې پاتې شوم ، غلو دا قافله اُولوټله او زه سره د ټول مال نه په محفوظ ځای کې يم .

کله چې ده دا خط اُولوست نو وې ويل : دا سړی (نبي کريم ﷺ) په خپلو خبرو کې رېښتينې دی ، نو دا نصراني نبي عليه السلام ته راغی ، او ورته وې ويل :

يَا مُحَمَّدُ ! عَلَيْکَ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ أَعْرِضْ عَلَيَّ الْإِسْلَامَ .

اې محمده ! په تاسو دې درود و سلام وي ماته اسلام پيش کړئ (زه مسلمانيږم)

نبي ﷺ ورته اسلام پيش کړو ، ده اسلام راوړو ، او په دې خپل اسلام کې ډير مضبوط ؤ (۱)

---

(۱) کذا في الروضة شرح شرعة الاسلام فصل في سنن الزکاة والصدقة ص ۱۷۴ . همدغه شان يو دبله واقعه هم علماؤ رانقل کړی : وحکي : أَنّ بعضَ التجّار کان يخرج زکاةَ مالِه تَامًا وَافِيًا ويضعها في موضعها . وکانَ قد بَعَثَ مع غلامٍ له بضاعة نفِيْسة إلى موضع فقطعت تلک القافلة التي کانت بضاعته فيها . فوقع الخبر بأَنّ القافلةَ قد قطعتْ . فَاغْتَمَّ التّجّار کلّهم ، وکان هو يقولَ : مَالِيْ سَالِمٌ بِحَمْدِ اللهِ تَعَالیٰ . فقيل له : مايدريک ؟ قال : أنا أتحققُ ذلک . فلمّا قدمتِ القافلةُ إذا غلامه قد أتیٰ ببضاعته . فقال له : کيف سلمت بضاعتنا ؟ فقال له : إنّ البعير کان قد تفلت فذهبت خلفه فأخذت القافلة وسلمت بضاعتنا . فسئل التاجر عن ذلک قال : أنا صدقتُ رسول الله ﷺ واعتمدتُ على قوله : " حَصِّنُوْا أَمْوَالَکُمْ بِالزَّکَاةِ " وقد أديتُ زکاةَ هذا المالِ مُنْذ ملکتُه فعلمتُ أنّه لَايضيعُ . نزهة الناظرين في الأخبار والآثار المروية عن الأنبياء والصالحين کتاب الصدقة ص ۲۹۹ .

## د زکوة ورکولو په وجه د مال د حفاظت واقعه

همدغه شان یوه بله واقعه هم علماؤ ذکر کړې چې په هندوستان کې یو نیک سړی ؤ ، دُکاندار ؤ ، هغه به د خپل مال نه زکوة په پابندۍ سره ویستو ، یوه ورځ دې جُمات ته د لمانځه د پاره تللې ؤ چې ناڅاپه نوکر ورپسې راغی ، او ورته وې ویل :

په بازار اُور لږېدلې دی ، د دُکان چاپیانې راکړه چې سامان ورنه را اُوباسم .

دې نیک سړي ورته وویل : ما د خپل دُکان نه فرضي زکوة ویستې دی ( دې ته هیڅ نقصان نه رسي ) ، بیا دې سړي ښه په اطمینان سره لمونځ وکړو ، کله چې د لمانځه نه فارغه شو ، او بازار ته راغی نو وې کته چې د نورو خلقو دُکانونه سوزیدلي دي خو دده په دُکان کې سامان محفوظ ؤ ، نه ؤ سوزیدلی . وجه داوه چې دې سړي به په پابندۍ سره د خپل دُکان نه زکوة ورکولو . (۱)

۲ . حضرت جابر رضي الله عنه وايي چې یو کَس رسول الله صلى الله عليه وسلم ته وویل :

يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ ! أَرَأَيْتَ إِنْ أَدَّى الرَّجُلُ زَكٰوةَ مَالِهِ ؟

اې د الله جل جلاله رسوله صلى الله عليه وسلم ! که چیرته یو کس د خپل مال زکوة اداء کړي نو تاسو د هغه متعلق څه فرمايي ؟ نبي عليه السلام ورته وفرمایل :

مَنْ أَدّٰى زَكَاةَ مَالِهِ فَقَدْ ذَهَبَ عَنْهُ شَرُّهُ . (۲)

څوک چې د خپل مال زکوة اداء کړي نو د دې مال شر دده نه ځي .

۳ . په یو بل روایت کې داسې الفاظ دي :

إِذَا أَدَّيْتَ زَكَاةَ مَالِكَ فَقَدْ أَذْهَبْتَ عَنْكَ شَرَّهُ . (۳)

کله چې تا د خپل مال زکوة اداء کړو نو تا د دې مال شر زائل کړو .

---

(۱) سفينة الواعظين .

(۲) رواه الطبراني وابن خزيمة ، و رواه المنذري في الترغيب ۱ / ۵۱۹ ، والهيثمي في المجمع ۳ / ۶۳ ، والهندي في الكنز ۱۵۷۷۸ .

(۳) رواه الحاكم في المستدرک ۱ / ۳۹۰ وقال صحيح على شرط مسلم ، المتجر الرابح في ثواب العمل الصالح ثواب الزكاة ص ۱۲۷ .

يعنی د مال ډير شرونه وي خو چې کله څوک د دې زکوة ورکړي نو دا انسان به د دې مال د اُخروي او دُنيوي شرونو نه محفوظ وي، په آخرت کې به دا مال ده د عذاب سبب نه وي، او په دُنيا کې به دا مال د ضائع کيدو او ډيرو خطرو نه محفوظ وي.

## ۴. د زکوة په وجه د انسان په مال کې برکت او زيادت راځي

کله چې يو انسان د خپل مال نه زکوة اوباسي نو په دې سره ده په مال کې برکت او زيادت راځي.

۱. الله تعالی فرمايي:

﴿وَمَآ اٰتَيْتُمْ مِّنْ زَكٰوةٍ تُرِيْدُوْنَ وَجْهَ اللهِ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُضْعِفُوْنَ﴾. (۱)

ترجمه: او تاسو چې کوم زکوة (يا صدقه وغيره) ورکوئ او په دې سره د الله تعالی رضا غواړئ، نو همدا خلق (خپل مالونه) د الله تعالی سره په څو څو چنده زياتوي.

۲. بل ځای الله ﷻ فرمايي:

﴿يَمْحَقُ اللهُ الرِّبٰوا وَيُرْبِي الصَّدَقٰتِ ...﴾. (۲)

ترجمه: الله ﷻ سُود بربادوي (ختموي)، او صدقې (او زکوة) زياتوي.

۳. لکه په حديث کې هم ذکر دي چې په زکوة او نورو د خير په کارونو کې خرچ کوونکي کس ته فرښتې دُعا کوي، د بخاري شريف حديث دی، رسول الله ﷺ فرمايي:

مَا مِنْ يَوْمٍ يُصْبِحُ الْعِبَادُ فِيْهِ إِلَّا وَمَلَكَانِ يَنْزِلَانِ فَيَقُوْلُ أَحَدُهُمَا: اَللّٰهُمَّ أَعْطِ مُنْفِقًا خَلَفًا وَيَقُوْلُ الْآخَرُ: اَللّٰهُمَّ أَعْطِ مُمْسِكًا تَلَفًا. (۳)

---

(۱) الروم آيت ۳۹.

(۲) البقرة آيت ۲۷۶.

(۳) رواه البخاري ج ۲ ص ۱۱۵ حديث ۱۴۴۲ باب قول الله تعالی فاما من اعطی واتقی...، ومسلم ج ۲ ص ۷۰۰ حديث ۱۰۱۰ باب فی المنفق والممسک. وفي رواية: عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ ﷺ: أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ قَالَ: مَا طَلَعَتْ شَمْسٌ قَطُّ إِلَّا (بعث) بِجَنْبَيْهَا مَلَكَانِ يُنَادِيَانِ: اَللّٰهُمَّ مَنْ أَنْفَقَ فَأَعْقِبْهُ خَلَفًا. وَمَنْ أَمْسَكَ فَأَعْقِبْهُ تَلَفًا. رواه احمد وابن حبان والحاکم، وقال صحيح الاسناد، قال في مجمع الزوائد (۱۰ / ۲۵۵)، رواه احمد والطبراني في الکبير والاوسط، ورواه المنذري في الترغيب ۴/۱۱۸.

په هره ورځ د سهر په وخت کې دوه (۲) فرښتې راکوزيږي، او په هغې کې يوه فرښته (د سخي د پاره) دا دُعا کوي: يا الله! څوک چې (د خير په کارونو کې) خرچ کوي هغه ته ددې بَدله ورکړه (يعنی په دُنيا کې يې مال زيات کړه، او آخرت کې ورته ددې ثواب ورکړه (۱))، او بله فرښته دا وايي: ای الله! څوک چې بُخل کوي د هغه مال هلاک کړه.

۴. په يو روايت کې دا حديث داسې ذکر دی، نبي عليه السلام فرمايي:

إِنَّ مَلَكًا بِبَابٍ مِنْ أَبْوَابِ الْجَنَّةِ يَقُوْلُ: مَنْ يُقْرِضُ الْيَوْمَ يُجْزَ غَدًا، وَمَلَكٌ بِبَابٍ آخَرَ يَقُوْلُ: اَللّٰهُمَّ أَعْطِ مُنْفِقًا خَلَفًا، وَأَعْطِ مُمْسِكًا تَلَفًا. (۲)

بيشکه د جنت په دروازو کې په يوه دروازه باندې يوه فرښته دا اعلان کوي: څوک چې نن قرض ورکړي (يعنی د الله ﷻ په لاره کې مال خرچ کړي) نو سبا (د قيامت په ورځ) به ددې بدله ورکړې شي، او يوه فرښته په بله دروازه باندې دا دُعا کوي: يا الله! خرچ کوونکي ته ددې ښه بدله ورکړې، او منع کوونکي (بخيل) ته بربادي ورکړې (يعنی د هغه مال بې برکته او ضائع کړې).

**فايده**: دا په معاشره کې ليدل شوي هم دي چې کوم کس زکوة صحيح او پوره ورکوي نو الله ﷻ دده مال زياتوي، برکت په کې اچوي، او د بلې لارې نه ورته واپس نور مال راشي. اګر چې په ظاهره په زکوة ورکولو سره دده مال کم شي، خو ليکن په دې باقي مال کې الله ﷻ ده له داسې برکت واچوي چې بيا د لږ مال نه ډيره فايده حاصلوي.

---

(۱) خَلَفًا: اى عِوَضًا عَظِيْمًا. وَهُوَ الْعِوَضُ الصَّالِحُ. أَوْ عِوَضًا فِي الدُّنْيَا وَبَدَلًا فِي الْعُقْبٰى. لقوله تعالى: ﴿وَمَا أَنْفَقْتُمْ مِنْ شَيْءٍ فَهُوَ يُخْلِفُهُ وَهُوَ خَيْرُ الرَّازِقِيْنَ. سورة السبا آيت ۳۹﴾. قال الحافظ: أَمَّا الْخَلَفُ فَإِبْهَامُهُ أَوْلٰى. لِيَتَنَاوَلَ الْمَالَ وَالثَّوَابَ وَغَيْرَهَا. فتح الملهم ج۵ ص ۷۵.

(۲) رواه البخاري ومسلم وابن حبان، الترغيب والترهيب ج۱ (۱/ ۶۳۵). وفي رواية: إِنَّ مَلَكًا بِبَابٍ مِنْ أَبْوَابِ السَّمَاءِ يَقُوْلُ: مَنْ يُقْرِضُ الْيَوْمَ يُجْزَ غَدًا، وَمَلَكٌ بِبَابٍ آخَرَ يَقُوْلُ: اَللّٰهُمَّ أَعْطِ مُنْفِقًا خَلَفًا، وَأَعْطِ مُمْسِكًا تَلَفًا. رواه الطبراني وابن حبان، ورواه احمد ۲/ ۳۰۵، والسيوطي في الدر ۱/ ۳۱۳، والهندي في الكنز ۱۹۱۱۹.

## ۵. په زکوة ورکولو سره انسان د الله ﷻ د رحمت مستحق ګرځي

د الله ﷻ رحمت عام دی، هر شي ته شامل دی، خو بیا خاصکر چې څوک د الله ﷻ نه ویریږي، زکوة ورکوي، او د الله ﷻ په آیتونو ایمان لري نو بیا داسې خلق په کامل ډول د الله ﷻ د رحمت مستحق ګرځي.

۱. الله تعالی فرمایي:

﴿ وَرَحْمَتِي وَسِعَتْ كُلَّ شَيْءٍ فَسَأَكْتُبُهَا لِلَّذِينَ يَتَّقُونَ وَيُؤْتُونَ الزَّكَوٰةَ وَالَّذِينَ هُمْ بِآيَاتِنَا يُؤْمِنُونَ ﴾. (۱)

ترجمه: زما رحمت خور (شامل) دی په هر شي باندې، پس ډیر زر به زه دا (رحمت په کامل ډول) د هغه خلقو د پاره ولیکم څوک چې د الله ﷻ نه ویریږي، زکوة ورکوي، او څوک چې زمونږ په آیتونو ایمان راوړي.

بل ځای الله ﷻ زکوة ورکونکو او نورو نیکو اعمالو کوونکو ته ریښتوني نیکان او متّقیان ویلي. (۲)

## ٦. د زکوة ورکولو په وجه د بُخل د صفت نه محفوظ کیدل

د زکوة ورکولو یوه فایده دا هم ده چې ددې په وجه انسان د بُخل د صفت نه پاکیږي، او څوک چې ددې بخل نه بچ شو هغه کامیاب دی.

۱. الله تعالی فرمایي:

﴿ وَمَنْ يُوقَ شُحَّ نَفْسِهِ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ ﴾. (۳)

ترجمه: او څوک چې د خپل نفس د حرص (او شومتیا) نه بچ وساتلې شو نو همدغه خلق کامیاب دي.

---

(۱) الاعراف آیت ۱۵٦.

(۲) .... وَأَقَامَ الصَّلٰوةَ وَآتَى الزَّكَاةَ ..... أُولَٰئِكَ الَّذِينَ صَدَقُوا وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُتَّقُونَ. البقرة آیت ۱۷۷.

(۳) الحشر آیت ۹.

۲. بل دا چې بُخل انسان لره هلاکوونکې صفت دی، رسول الله ﷺ فرمايي:

ثَلَاثٌ مُهْلِكَاتٌ: شُحٌّ مُطَاعٌ، وَهَوًى مُتَّبَعٌ، وَإِعْجَابُ الْمَرْءِ بِنَفْسِهِ. (۱)

درې ( ۳ ) شيان انسان لره هلاکوونکي دي: اول هغه حرص او بُخل چې د هغې تابعداري کولې شي، دويم هغه نفسي خواهشات چې د هغې تابعداري کولې شي (۲)، او دريم هغه کس چې خپله رايه د ټولو نه بهتره گڼي.

او د انسان نه دا د بُخل صفت هلته لرې کيږي چې کله دې د زکوة او صدقاتو په ورکولو باندې ځان عادت کړي، او د مال سره محبت کم کړي، نو په دې سره به انسان د بُخل د صفت نه پاک شي.

## ۷. زکوة ورکول د کامِل مومنانو صفت دی

که په قرآن مجيد او احاديثو باندې نظر وکړې شي نو لمونځ او زکوة د کامِل مومنانو صفت خودلې شوی.

۱. الله جلّ شانُه فرمايي:

﴿ وَالْمُؤْمِنُونَ وَالْمُؤْمِنٰتُ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَاءُ بَعْضٍ يَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنكَرِ وَيُقِيمُونَ الصَّلٰوةَ وَيُؤْتُونَ الزَّكٰوةَ وَيُطِيعُونَ اللّٰهَ وَرَسُولَهُ أُولٰئِكَ سَيَرْحَمُهُمُ اللّٰهُ إِنَّ اللّٰهَ عَزِيزٌ حَكِيمٌ ﴾. (۳)

ترجمه: او مومنان سړي او مومنان ښځې د يو بل ملګري دي، چې د نيک کار حکم کوي او د بدو کارونو نه (خلق) منع کوي، او د الله ﷻ او د ده د رسول حکم مني، همدا خلق دي چې په دوی به الله ﷻ ډير زر رحم وکړي، بيشکه الله ﷻ غالِب او د حکمت خاوند دی.

---

(۱) احياء العلوم ج۱ ص ۲۹۹ کتاب الزکوة الفصل الثاني في الاداء وشروطه الباطنه والظاهرة.

(۲) **فايده**: نقصاني هغه بخل او خواهشاتِ نفساني دي چې دده په تقاضا عمل کولې شي، او که يو کس طبعًا بخيل وي، يا طبعًا خواهشات لري خو دده په تقاضا عمل نه کوي، بلکه زکوة او صدقات ورکوي او د خواهشاتِ نفساني موافق عمل کولو نه ځان ساتي نو بيا دا خطرناک نه دی.

(۳) سورة التوبة آيت ۷۱.

۲. همدارنګې د سورة نمل په ابتدائي آيتونو کې الله ﷻ فرمايي:

﴿طٰسٓ. تِلْكَ اٰيٰتُ الْقُرْاٰنِ وَكِتَابٍ مُّبِيْنٍ. هُدًى وَّبُشْرٰى لِلْمُؤْمِنِيْنَ. الَّذِيْنَ يُقِيْمُوْنَ الصَّلٰوةَ وَيُؤْتُوْنَ الزَّكٰوةَ وَهُمْ بِالْاٰخِرَةِ هُمْ يُوْقِنُوْنَ﴾. (۱)

ترجمه: طٰسٓ، دا آيتونه دي د قرآن کريم او واضحه کتاب، دا هدايت او زيرې دی د مومنانو د پاره، (مومنان هغه خلق دي) کوم چې د لمونځ پابندي کوي، او زکوة ورکوي، او دوی په آخرت باندې پوخ يقين لري.

## ۸. زکوة ورکوونکي په هدايت او کامياب دي

الله جلّ جلاله فرمايي:

﴿الٓمّٓ. تِلْكَ اٰيٰتُ الْكِتٰبِ الْحَكِيْمِ. هُدًى وَّرَحْمَةً لِّلْمُحْسِنِيْنَ. الَّذِيْنَ يُقِيْمُوْنَ الصَّلٰوةَ وَيُؤْتُوْنَ الزَّكٰوةَ وَهُمْ بِالْاٰخِرَةِ هُمْ يُوْقِنُوْنَ. اُولٰٓئِكَ عَلٰى هُدًى مِّنْ رَّبِّهِمْ وَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ﴾. (۲)

ترجمه: الٓمّٓ. دا آيتونه دي د کتاب حکمت واله، چې د نيکانو د پاره هدايت او رحمت دی، نيکان هغه خلق دي څوک چې لمونځ قائموي، زکوة ورکوي او په آخرت باندې پوره يقين لري، همدا خلق په هدايت باندې دي د خپل رب د طرفه، او همدا خلق خلاصې (نجات) موندونکي دي.

## د زکوة ورکوونکي مرتبه

حضرت عمرو بن مرّة الجهني رضي الله عنه وايي چې د قضاعة قبيلې يو کس رسول الله ﷺ ته راغی، او ورته وې ويل:

إِنِّيْ شَهِدْتُ أَنْ لَّآ إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَأَنَّكَ رَسُوْلُ اللهِ. وَصَلَّيْتُ الصَّلَوَاتِ الْخَمْسَ. وَصُمْتُ رَمَضَانَ. وَقُمْتُهُ. وَآتَيْتُ الزَّكٰوةَ.

(۱) النمل آيت ۱ تا ۳.

(۲) لقمان آيت ۱ تا ۵.

زه دا ګواهي ورکوم چې د الله ﷻ نه بغير بل څوک د عبادت لائق نشته، او دا چې تاسو دالله ﷻ رسول يې، پنځه وخته لمونځ کوم، د رمضان روژې نيسم، ددې د شپې عبادت (ترايح) کوم، او زکوة ورکوم.

رسول الله ﷺ ورته وفرمايل:

مَنْ مَاتَ عَلَى هٰذَا كَانَ مِنَ الصِّدِّيْقِيْنَ وَالشُّهَدَاءِ. (۱)

څوک چې په دې حالت کې وفات شي (چې دا مذکوره عبادات کوي) نو هغه به د صديقينو او شهيدانو نه وي.

## د زکوة لږولو بهترين ځاى

د زکوة لږولو ځايونه خو په قرآن مجيد کې د سورة توبه په آيت ٦٠ کې په خپله ذکر دي، او مفتي شفيع رحمه الله هم د همدې آيت ﴿إِنَّمَا الصَّدَقٰتُ لِلْفُقَرَاءِ وَالْمَسَاكِيْنِ وَالْعَامِلِيْنَ عَلَيْهَا...﴾ د لاندې په تفصيل سره ذکر کړي.

خو چې د سړي په خپلوانو کې غريبانان وي نو دوى ته په زکوة ورکولو کې دوه (۲) اجرونه دي: يو د زکوة ورکولو اجر، او دويم د صله رحمي کولو اجر. دغه شان نورو فقيرانو او مسکينانو ته يې هم ورکولې شي.

## اهلِ علمو ته زکوة ورکول

البته که په يو ځاى کې ديني مدرسه وي، علماء او طلباء وي، د دين خدمت کوي او محتاج وي نو بيا دوى ته زکوة او صدقه ورکول هم ډير اجر لري.

ځکه دوى ته په زکوة ورکولو کې هم انسان ته يو خو د زکوة ورکولو اجر ملاويږي، او دويم دده دا اِمداد د عِلم د خورَولو سبب او ذريعه هم وګرځيده، چې دا ثواب به جاري او هميشه وي.

(۱) رواه البزار وابن خزيمة وابن حبان، و روالهيثمي في المجمع ۱/ ۴۶، ۸/ ۱۲۷، والهندي في الكنز ۳۴۲.

بل دا چې که عام فقير ته زکوة ورکړې شي ، او هغه په دې باندې د خوراک څه واخلي او وې خوري نو آثر يې زر ختميږي ، او چې په ديني کارونو کې يې اُولږي يعنی علماؤ او طلباؤ ته يې ورکړي ، نو چې تر قيامته پورې د عِلم دا سلسله جاري وي نو د دې کس به په کې حصه وي .

بيا خاصکر په دې دوَر کې خو غير مُسلمه دا کوشش کوي چې اِسلامي مدارس او علماء ختم کړي ، دا ديني سلسله بنده کړي ، او په معاشره کې بې ديني او کُفري نظام خور کړي ، نو د دې ټولو د مخ نيوي د پاره واحد جماعت همدا ديني علماء ، طلباء او مدارس دي چې دوی خلقو ته قرآني تعليمات ، د رسول الله ﷺ ښائسته تعليمات ، او دژوند تيرولو بهترين اصول ښايي ، او د کافرانو او غير مُسلمو دَسيسې ورته په ګوته کوي .

لهذا اهلِ علمو ته په زکوة او صدقې ورکولو کې دوه اجرونه دي : يو د زکوة او صدقې اجر ، او دويم د دين په خوَرولو کې د مرستې کولو اجر .

په فتاوی هنديه کې ذکر دي :

اَلتَّصَدُّقُ عَلَى الْفَقِيْرِ الْعَالِمِ اَفْضَلُ مِنَ التَّصَدُّقِ عَلَى الْجَاهِلِ . (۱)

فقير عالِم ته صدقه ورکول د جاهل فقير ته د صدقې ورکولو نه ډير بهتر دي .

( يعنی که عالم فقير وي نو ده ته د صدقې ورکولو اجر ډير زيات دی په نسبت سره هغه فقير ته کوم چې جاهل وي ) .

بل دا چې په مخ د زمکه د انبياء کرامو نه روستو بهترين مقام هغه د اهلِ علمو دی ، نو ځکه د دوی سره په احسان کولو کې اجر هم زيات دی .

(۱) الفتاوی الهندية ج۱ ص ۱۸۷ الباب السابع فی المصارف ، ومثله فی الطحطاوي حاشيه مراقی الفلاح ص ۳۹۴ باب المصرف ، ومثله فی البحر الرايق ج۲ ص ۲۵۰ قبيل باب صدقة الفطر ، الدر المختار علی الشامي ج۳ ص ۳۰۴ باب المصرف ، مطلب في الحوايج الاصلية ، سکب الانهر علی مجمع الانهر ج۱ ص ۳۳۳ قبيل باب صدقة الفطر ، فتاوی حقانيه ج ۴ ص ۵۴ .
قال ابن عابدين رحمه الله عن القهستاني : قوله افضل ای من الجاهل الفقير . الدرالمختار علی هامش رد المحتار ج۲ ص ٦۹ کتاب الزکوة باب المصرف .

امام غزالي رحمه الله په احياء العلوم کې ليکلي چې عبدالله بن مبارک رحمه الله به کله څه احسان کولو نو خاص د اهلِ علمو سره به يې کولو، چا ورته وويل: که چيرته ته دا ورکړه عامه کړې او د اهلِ علمو نه علاوه يې نورو ته ورکړې نو هم ښه به وي. ده ورته وويل:

إِنِّي لَا أَعْرِفُ بَعْدَ مَقَامِ النُّبُوَّةِ أَفْضَلُ مِنْ مَقَامِ الْعُلَمَاءِ ... (۱)

زه د نبوت د درجې نه روستو د اهلِ عِلمو نه علاوه د بل چا دومره لوي مقام نه ګورم څومره چې د دوی دی.

ځکه که چيرته د علماؤ زړه د يو ضرورت په وجه په نورو کارونو کې مشغول وي، نو بيا دوی علم ته نه فارغيږي، لهذا د علماؤ ضرورت پوره کول، او دوی علم ته فارغه کول ډير افضل دي.

بل دا چې نبي عليه السلام فرمايي:

اَلْعُلَمَاءُ وَرَثَةُ الْأَنْبِيَاءِ ... (۲)

علماء د انبياؤ وارثان دي.

نو د انبياؤ د وارثانو سره امداد کول يقيني خبره ده چې ډير بهتر دي

## اهلِ علمو سره د احسان په وجه د يهودي غونډه کورنۍ مسلمانيدل

څوک چې د اهلِ علمو سره احسان کوي، د قرآن کريم او دين خدمت کوي نو الله جَلَّ جَلَالُهُ دده په مال او اولاد کې برکت اچوي، تر دې چې غير مسلمو ته هم الله جَلَّ جَلَالُهُ د دين د خدمت او د اهلِ علمو سره د احسان په وجه دوی ته ايمان نصيب کړی.

---

(۱) وَكَانَ ابْنُ الْمُبَارَكِ يُخَصِّصُ بِمَعْرُوْفِهِ أَهْلَ الْعِلمِ. فَقِيْلَ له: لَو عَممتَ. فَقَالَ: إِنِّي لَا أَعْرِفُ بَعْدَ مَقَامِ النُّبُوَّةِ أَفْضَلُ مِنْ مَقَامِ الْعُلَمَاءِ. فَإِذَا اشْتَغَلَ قَلْبُ أَحَدِهِمْ بِحَاجَتِهِ لَمْ يتفرغْ لِلْعِلْمِ. ولم يقبل على التعلّم فَتَفرِيْغُهُمْ لِلعلم أفضلُ. احياء العلوم ج ۱ ص ۳۰۷ کتاب اسرار الزكاة.

(۲) اخرجه البخاري في العلم ۱۰، والترمذي في القرآن ۱۰ وفي العلم ۱۹، ۳۵، وابن ماجه في المقدمة ۱۷، واحمد ۲، ۲۵۲، ۳۲۵، ۴۰۷. ابوداود (۳۶۴۱)، (۳۶۴۲)، وابن ماجه (۲۲۳) و ابن حبان (۸۰) ورواه الترمذي (۲۶۸۳). مشکوة کتاب العلم.

# د محمد بن جرير طبري رحمه الله واقعه

ددې په باره کې درته د يو مشهور و معروف عالم " محمد بن جرير طبري رحمه الله " واقعه بيانوم ، کومه چې په تفسير الطبري ، تاريخ الطبري او نورو ډيرو کتابونو کې ذکر ده ، دا واقعه به شيخ الحديث حضرت مولانا حسن جان المدني شهيد رحمه الله هم بيانوله :

محمد بن جرير طبري رحمه الله وايي : چې مونږ څه طالبانو په يو کلي کې سبق ويل ، خرچه مو خپله کوله ، څه وخت پس خرچه راسره خلاصه شوه ، نو خپل کلي ته روان شو ، په لاره کې يو يهودي دُکاندار راسره مخامخ شو ، هغه چې مونږ وليدو نو پوښتنه يې رانه وکړه: طالبانو چيرته ځئ ؟ مونږ ورته وويل : واپس خپل کلي ته ځو ، ځکه خرچه راسره خلاصه شوه .

هغه راته وويل : تاسو واپس شئ ، خپل سبقونه وايئ ، ستاسو ټوله خرچه په ما شوه .

مونږ ورته وويل : ته خو يهودي يې نو څنګه د تا نه خرچه واخلو ، هغه راته وويل : که زه يهودي يم ، خو بيا هم اهلِ کتاب يم ، جنت ، دوزخ ، پيغمبران وغيره غټ اصول خو منم ، بل دا چې ستاسو زما د مذهب سره څه کار دی ، بلکه تاسو خپل سبقونه وايئ ، ټول ضروريات به مو زه پوره کوم .

محمد بن جرير وايي چې دې يهودي راته قسَم راکړو ، چې ستاسو دې په خپل کتاب قسَم وي ، چې واپس شئ ، نو ده جمات ته واپس راوستو .

مونږ په جُمات کې مشوره وکړه چې ددې يهودي نه به هر څه په قرض راوړو ، کله مو چې سبقونه خلاص شو حساب به ورسره وکړو چې څومره روپۍ يې جوړې شوی ورته رابه يې وړو .

کله چې زمونږ سبقونه خلاص شو نو دې يهودي ته راغلو ، مونږ ورته وويل : ستا څومره قرضه جمع شوی ؟ ده وويل : يوه روپۍ هم نشته ، بلکه تاسو ته چې ما څه درکول ، هغه ټوله صدقه وه .

ابن جرير طبري رحمه الله وايي چې مونږ خپلو کورونو ته واپس راغلو ، څه دولس (۱۲) کاله پس زه او زما د هغه طالبۍ ملګرې حج له لاړو ، طواف مو کولو ، چې مخامخ مو دغه يهودي دُکاندار وليد ، ما ددې خپل ملګري نه پوښتنه وکړه : چې دا پورې هغه يهودي

ډُکاندار نه دی ؟ هغه راته وویل : یقیني چې دی . ما وویل : د طواف نه روستو به ورسره ملاؤ شو .

کله مو چې طواف ختم کړو ، ده ته راغلو ، ورسره کیناستو ، پوښتنه مو ورنه وکړه : کاکاجي ! ته هغه فلانکې ډُکاندار نه یې ؟ هغه راته وویل : هو ، یم . خوزه ستاسو د برکته مسلمان شوم .

ځکه چې کله تاسو ما رارخصت کړئ ، او یوه روپۍ مې درنه وانه خیسته ، نو په هماغه شپه مې خوب ولیده چې ټول کور روښانه دی ، هر طرف ته نورانیت دی ، او د مسلمانانو پیغمبر محمد رّسول الله ﷺ زما کور ته راغی ، او راته وې ویل :

یا فلانکیه ! ستا د هدایت فیصله شوې ده .

دا یهودي وایي چې ما سهر دا خوب خپلې ښځې ته وویل ، هغې هم وویل : دا خوب خو بیگاه ما هم لیدلی .

پیغمبر په خوب کې لیدل ریښتیا وي ، ځکه شیطان د پیغمبر په شکل ځان نشي جوړولی . نو مونږ د کور ټول اوولس (۱۷) کسان مسلمانان شو ، او دا دې سږ کال حج ته راغلي یو .

بیا دې یهودي وویل : چې ما تاسو له کومه خرچه درکوله نو هغه مې په یوه عقیده درکوله ، او هغه دا چې د ټولو نه بهترینه صدقه هغه ده چې د دین په خدمت ولږي ( د دین په طالبانو او علماؤ اُولږي ) . خو د یهودیت څه طالبان نه وو ، نو ما د ځان سره سوچ وکړو چې قرآن کریم خو هم آسماني کتاب دی ، او تاسو ددې خدمت کوونکي وئ ، نو ځکه مې تاسو له خرچه درکوله ، او د تاسو سره ددې امداد په وجه الله ﷻ زمونږ غونډ کور اوولس (۱۷) کسانو ته ایمان نصیبه کړو .

**فایده** : معلومه شوه چې د اهلِ علمو سره د اِحسان کولو اجر د نورو په نسبت ډیر زیات دی .

## د اهلِ علمو سره د احسان په وجه خپل ځوي یا نمسې عالِم کیدل

بل دا چې په شریعت کې د اهلِ علمو سره د احسان کولو ډیر زیات فضایل او فوائد راغلي ، هم دُنیوي فایدې ، او هم اُخروي فایدې .

دُنيوي يوه فايده يې داده چې کوم کس د اهلِ علمو سره احسان کوي نو الله ﷻ به د دې کس ځوي يا نمسى عالِم کوي.

امام سديد الدين شيرازي رحمه الله فرمايي چې زمونږ مشائخو ويلي دي :

مَنْ اَرَادَ اَنْ يَكُوْنَ اِبْنُهُ عَالِمًا فَيَنْبَغِيْ اَنْ يُرَاعِيَ الْغُرَبَاءَ مِنَ الْفُقَهَاءِ وَيُكْرِمَهُمْ وَيُطْعِمَهُمْ وَيُعَظِّمَهُمْ وَيُعْطِيَهُمْ شَيْئًا، فَإِنْ لَمْ يَكُنْ اِبْنُهُ عَالِمًا كَانَ حَفِيْدُهُ عَالِمًا. (۱)

څوک چې دا اراده لري چې دده ځوي دې عالم شي نو ده له په کار دي چې د غريبانانو فقهاؤ او علماؤ خيال اوساتي، د دوی عزت او تعظيم وکړي او دوی ته (د خوراک د پاره) څه ورکړي، نو که په څه وجه دده ځوي عالِم نه شي نو دده نمسى به عالِم کيږي.

# د دين طالبانو سره د امداد کولو اجر

علماء ليکي چې صدقه په څلور قسمه ده : يو قِسم هغه ده چې انسان ته يو په لس (۱۰) چنده اجر ورکولې شي، دويم قِسم هغه ده چې انسان ته يو په اويا (۷۰) چنده اجر ورکولې شي، دريم قِسم هغه ده چې انسان ته يو په اووه سوه (۷۰۰) چنده اجر ورکولې شي، او څلورم قسم هغه ده چې انسان ته يو په اووه زره (۷۰۰۰) چنده اجر ورکولې شي.

يو په لس چنده اَجر په هغه صدقه کې دی چې يو عام فقير ته ورکړې شي، يو په اويا چنده ثواب په هغه صدقه کې دی چې خپلوان (رِشته دار) فقير ته ورکړې شي، يو په اووه سوه چنده اجر په هغه صدقه کې دی چې غريب ورور ته ورکړې شي، او يو په اووه زره چنده اجر په هغه صدقه کې دی چې د دين طالب العلم ته ورکړې شي. (۲)

# د زکوة او صدقې آداب

څوک چې د زکوة په ورکولو سره د الله تعالى رضا، او د آخرت د ثواب اِراده لري نو د هغه د پاره ضروري ده چې د څه شرائطو او آدابو لحاظ اوساتي، نو په دې سره به دده زکوة او

---

(۱) تعليم المتعلم فصل في تعظيم العلم واهله ص ۳۲ .

(۲) درّة الناصحين ص ۱۲۰ في فضيلة السخاء .

صدقه دده دپاره د آخرت يوه ذخيره جوړه شي، او د الله تعالى د رضا او خوشحالى ذريعه به وګرځي.

۱. **اول ادب** دادی چې خپل زکوٰة او خيرات په احسان زباتلو او ضَرر ورکولو سره برباد نه کړي، يعنى چې اول ورته زکوة ورکړي او بيا ورباندې احسان زباتي، بار بار يې ورته رايادوي، او يا هغه ته تکليف رسوي. ځکه په دې سره دزکوة او صدقې اجر و ثواب ختميږي. الله تعالى فرمايي:

﴿يَآ أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تُبْطِلُوا صَدَقَاتِكُمْ بِالْمَنِّ وَالْأَذَى ...﴾ . (۱)

ترجمه: اې مومنانو! (تاسو ثواب د) خپلې صدقې په زباتلو (يادګيرنې) او تکليف رسولو باندې مه ضايع کوئ. (۲)

**فايده**: "منّ" ديته وايي چې د احسان کولو روستو ورباندې خپل احسان زباتي، بار بار يې وريادوي، يا د هغه نه خدمت اخلي، او يا ددې احسان په وجه په هغه تکبّر کوي.

او "اذى" ديته وايي چې د احسان نه روستو هغه ته تکليف رسوي: لکه سټغې سپورې خبرې ورته کوي، پيغور ورکوي او رټي يې.

۲. **دويم ادب** دادی چې د کوم مال نه زکوة يا صدقه ورکوي نو دا به حلال او پاک وي،

---

(۱) البقرة آيت ۲٦۴.

(۲) اما المَنُّ ففيه قولان: أحدهما: أنّه المَنُّ على الفقير: و مثل أن يقول: قد أحسنتُ إليک ونَعشتُک، وهو قول الجمهور. والثاني: أنّه المَنّ على الله بالصدقة. روي عن ابن عباس. وفى الأذى قولان: أحدهما: أنه مواجهة الفقير بما يؤذيه، مثل أن يقول له: أنت أبدًا فقيرٌ، وقد بُليتُ بک، وأراحني اللهُ منک. والثاني: أنه يُخبر بإحسانه الى الفقير، مَن يكره الفقيرُ إطلاعَه على ذلک. وكلا القولين يؤذى الفقير، وليس من صفة المخلصين فى الصدقة. تفسر زاد المسير ج۱ ص ۲۳۸. / امام غزالي رحمه الله ليکي: واختلفوا في حقيقة المنّ والأذى. فقيل: المنّ أن يذكرها، والأذى أن يظهرها. وقال سفيان: مَنْ مَنَّ فَسَدَتْ صدقته. فقيل له: كيف المنّ؟ فقال: أن يذكره ويتحدث به. وقيل: المنّ أن يستخدمه بالعطاء، والأذى أن يعيره بالفقر. وقيل: المنّ أن يتكبر عليه لأجل عطائه، والأذى أن ينتهره أو يوبخه بالمسألة. احياء العلوم ج ۱ ص ۳۰۴ كتاب اسرار الزكاة.

الله تعالی فرمايي :

﴿يَآ أَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوٓا أَنْفِقُوْا مِنْ طَيِّبٰتِ مَا كَسَبْتُمْ وَمِمَّآ أَخْرَجْنَا لَكُمْ مِّنَ الْأَرْضِ وَلَا تَيَمَّمُوا الْخَبِيْثَ مِنْهُ تُنْفِقُوْنَ وَلَسْتُمْ بِاٰخِذِيْهِ إِلَّآ أَنْ تُغْمِضُوْا فِيْهِ وَاعْلَمُوٓا أَنَّ اللهَ غَنِيٌّ حَمِيْدٌ﴾ . (۱)

ترجمه : اې مومنانو ! تاسو خرچ کړئ (د الله ﷻ په لاره کې) د هغه پاکيزه شيانو نه کوم چې تاسو ګټلي وي، او کوم چې مونږ تاسو د پاره د زمکې نه راويستلي دي، او تاسو رَدي (بيکاره) شي ته اراده مه کوئ چې د هغې نه يې خرچ کړی (يعنی بې کاره شی د الله ﷻ په لاره کې مه خرچ کوئ) حالانکه تاسو په خپله د هغې (رَدي شي) اخيستلو ته تيار نه يی (چې څوک يې د يو واجب حق په بدله کې يا تحفه کې درکوي)، مګر که تاسو پرې سترګې پټې کړئ (او لحاظ يې وکړئ، او وايې خلې نو دا بيله خبره ده)، او پوهه شئ چې الله بې نيازه (دی، هيچا ته محتاج نه دی) او د تعريف لايق دی (نو د هغه په نامه داسې شی ورکوئ چې هغه هم ښه او د تعريف لائق وي) .

حديث کې راځي، رسول الله ﷺ فرمايي :

لَا يَقْبَلُ اللهُ إِلَّا الطَّيِّبَ . (۲)

الله تعالی صرف حلال مال قبلوي .

۳ . **دريم ادب** دادی چې نيت به په کې خالصه د الله تعالی د رضا وي، ځکه په ريا او نمائش سره د مال لږولو اجر و ثواب نه وي .

۴ . **څلورم ادب** دادی چې حقدار ته ورکړې شي، ځکه که زکوة غير حقدار ته ورکړې شي نو په دې سره زکوة نه ادا کيږي .

---

(۱) البقرة آيت ۲۶۷.

(۲) رواه البخاري ومسلم، مشكوة باب فضل الصدقة الفصل الاول حديث ۱ .

۵ . **پنځم ادب** دادی چې که چیرته دزکوة په ښکاره ورکولو کې څه دیني مصلحت نه وُ نو بیا په پټه زکوة ورکول بهتر دي ، ځکه په ښکاره ورکولو کې بعضې وخت د خپل شُهرت او حُبّ جاه خطره وي ، چې دا ځان له مستقل نقصاني صفت دی .

البته که په ښکاره ورکولو کې څه مصلحت وُ لکه : نورو خلقو ته د زکوة ورکولو ترغیب مقصود وي ، یا چې نور خلق دده اِتباع وکړي ، یا بل څه دیني مصلحت په کې وُ نو بیا زکوة په ښکاره ورکول بهتر دي .

( نوټ : صدقه په پټه ورکول ډیر اجر لري. چې ددې تفصیلي بحث راروان دی ) .

٦ . **شپږم ادب** دادی چې په زکاة کې بهترین مال ورکول د ثواب ذریعه ده ، ځکه چې الله تعالی طَیِّب او د هر قِسم عیب نه پاک دی ، لهذا طیّب مال قبلوي .

بل دا چې که یو سړي سوچ وکړي نو دا کوم مال چې دده سره دی دا خو هم الله ﷻ ده ته ورکړی ، اوس چې دې د الله ﷻ د رضا د پاره بې کاره او کمزورې مال ورکوي نو دا خو ډیره بې اَدبي او د غیرت نه خلاف خبره ده .

لهذا په زکوة کې بهترین او پاکیزه مال د ثواب ذریعه ده .

بل دا چې دا زکوة او خیرات خو خلق د خپل ځان دپاره د آخرت ذخیره جمع کوي چې صبا یې د مرګ نه روستو په قبر او قیامت کې په کار راشي ، او دا کوم مال چې دده نه دلته پاتې شي دا خو دده د وارِثانو وي ، نو اوس دا د هوښیارتیا خبره نه ده چې سړې ځان دپاره بې کاره شی مخکې ولیږي ، او وارِثانو ته بهترین شی پریږدي ، بلکه د ځان دپاره بهترین او اعلی شی د الله ﷻ سره جمع کول په کار دي .

۷. **اووم ادب** دادی چې سړې دا په داسې ځایونو کې خرچ کړي چیرته چې ده ته ډیر ثواب ملاویږي لکه :

۱ . متّقي او پرهیزګار فقیر ته یې ورکړي ، کوم چې د آخرت په کارونو کې مشغول وي ، نبي علیه السلام فرمایي :

وَلَا يَأْكُلْ طَعَامَكَ إِلَّا تَقِيٌّ . (۱)

ستا خوراک دې د متقیانو نه علاوه بل څوک او نه خوري .

ځکه چې د متّقي سره په امداد کولو د هغه سره په تقوی او عبادت کې امداد کیږي ، او د هغه په عبادت کې ستا هم حصه جوړیږي .

۲ . یا اهلِ علمو ته یې ورکړي ، ځکه عِلم خو په ټولو عباداتو کې اشرف او اعلی عبادت دی ، نو غریبو طالبانو او علماؤ ته زکوة ورکول د عِلم په خوَرولو کې د هغوی سره مدد کول دي .

۳ . یا یې داسې کس ته ورکړي چې غریب وي خو د حَیاء او مُروّت د وجې خلقو ته د خپلې غریبۍ شکایت نه کوي ، او نه خلقو ته خپل حاجتونه ښکاره کوي ، دې اگر چې په ظاهره مالداره معلومیږي خو په حقیقت کې غریب وي . دداسې کس په تعریف کې الله ﷻ فرمایي:

﴿لِلْفُقَرَآءِ الَّذِيْنَ أُحْصِرُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللهِ لَا يَسْتَطِيْعُوْنَ ضَرْبًا فِي الْأَرْضِ يَحْسَبُهُمُ الْجَاهِلُ أَغْنِيَاءَ مِنَ التَّعَفُّفِ تَعْرِفُهُمْ بِسِيْمَاهُمْ لَا يَسْأَلُوْنَ النَّاسَ إِلْحَافًا . وَمَا تُنْفِقُوْا مِنْ خَيْرٍ فَإِنَّ اللهَ بِهِ عَلِيْمٌ﴾ . (۲)

ترجمه : دا صدقات اصل حق د هغه فقیرانو دی کوم چې د الله ﷻ په لاره ( یعنی دیني خدمت ) کې بند شوي وي ، ( د کاروبار کولو د پاره ) چیرته په زمکه کې د سفر کولو طاقت نه لري ، د دوی د حال نه ناخبره کس د دوی د سوال نه کولو په وجه په دوی باندې د مالدارو گمان کوي ( حالانکه دوی مالدار نه وي خو د حیاء د وجې د خلقو نه سوال نه کوي ) ، البته ته به دا خلق ( او د دوی اصلي حالت ) د مخونو او نښو نه پیژني ( چې په مخ او بدن به یې د کمزورتیا آثار ښکاره وي ، او ) دوی د خلقو نه په نښتلو سره سوال نه کوي ( یعنی د خلکو نه داسې سوال نه کوي چې د هغوی پورې اُونخلي ، او ځان ورپورې سَم مچې کړي ) ، او تاسو چې څه مال خرچ کوی ( په دغه حیاناکو فقیرانو باندې ) نو بیشکه الله تعالی په هغې باندې

(۱) اخرجه ابوداؤد ج ۳ ص ٦٦۴ حدیث ۲۳۳۷ ، والترمذي .

(۲) البقرة آیت ۲۷۳ .

پوهه دی (په نورو خلقو باندې د خرچ کولو په نسبت په دغه حیاناکو فقیرانو باندې خرچ کولو سره به تاسو ته ډیر اَجر درکړي) . (۱)

۴. یا غریب خپلوان ته یې ورکړي (خو بغیر د اصولو او فروعو ، او ښځې او خاوند نه، ځکه دوی ته زکوة ورکول صحیح نه دي) . رِشته دار ته په زکوة او خیرات ورکولو کې دوه اجره دي : یو د صله رحمی ، او دویم د زکوة ورکولو .

۵. یا یې داسې غریب بال بچه داره ته ورکړي چې د کور افراد یې ډیر وي خو د آمدنی پوره انتظام یې نه وي .

یا یو غریب په څه سخته بیماری یا بل مشکل کې ګیر وي چې اِقتصادي حالات یې خراب وي . نو دې ټولو ته په زکوة ورکولو کې اجر زیات دی .

۸. **د زکوة اتم ادب** دادی چې دا خپل زکوة او خیرات به په خپل نظر کې کمزوری ګڼي ، ځکه که ده ته دا زکوة ورکول ډیر شی معلوم شي نو په دې سره انسان په عُجب کې مبتلاء کیږي ، چې دا ځانله یوه خطرناکه بیماريْ ده ، او الله ﷻ ته عُجب ډیر نا خوښه دی .

**عُجب او تکبر الله ﷻ نه خوښوي** : په احادیثو کې دا واقعه په تفصیل سره ذکر ده چې د حُنین په ورځ کله د مسلمانانو تعداد د کافرانو په مقابله کې زیات وُ ، نو د مسلمانانو زړونو ته دا خبره راغله چې :

نن خو مونږ ډیر زیات یو ، مغلوبه کیږو به نه .

نو دوی ته په دې ډیر والي عُجب پیدا شو ، الله ﷻ ته دا خوښه نه شوه ، نو په اول کې مسلمانانو ته شکست ملاؤ شو ، او ډیر والي یې په هیڅ کار رانغی ، بیا الله ﷻ د دوی مدد د فرښتو په ذریعه وکړو ، او مسلمانانو ته یې فتحه ورکړه . اللّٰه رب العزت د دې تذکره کړی :

﴿ وَيَوْمَ حُنَيْنٍ إِذْ أَعْجَبَتْكُمْ كَثْرَتُكُمْ فَلَمْ تُغْنِ عَنكُمْ شَيْئًا وَضَاقَتْ عَلَيْكُمُ الْأَرْضُ بِمَا رَحُبَتْ ثُمَّ وَلَّيْتُم مُّدْبِرِينَ ﴾ . (۲)

---

(۱) معارف القرآن .

(۲) التوبة آيت ۲۵ .

ترجمه : ( الله تعالی ستاسو امداد په ډيرو موقعو کړی ) او د حُنين په ورځ يې هم ستاسو مدد کړی ( خو ) کله چې تاسو په تعجب کې واچولی ستاسو ډير والي ، پس دغه ډير والي ستاسو هيڅ په کار رانغی ، او زمکه درباندې سره د فراخوالي تنګه شوه ، بيا تاسو مخ په شا وګرځيدی .

**فايده** : اګر چې بيا الله ﷻ مومنانو ته دوباره فتح ورکړه ، خو دا په ابتداء کې چې يې شکست اُوخوړ نو دا ځکه چې مسلمانانو ته اول په خپل ډير والي باندې عُجب ؤ ، او دا الله ﷻ ته خوښ نه شو .

**نيکي وړه ګڼل** : علماء ليکي چې کله يوه نيکي په خپل نظر کې څومره وړه ګڼړلې شي نو هم دومره مقدار د الله ﷻ په نزد دا غټه ګڼلې شي ، او ګناه چې څومره اندازه په خپل نظر کې غټه ګڼلې شي نو هماغومره اندازه د الله ﷻ په نزد وړه او کمه ګڼړلې شي .
لهذا انسان ته په کار دي چې که خپل زکوة او خيرات که هر څومره ډير ورکړي دا به په خپل نظر کې کم ګڼي ، ددې د پاره چې د ډير ګڼلو په وجه چيرته په عُجب او تکبر کې رانشي ، او دغه نيکي يې ضائع نه شي .

۹ . **د زکوة نهم ادب** دادی چې د زکوة په اداکولو کې تادي وکړې شي ، بلکه که د زکوة د واجب کيدو نه يې څه وخت مخکې ورکړي نو هم ډيره به ښه وي ، ځکه په مخکې اداکولو سره د الله ﷻ د حکم په منلو کې خپل رغبت ښکاره کول دي .
بل د فقيرانو زړونه پرې خوشحاليږي ، ځکه د زکوة په روستو کولو کې د مال د هلاکيدو او نورو ډيرو آفتونو خطره وي .
بل دا چې کوم علماء د زکوة واجب کيدو نه پس فورًا زکوة ورکول ضروري ګڼي نو د هغوی په نزد خو دا سړی د زکوة په روستو کولو سره ګناهګاريږي .

## د زکوة اِجمالي فوايد

خلاصه دا چې د زکوة ورکولو ډير فوايد دي ځکه: دا د اسلام اَهم رُکن دی، مال ورسره پاکيږي، د مال د برکت او زيادت سبب ګرځي، آفتونه پرې دفع کيږي، د انسان نفس د بُخل نه پرې بچ کيږي، د معاشرې دتقويت او اِتحاد سبب ګرځي، د فقير حاجت پرې پوره کيږي، د مال د نعمت شکريه پرې ادا کيږي، او د دواړو جهانونو د سعادت او کاميابۍ ذريعه ګرځي. (۱)

## د زکوة نه اداء کولو اَسباب

زکوة چونکه يوه اَهمه فريضه ده، او په قرآن کريم او احاديثو کې د دې ډير فوايد بيان شوي، خو بيا هم بعضې خلق د دې اهمې فريضې نه غافِل دي او زکوة نه ورکوي، دا ځکه چې د دې دپاره ظاهري يو څو اسباب دي:

۱. د دې خلقو په زړونو کې د شرعي احکامو (فرائضو، واجباتو او اَرکانو) څه اهميت نه وي، بلکه صرف د خپلو روپو جمع کولو غم ورسره وي، نو ځکه زکوة نه ورکوي.

۲. بعضې خلق دا ګمان کوي چې مونږ نور ډير د خير کارونه کوو نو که دا يو زکوة ورنه کړو نو دا څه پرواه نه کوي، حالانکه دا سوچ غَلط دی، ځکه زکوة په خپل ځای اَهمه فريضه ده، د بل عبادت په اداکولو سره دا نه اداکيږي، بلکه هم دا زکوة ورکول ضروري دي.

۳. بعضې خلقو ته د زکوة اَهميت او مسايل معلوم نه وي، او دا ورته پته هم نه وي چې ګنې په مونږ باندې زکوة فرض دی، حالانکه دوی مالدار وي، زکوة ورباندې فرض وي. نو ځکه ټول عمر د دې اهمې فريضې اداکولو نه محرومه پاتې شي.

۴. د بعضې خلقو په زړونو کې د دُنيا محبت دومره ورننوتې وي او بُخل ورباندې دومره غالِب شوې وي چې بيا هغه ته زکوة ورکول ډير ګران معلوميږي، بلکه زکوة ورکول ورته يو مالي تاوان معلوميږي.

(۱) نضرة النعيم في مکارم اخلاق الرسول الکريم صلی الله عليه وسلم ج ٦ ص ٢٢١٦ الزکاة.

حالانکه د دُنيا محبت او بُخل دواړه بدترين صفتونه دي چې د انسان د هلاکت او بربادۍ سبب ګرځي ، نو ځکه شريعت ده ته د زکوة ورکولو حکم کړی چې دده د زړه نه دا د دُنيا محبت او بُخل اوو ځي .

# خلاصه

قدرمنو ! د انسان په کار صرف هغه مال راځي کوم چې ده په خپل ژوند کې د الله ﷻ د رضا دپاره په فقيرانو ، مسکينانو او حقدارانو باندې لږولې وي ، بلکه د مرګ نه روستو اکثر هيڅ مړې هم د چا په ياد نه وي ، بلکه صرف يو څو ورځې ورپسې خپل بچې ، ښځه او والدين څه لږې اُوښکې تويې کړي بيا په کلونو کلونو د هيچا په ياد کې هم نه وي ، بلکه هر کس په خپلو مصروفياتو کې ډوب وي .

لهذا انسان ته په کار دي چې په خپل ژوند کې د مال فرضي حقوق ادا کړي .

# دُعا

الله تبارک وتعالى دې مونږ ته په صحيح طريقې سره د خپل مال نه د زکوة او خيرات اداکولو توفيق راکړي ، او الله ﷻ دې زمونږ د زړونو نه د دُنيامحبت اوبُخل اوباسي ، او زمونږ په زړونو کې دې سخاوت او اخلاص پيدا کړي .

آمِيْن يَارَبَّ الْعَالَمِيْن .

وَاٰخِرُ دَعْوَانَا اَنِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ

# د زکوة په باره کې ضروري فقهي مسائل

**د مقررينو دپاره ضروري تنبيه** : چونکه د زکوة مسايل څه ناڅه پيچيده او گران دي، او اکثر مسايل يې عوامو ته نه دي معلوم، لهذا د زکوة په باره کې درته ضروري فقهي مسائل په تفصيل سره د معتمدو کتابونو نه ليکم.

تاسو کولې شئ چې د وخت، موقع، او ضرورت په اَساس ددې مسائلو نه ځان ته اِنتخاب وکړئ، او بيان يې کړئ.

د هغه مسايلو غټ اجمالي عنوانات دا دي:

۱. زکوة په چا واجب دی؟
۲. زکوة په کوم مال کې واجب دی او په کوم کې واجب نه دی؟
۳. زکوة چاته ورکول جائز دي؟
۴. او چاته ورکول ناجائز دي؟
۵. د زکوة نور متفرِق مسايل.

## زکوة په چا فرض دی؟

کوم عاقل، بالِغ، آزاد مسلمان چې صاحب د نصاب وي يعنی اووه نيمې تولې سره زَر ورسره وي، يا دوه پنځوس نيمې تولې سپين زَر ورسره وي، يا د دوه پنځوس نيمو تولو سپينو زرو د قيمت په اندازه روپۍ ورسره وي، او دا د ضرورتِ اصليه نه زياتي وي، په دا څه قرض نه وي، او په دې کال تير شي نو په داسې کس زکوة ورکول فرض دي. (۱)

---

(۱) وشرط افتراضها: عقل، وبلوغ، واسلام، وحرية، والعلم به ولو حكماً لكونه في دارنا. وسببه: اى سبب افتراضها ملك نصاب حول نام فارغ عن دَين له مطالب من جهة العباد وعن حاجته الاصلية. شامي نعمانيه ج۲ ص۱ كتاب الزكوة، مطلب الفرق بين السبب والعلة والشرط، مجمع الانهر ج۱ ص۲۸۵ اول كتاب الزكاة، هداية على الفتح القدير ج۲ ص۱۵۲ كتاب الزكاة.

## د نابالغه او مجنون په مال کې زکوة نشته

د نابالغه او هغه ليوني په مال کې زکاة نشته کوم چې په هوش کې نه راځي . (۱)

## د لږو سروزرو او لږو سپينوزرونه د زکوة ورکولو مسئله

که چيرته د يو کس سره اووه نيمې تولې سره زر نه وو ، بلکه د نصاب نه کم وو مثلا څلور تولې سره زر وو ، دغه شان سپين زر هم ورسره د دوه پنځوس نيمو تولو نه کم وو مثلا دولس تولې وو ، نو د دېنه د زکوة ويستلو طريقه داده چې د سرو زرو او سپينو زرو قيمت به اولږوي که د دينه د سپينو زرو نصاب پوره کيده (يعنی دوه پنځوس نيمې تولې سپين زر ورباندې کيده ، يا د دې قيمت ته رسيده) نو په دې سرې باندې زکوة فرض دی ، دې به څلويښتمه (۴۰) روپۍ زکوة ورکوي . (۲)

---

(۱) ومنها العقل والبلوغ . فليس الزكوة على صبي ومجنونٍ ... هنديه ج۱ ص ۱۷۲ كتاب الزكوة الباب الاول . / قوله : عقل وبلوغ فلا تجب على مجنون وصبي . شامي نعمانيه ج۲ ص ۴ ، عناية مع فتح القدير ج۲ ص ۱۵٦ كتاب الزكاة ، مجمع الانهر ج۱ ص ۲۸٦ ، فتاوى محموديه ج۱۴ ص ٦۳ وجوب زكوة . / ومنها العقل والبلوغ فليس الزكوة على صبي ومجنون اذا وجد منه الجنون في السنة كلّها . هكذا في الجوهرة النيرة ، فتاوى عالمگيري ۱ : ۱۷۲ كتاب الزكاة ، فتاوى فريديه ج۳ ص ۳٦۰ باب وجوب الزكاة .

(۲) ويضمّ الذهب الى الفضة قيمةً . قوله : قيمة اى من جهة القيمة . فمن له مائة درهم وخمسة مثاقيل قيمتها مائة عليه زكاتها . الدرالمختار على رد المحتار ج۲ ص ۳۰۳ باب زكاة المال ، مجمع الانهر ج۱ ص ۳۰۷ باب زكاة الذهب والفضة ، باب العاشر ، البحر الرائق ج۲ ص ۲۳۰ كتاب الزكوة ، قبيل باب العاشر ، فتاوى محموديه ج ۱۴ ص ۹۱ . / قال العلامه برهان الدين المرغيناني : ويضمّ الذهب الى الفضة للمجانسة من حيث الثمنية ومن هذا الوجه صار سببا ثم يضم بالقيمة عند ابي حنيفة رحمه الله . هداية على صدر فتح القدير ۲ : ۱٦۹ فصل في العروض كتاب الزكاة ، فتاوى فريديه ج ۳ ص ۴۰۵ . / وتضم قيمة الى الثمنين والذهب الى الفضة قيمة . كذا في الكنز . حتى لو ملك مأة درهم وخمسة دنانير قيمتها مأة درهم تجب الزكوة عنده خلافا لهما . الفتاوى العالمكيرية كتاب الزكوة الباب الثالث في زكوة الذهب والفضة والعروض ج۱ ص ۱۷۹ ، وهكذا في رد المحتار ج۲ ص ۳۰۳ ، والبحر ج۲ ص ۴۰۰ باب زكوة المال .

## د نصاب نه کم سره زَر او څه نغدو روپو په موجوديدو سره د زکوة حکم

که چيرته د يوې ښځې سره د اووه نيمو تولو نه کم سره زَر وي (مثلا څلور تولې سره زر وي)، او څه نغدې روپۍ هم ورسره وي، چې دضرورتِ اصليه نه زياتې وي، او په دې باندې کال تير شي، نو ددې نه د زکوة ويستلو طريقه داده چې ددې سرو زرو قيمت به اولګولې شي او دا روپۍ به هم ورسره يو ځاى کړې شي، اوس که چيرته دا مجموعه روپۍ د دوه پنځوس نيمو تولو سپينو زرو قيمت ته رسيدى نو په دې ښځه باندې زکوة فرض دى، څلويښتمه روپۍ زکوة به ورکوي. دغه شان په دې ښځه باندې قرباني هم واجب ده. (۱)

## د عُشر ثبوت د قرآن کريم نه

حافظ ابوبکر جصاص رازي رحمه الله په احکام القرآن کې ذکر کړي چې په دې باندې د ټول امت اتفاق دى چې په دې آيت ﴿وَآتُوا حَقَّهُ يَوْمَ حَصَادِهِ. (۲)﴾ کې د حق نه مراد عُشر دى. (۳)

بعضې اَيمه وُ د آيت ﴿يَآ أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَنْفِقُوا مِنْ طَيِّبٰتِ مَا كَسَبْتُمْ وَمِمَّآ أَخْرَجْنَا لَكُمْ مِّنَ الْأَرْضِ﴾ نه هم استدلال کړى. (۴)

---

(۱) وفى النهر قال الزاهدي: وله أن يقوّم احد النقدين ويضمّه الى قيمة العروض عند الامام. وقالا لايقوّم النقدين بل العروض ويضمّها. وفائدته تظهر في مَن له حنطةٌ للتجارة قيمتها مأة درهم. وله خمسة دنانير قيمتها مأة تجب الزكوة عنده خلافا لهما. رد المحتار هامش الدرالمختار ۲: ۳۷ باب زكاة المال، فتاوى فريديه ج۳ ص ۴۰۲. همدغه شان مضمون مولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله په بهشتي زيور کې د زکوة په بيان نهمه مسئله کې هم ليکلى.

(۲) الانعام آيت ۱۴۱.

(۳) اتفاق الامّة على وجوب الحق في كثير من الحبوب والثمار وهو العشر ونصف العشر. احكام القرآن للجصاص ج۳ ص ۱۰، ذكر الخلاف في الموجب فيه. ط، بيروت. روح المعاني ۳۸/۸ سورة انعام آيت ۱۴۱، تفسير مظهري ۲۹۲/۳ ط. رشيديه كوئټه. فتاوى محموديه ج۱۴ ص ۳۲۳.

(۴) ولقوله تعالى ﴿وَمِمَّآ أَخْرَجْنَا لَكُمْ مِّنَ الْأَرْضِ. البقرة آيت ۲۶۷﴾ ويحتج به لابي حنيفة رحمه الله في ايجابه العشر. احكام القرآن للجصاص ج۱ ص ۴۵۸ باب المكاسبة، زيلعي ۲۹۲/۱ باب العشر، بدائع زكريا ص ۱۶۹، ۱۷۰/۲ كتاب الزكاة فصل واما زكاة الزروع والثمار. فتاوى محموديه ج۱۴ ص ۳۲۴.

## د زمکې په فصلونو کې عُشر یا نصفِ عُشر واجب دی

د امام ابو حنیفه رحمه الله په نزد د زمکې نه چې هر قِسمه فصل ، میوه او سبزي راووځي نو که چیرته دا په باراني اُوبو یا سمندري اُوبو باندې اُوبه کیده چې په اُوبه کولو یې څه خرچه نه کیده نو دداسې زمکې په پیداوار کې عُشر یعنی لسمه حصه زکوة واجب دی (یعنی په لس مَنه کې به یو مَن زکوة ورکوي) .

او که دا زمکه د یَیعې په اُوبو اُوبه کیده لکه : په تیوب وِل ، یا په اَرَټ ، یا د بجلی په موټر ، یا په داسې سرکاري نهر اُوبه کیده چې حکومت دد ې نهر آبیانه اخیسته نو دداسې زمکې په پیداوار کې نصفِ عُشر یعنی شلمه حصه زکوة واجب دی ، (نو په شلو منونو کې به یو مَن ، او په شلو سیرو کې به یو سیر زکوة ورکوي) . (۱)

## کومه ګیاه چې پخپله راختلې وي په هغې کې عُشر نشته

کومه ګیاه چې په خپله را اُوخیجي نو داد چا مملوک نه وي ، لهذا په دې کې عشر هم نه وي (۲)

## د زمکې د پیداوار نه به خرچه نشي کټ کولی

د زمکې نه چې کوم فصل وغیره راووځي نو عشر به دد ې ټولو نه ورکوي ، داسې به نه کوي چې اول ورنه د تخم ، د یَوې او دوایي وغیره خرچه کټ کړي . بلکه د ټول پیداوار نه به عشر ورکوي . (۳)

---

(۱) لما رواه البخاري مرفوعا فيما سقت السماء والعيون او كان عثريا العشر وما سقي بالنضح نصف العشر . مشكوة المصابيح ۱ : ۱۵۹ باب ما يجب فيه الزكوة الفصل الاول كتاب الزكاة ./ ويجب العشر عند ابي حنيفة رحمه الله في كل ما تخرجه الارض . فتاوى عالمكيريه ۱ / ۱۸٦ الباب السادس في زكاة الزرع والثمار كتاب الزكاة ./ وفي الهندية : وما سقي بالدولاب والدالية ففيه نصف العشر ... فتاوى عالمكيريه ۱ : ۱۸٦ الباب السادس في زكاة الزرع والثمار . قال العلامة الحصكفي : ويجب نصفه في مسقي غرب اى دلو كبير . ودالية اى دولاب لكثرة المؤنة . الدرالمختار على هامش رد المحتار ۲ : ۵۵ باب العشر . فتاوى فريديه ج۳ ص ۴۹۴ .

(۲) لانه لايقصد به استغلال الارض . الدرالمختار على هامش رد المحتار ۲ : ۵۵ باب العشر ، فتاوى فريديه ج۳ ص ۴۷٦

(۳) قال العلامة الحصكفي : بلا رفع مؤن اى كلف الزرع . وبلا اخراج البذر لتصريحهم بالعشر في كل الخارج . الدرالمختار على هامش رد المحتار ۲ : ۵٦ باب العشر ، فتاوى فريديه ج۳ ص ۴۸۳ .

## د عُشر یا نصفِ عُشر د پاره غناء او نصاب شرط نه دی

د زمکې نه چې کوم فصلونه، میوې او سبزیانې راووځي نو د امام صاحب په نزد په دې کې لسمه حصه یا شلمه حصه زکوة واجب دی، ددې د پاره نه خو ددې کس مالداري او صاحبِ نصاب کیدل شرط دي، نه پرې کال تیریدل شرط دي، او نه ددې د وجوب د پاره څه مقدار شرط دی، بلکه په هر فصل، هره سبزي او هره میوه کې چې د زمکې نه راووځي لسمه حصه یا شلمه حصه زکوة واجب دی، ځکه په قرآن کریم او احادیثو کې عموم دی، څه قید په کې نشته. (۱)

## په عُشر او زکوة کې فرق

په عُشر او زکوة کې یو څو فرقونه دي: اول دا چې په عُشر کې څه مقرر نصاب نشته، بلکه هر شی چې د زمکې نه پیدا شي په هغې کې عشر ورکول لازم دي، او د زکوة د پاره یو حد مقرر دی چې هغې ته اورسي نو بیا زکوة ورکول لازم دي.

دویم دا چې په عشر کې کال تیریدل شرط نه دي، نو که چیرته په یو کال کې دوه فصلونه اوشي نو د دواړو نه عشر ورکول لازم دي، او د زکوة د پاره کال تیریدل شرط دي.

---

(۱) قال العلامة الكاساني: ولابي حنيفة عموم قوله تعالى: ﴿يَآ أَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْآ أَنْفِقُوْا مِنْ طَيِّبَاتِ مَا كَسَبْتُمْ وَمِمَّا أَخْرَجْنَا لَكُمْ مِنَ الْأَرْضِ. البقرة آيت ۲٦۷﴾ وقوله عزوجل: ﴿وَاٰتُوْا حَقَّهٗ يَوْمَ حَصَادِهٖ. الانعام آيت﴾ وقول النبي ﷺ ماسقته السمآءُ ففيه العشر وماسقي بغرب او دالية ففيه نصف العشر. (اخرجه البخاري في صحيحه: ۳: ۳۴۷ في الزكاة باب العشر فيما يسقي من ماء السماء) من غير فصل بين القليل والكثير. ولانّ سبب الوجوب وهي الارض النّامية بالخارج لايوجب التفصيل بين القليل والكثير. بدائع الصنائع ۲: ۱۸۰ باب العشر شرائط المحلية، فتاوى فريديه ج۳ ص ۴۴۷. / يجب العشر في ارض غير الخراج وتجب في مسقى سماء اى مطر بلا شرط بقاء وحولان حول. ويجب نصفه في مسقى غرب اى دلو كبير، ودالية اى دولاب. الدرالمختار على الرد المحتار نعمانية ۴۸/۲، ۵۰، باب العشر. مجمع الانهر ج۱ ص ۳۱۷، ۳۱۹ كتاب الزكاة باب زكاة الخارج. البحر الرايق ۲۳۷/۲ باب العشر، فتاوى محموديه ج۱۴ ص ۳۴۱.

صاحب د هدايه وايي: قال ابوحنيفة رحمه الله وفي قليل ما اخرجته الارض وكثيره العشر سواء سقي سيحاً او سقته السماء. هداية ج۱ ص ۲۰۱، باب زكاة الزرع والثمار. عالمگيري ۱۸۵/۱ الباب السادس في زكاة الزروع والثمار، البحر الرايق ۲۳۷/۲ باب العشر، فتاوى محموديه ج ۱۴ ص ۳۴٦. فتاوى محموديه ج ۱۴ ص ۳۴٦.

دريم دا چې د عشر تعلق چونکه د زمکې سره دی ، نو د ليوني په زمکه کې هم عشر لازم دی ، حالانکه د ليوني په مال کې زکوة نشته .

څلورم دا چې د احنافو په نزد د نابالغه په مال کې زکوة نشته ، البته دده په زمکه عشر لازم دی .

## په قرض داره باندې د زکوة مسئله

که چيرته يو کس صاحب د نصاب وُ ، په ده کال تير شو ، خو په ده باندې قرضه هم شته ، نو دې به اول قرضه ادا کړي ، که اوس دا باقي پاتې مال نصاب ته رسيده ، نو په ده باندې په دې باقي پاتې مال کې زکوة ورکول لازمي دي ، او که دا د نصاب نه کم وُ نو بيا په ده زکوة نشته . (۱)

## د دُکان نه د زکوة ويستلو طريقه

که چيرته يو سړې صاحب د نصاب وي ، او دده دُکان وي او په ده کال تير شي نو دده نه دزکوة ويستلو طريقه داده چې په دُکان کې کوم شيان د خرڅ دي د هغې ټولو قيمت به اُولګوي ، بيا به قرضونه ورنه لرې کړي ، دباقي پاتې مال نه به څلويښتمه (۴۰) روپۍ زکوة اوباسي . (۲)

البته د دُکان عمارت ، ميز ، کرسۍ او اَلمارۍ به په قيمت کې نه حسابوي ، ځکه په دې شيانو کې زکوة نشته ، بلکه صرف هغه شيان به حسابوي کوم چې په دې دُکان کې د خرڅ د پاره ايښودل شوي وي .

---

(۱) قال علي ابن ابي بكر المرغيناني رحمه الله : وان كان ماله اكثر من دَينه زكى الفاضل إذا بلغ نصابًا . الهداية ج۱ ص ۱۶۸ كتاب الزكوة . / قال علاؤ الدين الحصكفي رحمه الله : فلا زكوة على مكاتب و مديون للعبد بقدر دَينه فيزكي الزايد إن بلغ نصابًا . الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲ ص۲۶۳ كتاب الزكوة ، ومثله في فتح القدير ج۲ ص۱۱۸ كتاب الزكوة ، فتاوى حقانيه ج۴ ص ۶۵ .

(۲) الزكوةُ واجبة في عروض التجارة كائنة مَاكانت . اى كائنة أي شيء يعني من جنس ما تجب فيه الزكوة كالسوائم . او غيرها كالثياب إذا بلغت قيمتها نصابًا من الورق أو الذهب ... اللباب في شرح الكتاب ج۱ ص۱۴۵ كتاب الزكوة ، آپ کے مسائل اور ان کا حل ج۵ ص ۱۳۰ .

دغه رنګې که د ډاکټر سره د ډاکټرۍ آلات وي، یا بل کسَب ګر سره د کار آلات وي نو په دې آلاتو کې زکوة نشته، بلکه د دې په آمدنۍ کې به زکوة ورکوي. (۱)

## د زکوة په روپو باندې د مشترکه مفادو د پاره اَسباب نشي اخیستی

که چیرته د یوې علاقې یا محلې خلق د غَم یا ښادۍ د پاره مشترکه اَسباب اخلي لکه لوخي، کرسۍ او تمبوان، نو دا شیان د زکوة په روپو نشي اخیستی، ځکه د زکوة د پاره تَمْلِیک بِلَا عِوَضَه شرط دی، او په دې شیانو کې د چا شخصي ملکیت نه وي، لهذا په دې کې د زکوة روپۍ لیږل صحیح نه دي. (۲)

## نشه کوونکو ته د زکوة ورکولو مسئله

زکوة خو (د اصولو او فروعو، ښځه، خاوند او هاشمي نه علاوه) هر فقیر او مسکین ته ورکولې شی خو سړی به د دې لحاظ ساتي چې په دې زکوة ورکولو سره د یو ګناهګار سره په ګناه کولو کې مدد اونه کړې شي، لهذا چرسي، پوډري او اَفیمي ته د دې شیانو د اخیستو د پاره زکوة ورکول مناسب نه دي. (۳)

---

(۱) قال العلامة الحصکفي: ولا في ثياب البدن. واثاث المنزل. و دور السكنى ونحوها ... وكذلك آلات المحترفين. الدر المختار على هامش رد المحتار ۲ : ۸ كتاب الزكوة. فتاوى فريديه ج۳ ص ۳۹۰..

(۲) لما قال علاؤ الدين الحصكفي رحمه الله: ويشترط ان يكون الصرف تمليكًا لا إباحةً كما مرّ. لا يصرف الى بناء نحو المسجد ولا الى كفن ميّت.... لعدم التمليك وهو الركن. الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲ ص ۳۴۴ باب المصرف. / قال فى الهندية: ولايجوز ان يبني بالزكوة المسجد وكذا القناطر والتعايات واصلاح الطرقات... وكلّ مالاتمليك فيه. الفتاوى الهندية ج۱ ص ۱۸۸ كتاب الزكوة الباب السابع فى المصارف، ومثله فى الهداية على صدر فتح القدير ج۲ ص ۲۰۷ باب من يجوز دفع الصدقة اليه.. فتاوى حقانيه ج۴ ص ۷۰. / وكذلك مَن عليه الزكوة لو اَرَاد صرفها الى بناءِ المسجد او القَنْطرة لايجوز . فأن ارَاد الحِلية فالحيلةُ اَن يتصدق به المتولى على الفقراءِ ثمّ الفقراءُ يدفعونه الى المتولي. ثم المتولي يصرف الى ذلك... عالمكيري ج۲ ص ۴۷۳ كتاب الوقف الباب الثاني عشر فى الرباطات والمقابر، الدر المختار على الشامي ج۳ ص ۲۹۱، ۲۹۳ باب المصرف، البحر الرايق ج۲ ص ۲۴۳ باب المصرف، فتاوى محموديه ج۱۴ ص ۲۳۹.

(۳) قال الامام ابوالبركات النسفي رحمه الله: هي تمليك المال من فقير مسلم غيرهاشمي ولا مولاه بشرط قطع المنفعة عن المملك من كلّ وجه لله تعالى. كنز الدقائق على هامش بحر الرائق ج۲ ص ۲۰۱ كتاب الزكوة، ومثله فى بدائع الصنائع ج۲ ص۵ كتاب الزكوة فصل شرائط الفريضة، فتاوى حقانيه ج۴ ص ۷۸.

## په زکوة کې تاخير کول مکروهه دي

کله چې په يو کس باندې زکوة فرض شي نو ددې په اداکولو کې تادي بهتره ده ، او قصدًا عمدًا زکوة روستو کول مکروهه دي . (۱)

## د زکوة په اداء کولو کې د موجوده ښار قيمت معتبر دی

يو دُکاندار مثلا د چيني څه بورۍ په پيښور کې واخيستې ، او يوه بورۍ يې په پنځه زره (۵۰۰۰) روپۍ واخيسته ، اوس يې افغانستان ته وې وړی ، هلته ددې قيمت پنځه نيم زره (۵۵۰۰) روپۍ دی . کله چې کال پوره شو ، د چيني بورۍ هماغه شان ورسره په دُکان کې پرتې دي ، او په ده زکوة لازم شو ، نو دې به اوس د پنځه نيم زره (۵۵۰۰) روپو په حساب سره دديته زکوة اُوباسي ، يعنی د همدې ښار د قيمت اعتبار به وي په کوم کې چې دې اوس موجود دی . (۲)

## د بلې علاقې فقيرانو ته زکوة ليږل

په عامو حالاتو زکوة د يوې علاقې نه بلې علاقې ته وړل مکروهه دي بلکه د همدې علاقې په فقيرانو به يې تقسيموي ، خو که چيرته په بله علاقه کې دده خپلوان فقيران وي نو بيا ده ته دا جائز دي چې هغوی ته زکوة ويسي ، بلکه افضل دا دي چې اول خپلو فقيرانو رِشته

---

(۱) قال العلامة ابن الهمام : ماذكر الفقيه ابوجعفر عن ابي حنيفة انه يكره ان يؤخرها من غير عذر . فتح القدير ۲ : ۱۱۴ كتاب الزكوة ./ وفي الهندية : وتجب على الفور عند تمام الحول حتى يأثم بتاخيره من غير عذر . وفي رواية الرازي على التراخي حتي يأثم عند الموت . والاول اصح . كذا في التهذيب ، فتاوى عالمگيرية ۱ : ۱۷۰ كتاب الزكوة الباب الاول/ قال العلامة ابن عابدين : (قوله فيأثم بتاخيرها) ظاهره الاثم بالتاخير ولو قلّ كيوم او يومين . لانهم فسروا الفور باوّل اوقات الامكان . وقد يقال المراد ان لايؤخر الى العام القابل لما في البدائع عن المنتقى اذا لم يؤد حتى مضى حولان فقد اساء واثم . فتأمل رد المحتار هامش الدر المختار ۲ : ۱۴ كتاب الزكوة ، فتاوى فريديه ج۳ ص ۲۶۹ ، ۲۷۹

(۲) ويقوّم في البلد الذي المال فيه . الدر المختار على هامش رد المحتار ۲ : ۲۴ باب زكاة الغنم ، فتاوى فريديه ج۳ ص ۲۷۶ .

دارو ته زکوة ورکړې شي . ځکه په دې کې د زکوة سره سره د صله رحمۍ لحاظ هم شته . (۱)

خو دا کراهت هلته دی چې دازکوة دکال پوره کيدو نه پس ورکوي ، او که يو کس د کال پوره کيدو نه مخکې زکوة ورکوي ، او د بلې علاقې فقيرانو ته يې ورکړي نو دا بيا خير دی . (۲)

## صاحب د نصاب ته که دکال په مينځ کې نورې روپۍ ملاؤ شوې د هغې د زکاة حکم

که چيرته يو کس د کال په اول کې صاحب د نصاب وُ ، او دا روپۍ ورسره د ضرورتِ اصليه نه زياتې وې ، په دې روپو لا تر اوسه کال نه وُ تير شوی چې ددې په مينځ کې دده لاس ته نورې روپۍ هم راغلی ، نو اوس چې کال پوره شي نو ددې ټولو نه به زکوة ورکوي ، په دې روپو باندې مستقل کال تيريدل ضروري نه دي .

دغه شان که د کال په مينځ کې دده روپو ګټه وکړه نو د کال په پوره کيدو به د ټولو روپو نه زکوة ورکوي ، په دې ګټه باندې پوره کال تيريدل ضروري نه دي . (۳)

(۱) لما قال العلامة ابن عابدين رحمه الله : (تحت قوله بل فى الظهيرية لاتقبل) عن ابي هريرة رضي الله عنه مرفوعًا الى النبي ﷺ انه قال يا أمة محمد والذي بعثني بالحق لايقبل الله صدقة مِن رجلٍ وله قرابة يحتاجون الى صلته وليصرفها الى غيرهم والذي نفسي بيده لاينظر الله اليه يومَ القيامة . والمراد بعدم القبول عدم الاثابة عليها وان سقط بها الفرض لانّ المقصود منها سدّ خله المحتاج . وفى القريب جمعٌ بين الصلة والصدقة . والافضل اخوته واخواته ... رد المحتار ج۲ ص۳۵۳ باب المصرف ،/ قال ابن نجيم رحمه الله : ويبدا فى الصّدقات بالاقارب ثم الموالي ثم الجيران ، وذكر في موضع آخر معزيًا الى ابي حفص الكبير لاتقبل صدقة الرجل وقرابته محاويج فيسدّ حاجتهم . البحر الرايق ج۲ ص ۲۴۳ باب المصرف ، ومثله في نورالايضاح ص ۱٦۰ كتاب الزكوة باب المصارف . فتاوى حقانيه ج۴ ص۷۵ .

(۲) قوله وكره نقلها تحريمًا ولو الى ما دون مسافة القصر . قوله بعد تمام الحول أما المعجلة ولو لفقير غير احوج ومديون فتنتفى الكراهة فيها . طحطاوي على المراقي ص ۵۹۴ باب المصرف ، البحرالرائق ج۲ ص ۲۵۰ قبيل باب صدقة الفطر ، عالمكيري ج۱ ص ۱۹۰ الباب السابع فى المصارف ، شامي ج۳ ص۳۰۴ باب المصرف مطلب فى الحوائج الاصلية ، فتاوى محمودية ج۱۴ ص ۲۴۷ .

(۳) وفى الهندية : ومن كان له نصاب فاستفاد في اثناء الحول مالا من جنسه ضمه الى ماله وزكاه سواء كان المستفاد من نمائه اولا . وبأي وجه استفاد ضمه سواء كان بميراث او هبة او غير ذلك . فتاوى عالمكيرية ۱ : ۱۷۵ كتاب الزكوة .

البته که په اول نصاب باندې کال پوره شو بیا د کال نه پس نورې روپۍ یې لاس ته راغلی نو په دې باندې اوس مستقل کال تیریدل ضروري دي . (۱)

## د استعمال په کپړو کې زکوة نشته اګر که پنځوس جوړې وي

که چیرته یو سړي د وَاده د پاره پنځوس یا شپیته جوړه جامې جوړې کړې وي ، او دا یې د استعمال په نیت ایښې وي ، او ددې قیمت نصاب ته رسي ، او په دې باندې کال تیر شي نو بیا هم په دې کې زکوة نشته ، ځکه دا مالِ نامي نه دی . (۲)

البته ددې کپړو ایښودو په وجه په ده صدقة فطر او قرباني واجب ده ، او ددې په وجه د نورو نه زکوة هم نشي اخیستی .

## د سروزرو او سپینوزرو نه علاوه د کور د استعمال په شیانو کې زکوة نشته

د ژوند ضروري اَسباب لکه د استعمال ګاډې ، قالین ، فرنیچر د خدمت د پاره غلام او نور د کور د استعمال اسباب وغیره په دې شیانو کې زکوة نشته ، ځکه دا اموالِ نامیه نه دي او د تجاْرت د پاره هم نه دي . (۴)

مولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله په بهشتي زیور کې لیکلي : د کور اَسباب لکه پتیلې ، دیګچې ، لوي دیګونه ، دخوراک ځکاک لوخي ، داوسیدو مکان ، د اغوستو کپړې ، د ملغلرو هار وغیره شیانو کې زکوة واجب نه دی ، اګر که دا هر څومره ډیر وي ، او که

---

(۱) وفي الهندية : فان استفاد بعد حولان الحول فانه لايضم ويستأنف له حول آخر بالاتفاق . فتاوى عالمكيري ۱ : ۱۷۵ الباب الاول في تفسيرها وصفتها وشرائطها كتاب الزكوة .

(۲) قال العلامة الحصكفي : ولا في ثياب البدن المحتاج اليها لدفع الحر والبرد . الدر المختار على هامش رد المحتار ۲ : ۸ كتاب الزكوة . /وفي الهندية : ومنها كون النصاب نامياً حقيقة بالتوالد والتناسل والتجارة . او تقديرًا بان يتمكن من الاستنماء بكون المال في يده او في يد نائبه . وينقسم كل واحد منهما الى قسمين خلقي وفعلي . فالخلقي الذهب والفضة... والفعلي ما سواهما ويكون الاستنماء فيه بنية التجارة او الاسامة . فتاوى عالمكيرية ۱ : ۱۷۴ كتاب الزكوة . فتاوى فريدية ج۳ ص ۴۱۵ .

(۴) ومنها فراغ المال عن حاجته الاصلية فليس في دور السكنى وثياب البدن واثاث المنازل و دواب الركوب وعبيد الخدمة وسلاح الاستعمال زكوةٌ . فتاوى عالمكيرية ۱ : ۱۷۲ كتاب الزكوة ، فتاوى فريديه ج۳ ص ۳۶۸ ، آپ کے مسائل اور ان کا حل ج۵ ص ۱۱۴ .

دا د روزمره په استعمال کې راځي او که نه راځي خو زکوة پرې نشته، البته که دغه اسباب د تجارت دپاره وو نو بيا پرې زکوة واجب دی. خلاصه دا چې د سرو زرو او سپينو زرو نه علاوه چې نور هر څومره اسباب وي نو که د تجارت دپاره وو نو زکوة پرې شته، او که د تجارت د پاره نه وُ نو بيا پرې زکوة نشته. (۱)

## د پراپرټي واله په پلاټونو او سرمايه کې د زکوة حکم

کوم کس چې د زمکو او پلاټونو د خرڅولو او اخيستلو کاروبار کوي، او په ده باندې کال تير شي نو دې به دپلاټونو د قيمت او نغدو تهولو روپو نه زکوة اوباسي. (۲)

## ذاتي د استعمال په کتابونو کې زکوة نشته

کوم کتابونه چې د تجارت دپاره نه وي بلکه دمطالعې او استعمال دپاره وي نو په داسې کتابونو کې زکوة نشته، اګر چې دده کتابونو قيمت نصاب ته رسي، ځکه کتابونه مالِ نامي نه دي. (۳)

---

(۱) د جنت کالي ص ۱۹۷ مسئله نمبر ۱۴.

(۲) وفى الهندية: واما الدلالة فهي ان يشتري عينا من الاعيان بعروض التجارة او يواجر داره التي للتجارة بعرض من العروض فتصير للتجارة وان لم ينو التجارة صريحا. فتاوى عالمكيريه ۱: ۱۷۴ الباب الاول في تفسيرها وصفتها ومنها كون النصاب ناميا كتاب الزكوة./ وكما في شرح التنوير: او في عروض تجارة قيمته نصاب ماليس بنقد. الدر المختار على هامش رد المحتار ۲: ۴۳ باب زكاة المال، فتاوى فريديه ج۳ ص ۴۲۲.

(۳) لعدم النماء لان المال هو الذهب والفضة والسائمة ومال التجارة. وفى الهندية: وان كانت له كتب تساوى مأتى درهم الا أنه يحتاج إليها للتدريس او التحفظ او التصحيح يجوز صرف الزكوة اليه. كذا في فتاوى قاضي خان. فتاوى عالمكيرية ۱: ۱۸۹، ۲۰۱ الباب السابع في المصارف، فتاوى فريديه ج۳ ص ۴۳۴./ (اما شروط الوجوب) منها فراغ المال عن حاجته الاصلية .... وكذا كتب العلم إن كان من اهله. عالمكيري ج۱ ص ۱۷۲. (وعلى هذا كتب العلم لاهلها) اى على ما ذكرنا من عدم وجوب الزكوة حكم كتب العلم لأهلها. البناية في شرح الهداية، كتاب الزكوة ج۴ ص ۱۹، وكذا في ردالمحتار ج۲ ص ۲۶۵ كتاب الزكوة.

البته که د کتابونو تجارت یې کولو یعنی مکتبه یې وه نو بیا د تجارت په شیانو کې خو زکوة واجب دی۔ (۱)

## د سورلۍ چلولو ګاډي په قیمت کې زکاة نشته بلکه ددې په آمدنۍ کې دی

کوم ګاډي (موټر) چې د سورلۍ چلولو د پاره اخیستل شوي وي (لکه نن صبا فلائنګ کوچ، ټرک او دا غټ ګاډي وغیره) نو دکال په تیریدو سره ددې په قیمت کې زکاة نشته بلکه ددې په آمدنۍ او حاصلاتو کې زکوة دی، یعنی چې ددې په آمدنۍ باندې کال تیر شي او د ضرورتِ اصلیه نه زیاتي وي نو په دې کې به زکوة ورکوي۔ (۲)

البته که د یو سړي د ګاډو بارګین وي یعنی ګاډي اخلي او خرڅوي، او په دې باندې کال تیر شي نو اوس به ددې ګاډو په قیمت کې زکوة فرض وي۔ (۳)

خو که کوم موټر یې د ذاتي استعمال د پاره اخیستې وُ نو په دې کې زکوة نشته، ځکه په دې کې نُمو نشته۔

## د کرایه په کورونو او دُکانونو کې زکوة نه وي، بلکه ددې په کرایه کې وي

که چیرته د یو سړي ډیر کورونه او دُکانونه وي او دا یې نورو خلقو ته په کرایه ورکړي وي، نو ددې کورونو او دُکانونو په قیمت کې زکوة نشته، بلکه ددې نه چې کومه کرایه

---

(۱) قال العلامة ابن عابدين: لابأس ان يعطي من الزكوة من له مسكن وما يتأثث به في منزله وخادم وفرس وسلاح وثياب البدن وكتب العلم إن كان من أهله فان كان له فضل عن ذلک تبلغ قيمته مأتى درهم حرم عليه أخذ الصدقة. رد المحتار هامش الدر المختار ۲: ۷۰ باب المصرف، بحر الرايق، هنديه، فتاوى فريديه ج۳ ص ۴۱۵۔

(۲) وفى الهندية: ولواشترى قدورًا من صفر يمسكها و يؤاجرها لاتجب فيها الزكوة كما لاتجب في بيوت الغلة. فتاوى عالمكيرية ۱:۱۸۰ قبيل مسائل شتى كتاب الزكوة، فتاوى فريديه ج۳ ص ۳۸۹./ ونظيره ما في مجموعة الفتاوى: رجلٌ اشترى اعيانا منقولة يواجرها مياومة ومشاهرة ومسانهة ويحصل له من المنقولات مالٌ عظيم لايجب الزكاة فيها لانها ليست بمال التجارة فانه يمسكها وينتفع بها نوع انتفاع فصار كالاستعمال فلم يجب في ذلک شيء. كذا في خزانة الروايات. مجموعة الفتاوى للعلامة عبدالحي الكهنوي ۱: ۳۶۳ كتاب الزكوة. فتاوى فريديه ج۳ ص ۴۲۹۔

(۳) وفي الهندية الزكوة واجبة في عروض التجارة كائنة ماكانت إذا بلغت قيمتها نصابا. فتاوى عالمكيرية ۱: ۱۷۹ الفصل الثاني في العروض. فتاوى فريديه ج۳ ص ۴۲۹۔

راجمع کيږي او هغه د ضرورتِ اصليه نه زياتي وي او په هغې کال تير شي نو بيا به د هغې نه زکوة ورکوي. (۱)

## مالدار سړي د کال پوره کيدو نه مخکې هم زکوة ورکولې شي

چې، کله سړي صاحب د نصاب وي او زکوة ورباندې فرض وي نو د کال د تيريدو نه مخکې هم زکوة ورکولې شي، دغه رنګې د راتلونکو څو کلونو زکوة د مخکې نه ورکول هم جائز دي. (۲)

مولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله ليکلي: که مالدار سړي د کال پوره کيدو نه اول زکوة ورکړي نو هم ادا شو، او که مالداره نه وُ بلکه د چيرته نه يې د څه مال راتلو اميد وُ او ده د مخکې نه د هغې زکوة ورکړو نو دا زکوة نه اداء کيږي ... که مالدار سړي د ډيرو کلونو زکوة په يو ځاې پيشګي ورکړي نو هم جائز دی، البته که په مال کې زيادت راغلی وُ نو د هغه زياتي مال زکوة به هم ورکوي. (۳)

## د زکوة ورکولو په وخت د زکوة تذکره او په څُله وينا ضروري نه ده

مستحق ته د زکوة ورکولو په وخت دا ويل ضروري نه دي چې " دا زکوة دی " بلکه زکوة د هديې او تحفې په نوم هم ورکولې شي. بل دا چې ددې دوه وُ وختونو نه که په يو

---

(۱) قال العلامة عبدالحي: وفي مجمع البركات: رجلٌ اشترى اعياناً منقولة يواجرها مياومة ومشاهرة ومسانهة ويحصل له من المنقولات مالٌ عظيم لايجب الزكاة فيها لانها ليست بمال التجارة فانه يمسكها وينتفع بها نوع انتفاع فصار كالاستعمال فلم يجب في ذلک شيء. كذا في خزانة الروايات. په همدې کتاب کې بل ځاې ذکر دي: ولواشترى قدوراً من الصفر يمسكها ويواجرها لايجب فيها الزكاة كما لايجب في بيوت الغلة. كذا في فتاوى قاضي خان، مجموعة الفتاوى ۱: ۳۶۳ كتاب الزكوة، فتاوى فريديه ج۳ ص ۲۴۵ ./اشرف علي تهانوي رحمه الله ليکلي: که د چا سره پنځه يا لس کورونه وي او په کرايه يې چلوي، يا لوخي وي ورسره او په کرايه يې چلوي نو په دې کې زکوة نشته. غرض دا چې په کرايه د چلونکي مال اسباب يا مکانونو کې زکوة نشته. د جنت کالي ص ۱۹۷ مسئله نمبر ۱۵

(۲) ولو عجل ذو نصاب زكوته لسنين أو لنصب صح لوجود السبب. الدرالمختار ج۲ ص ۲۹۳ كتاب الزكوة. /وفي الهندية: وكما يجوز التعجيل بعد ملک نصاب واحد عن نصاب واحد يجوز عن نصب كثيرة. كذا في فتاوى قاضي خان، فتاوى عالمگيري ج۱ ص ۱۷۶ كتاب الزكوة، آپ کے مسائل اور ان کا حل ج۵ ص ۱۰۳.

(۳) د جنت کالي ص ۱۹۸ مسئله نمبر ۲۲، ۲۳.

وخت کې هم د زکوة نیت اوشي نو زکوة اداء کیږي : یو د زکوة روپۍ د نورو روپو نه د راجدا کولو په وخت . او دویم فقیر ته د ورکولو په وخت . په دې دوه وختونو کې که صرف په وخت کې د زکوة نیت اوشي نو زکوة اداء کیږي . (۱)

د غه رنګې مستحق ته د زکوة ورکولو په وخت په خُله نیت ضروري نه دی ، بلکه په زړه کې نیت کافي دی . (۲)

## د عام کس د پاره ټي وي او ریډیو حاجتِ اصلیه نه دی

د عام کس د پاره ټي وي او ریډیو په حاجتِ اصلیه کې داخل نه دی ، ځکه آلات د لهوې او آلات د عیاشۍ په حاجتِ اصلیه کې داخل نه دي . نو که د چا سره قیمتي ټي وي ، ټیپ یا ریډیو وي نو په دې سره سړې غني کیږي ، د بل نه زکوة نشي اخیستی ، په ده سرسایه او قرباني واجب ده . البته د دې ټي وي او ریډیو په قیمت کې زکوة نشته ، ځکه دا مالِ نامي نه دي . (۳)

او که څوک په حکومت او سیاست کې حصه اخلي نو بیا د ده د پاره ټي وي او ریډیو په حاجتِ اصلیه کې شمار دي . (۴)

---

(۱) لما في الهندية : ومن اعطى مسكينًا دراهم سمّاها هبة او قرضًا ونوى الزكوة فانّها تجزيه وهو الاصح . الفتاوى الهندية ج۱ ص ۱۷۱ كتاب الزكوة الباب الاول ، البحر الرائق ج۲ ص ۲۱۲ كتاب الزكوة ، فتاوى حقانيه ج۴ ص ۵۱ ./ وشرط صحة ادائها نية مقارنة له الى الاداء ... وفي شرحه : قوله نية اشارة الى أنه لا اعتبار للتسمية فلو سمّاها هبة أو قرضا تجزيه في الاصح . شامي ج۲ ص ۲٦۸ كتاب الزكوة .

(۲) نوى الزكوة إلا أنّه سمّاه قرضًا جاز في الاصح لانّ العبرة للقلب لا للسان . الدرالمختار مع رد المحتار ج٦ ص ۷۳۳ .

(۳) قال العلامة ابن نجيم : وفسّرها (اى الحاجة الاصلية) في شرح المجمع لابن الملك بما يدفع الهلاك عن الانسان تحقيقا او تقديرًا فالثاني كالدَّين ، والاوّل كالنفقة ودور السكنى وآلات الحرب والثياب المحتاج اليها لدفع الحرّ او البرد وكآلات الحرفة و آثاث المنزل و دواب الرّكوب وكُتُبُ العلم لاهلها .... وشرط ان يكون النصاب ناميا. والنماء في الشرع هو نوعان : حقيقي و تقديري . فالحقيقي : الزيادة بالتوالد والتناسل والتجارات . والتقديري : تمكنه من الزيادة بكون المال في يده او يد نائبه فلا زكوة على من لم يتمكن منها في ماله كمال الضمار ... البحر الرائق ۲ : ۲۰٦ كتاب الزكوة . فتاوى فريديه ج۳ ص ۳٦۷ .

(۴) فتاوى فريديه ج۳ ص ۳٦۷ .

# قرض دار ته په قرض کې د زکوة پريښودلو طريقه

که چيرته په يو کس باندې ډير قرضونه وي، او دده سره ددې د آداکولو هيڅ مال نه وي، اوس د مال خاوند (قرض خواه) ده ته دا قرض په زکوة کې پريښودل غواړي نو ددې دوه (۲) طريقې دي:

اوله طريقه داده چې د مال خاوند (قرض خواه) به د قرض په مقدار روپۍ دې قرض داري ته په زکوة کې ورکړي، دا قرض داري به يې قبض کړي، بيا د مال خاوند به ورنه واپس دا روپۍ په زور قرض کې واخلي.

دويمه طريقه داده چې دا قرض داري به د بل چانه روپۍ په قرض رآواخلي، او دا به دې اول قرض خواه ته ورکړي، دې به دا روپۍ واپس همدې قرض داري ته په زکوة کې ورکړي، نو په دې دوه طريقو سره ددې قرض داري قرض خلاصيدې شي. (۱)

**نوټ**: قرض داري ته صرف دا ويل چې ''په تا باندې زما کوم قرض دی هغه ستا په زکوة کې شو'' په دې سره زکوة نه اداکيږي.

## د څاروو د زکوة مسئله

څاروي په درې (۳) قِسمه دي:

اول قسم د تجارت دپاره دي. يعنى يو سړي څاروي اخلي او خرڅوي يې. نو ددې حکم دادې چې که ددې قيمت دوه پنځوس نيمو تولو سپينو زرو ته رسيده او په دې کال تير شو نو په ده باندې څلويښتمه روپۍ زکوة ورکول لازمي دي.

دويم قِسم بار وړونکي څاروي دي لکه آسونه، خرونه، قچر چې په دې باندې خلق مالونه ديو ځای نه بل ځای ته وړي راوړي. نو ددې حکم دادی چې که دا څاروي هر څومره ډير وي نو په دې کې زکوة نشته، بلکه زکوة به ددې په آمدنۍ کې وي، چې ددې په آمدنۍ باندې کال تير شي او نصاب ته رسي نو زکوة به ورکوي.

---

(۱) قال العلامة الحصكفي رحمه الله: واداء الدَّين عن العين وعن دَين سيقبض لايجوز. وحيلة الجواز ان يعطي مديونه الفقير زكوته ثم يأخذها عن دَينه .... ردالمحتار ج۲ ص۱۳، البحرالرائق ج۲ ص۲۴۳ باب المصرف، فتاوى حقانيه ج۴ ص۸۴.

دريم قِسم هغه څاروي دي چې شُودو (پيو) مَستو او غوړو له يې ساتلي وي، بچې راوړي او هغه ورنه خرڅوي. نو ددې حکم دادی چې که دې څارو له ګياه په روپو راوړي نو په خپله په دې څارو کې هم زکوة نشته.

او که دا څاروي د کال په اکثره حصه کې په ځنګل کې څريږي نو بيا په دې څارو کې زکوة شته، چې د اُوښانو، ګډو چيلو او غواګانو ځانله ځانله نصاب مقرر دی د هغې موافق به ورنه زکوة اوباسي.

(**نوټ**: ددې څارو پوره نصاب په تفصيل سره بيانول ډير اُوږد دی، که ضرورت وُ نو بيا د علماؤ نه پوښتنه وکړئ).

# چاته چې زكوة وركول جائز دي د هغو خلقو بيان

زكوة هر مسلمان غريب او فقير ته وركولى شي خو چې سيّد نه وي، دغه رنګې يتيمانو، كونډو او غريبو طالب عِلمانو ته هم زكوة وركولى شي. البته د اصولو، فروعو او ښځې، خاوند نه علاوه نورو غريبو خپلوانو ته په زكوة وركولو كې اجر زيات دى، ځكه د دوى حق مخكې دى. (۱)

د دې خلقو څه تفصيل درته بيانوم:

## غريب ورور او خور ته زكوة وركولى شي

اصولو او فروعو، دغه شان د ښځې او خاوند نه علاوه نورو ټولو غريبو خپلوانو ته زكوة وركولى شي خو چې صاحب د نصاب يعني مالداره او سيّد نه وي، او دوى ته په زكوة وركولو كې د صله رحمې رعايت هم دى. لهذا غريب ورور او خور ته زكوة وركول جائز دي. (۲)

---

(۱) مصرف الزكوة والعشر هو فقير ومسكين .. الى قوله ولاالى من بينهما ولاد او بينهما زوجية، ولا الى بني هاشم. الدر المختار على الرد ج۲ ص ۳۳۹، باب المصرف، عالمكيري ج۱ ص ۱۷۸، ۱۸۹ الباب السابع في المصارف، مجمع الانهر ج۱ ص ۳۲۲، ۳۳۱ باب في بيان احكام المصرف، فتاوى محموديه ج۱۴ ص ۱۷۸.

(۲) قال ابن عابدين: وقيد بالولاد لجوازه لبقية الاقارب كالاخوة. والاعمام. والاخوال الفقراء بل هم اولى لانه صلة وصدقة. ردالمحتار ج۲ ص ۳۴۶ باب المصرف. وقال زين الدين ابن نجيم رحمه الله: وقيد باصله وفرعه لانّ من سواهم من القرابة يجوز الدفع لهم وهو اولى لما فيه من الصلة مع الصدقة كالاخوة والاخواة والاعمام والعمات والاخوال والخالات الفقراء ... البحرالرائق ج۲ ص ۲۴۳ باب المصرف، ومثله في الهندية ج۱ ص ۱۹۰ باب المصرف، فتاوى حقانيه ج۴ ص ۵۱. / والافضل في الزكاة والفطر والنذور الصرف اوّلاً الى الاخوة والاخوات ثم الى اولادهم ثم الى الاعمام والعمات ثم الى اولادهم. ثم الى الاخوال والخالات ... الهنديه ج۱ ص ۱۹۰ الباب السابع في المصارف، فتح القدير ص ۲۸۰ قبيل باب صدقة الفطر، مجمع الانهر ۱/ ۳۳۴ قبيل باب صدقة الفطر، شامي زكريا ج۳ ص ۳۴ باب المصرف مطلب في الحوائج الاصلية، فتاوى محموديه ج۱۴ ص ۱۷۷، ۲۱۲. / قوله والافضل صرفها للاقرب فالاقرب ... قال في النهر والاول صرفها الى اخوته الفقراء ثم اولادهم. ثم اعمامه الفقراء. طحطاوي على المراقي ص ۵۹۴ باب المصرف، شامي ج۲ ص ۳۵۴ باب المصرف، زيلعي ج۱ ص ۳۰۵ باب المصرف، فتاوى محموديه ج۱۴ ص ۲۱۳. / والافضل في الزكوة ..... الصرف اوّلا الى الاخوة والاخوات. عالمكيري ج۱ ص ۱۹۰.

## خپلې ننګور (د ځوي ښځې) ته زکوة ورکول جائز دي

که د يو سړي سره خپله ننګور (د ځوي ښځه) يو ځای په کور کې اوسيږي او ورنه جدا هم نه وي خو دا غريبه وي نو دې ننګور ته زکوة ورکول جائز دي، اګرچې د دې فائده بيا هم د دې سړي خپل کورته راځي خو شريعت دا جائز کړي. (۱)

## ځوم ته زکوة ورکول جائز دي

په خپلوانو کې زکوة صرف اصولو او فروعو ته نشي ورکولی، دغه شان ښځه او خاوند يې يو بل ته نشي ورکولی، د دينه علاوه نور هر رِشته دار ته زکوة ورکول جائز دي خو چې غريب وي او سيّد نه وي. بلکه د نورو په نسبت خپلو خپلوانو ته زکوة ورکول ډير اجر لري، ځکه په دې کې د صله رحمۍ لحاظ ساتل هم دي. (۲)

## اهلِ علم د زکوة زيات مستحق دي

د ديني مدارسو طلباء او علماء د علم په حصول او خوَرولو کې مصروفه وي، او دُنيوي کارونو ته نه اُوزګاريږي، لهذا که دوی صاحب د نصاب نه وي يعنی محتاج او فقير وي نو دوی ته زکوة يا نور صدقات ورکول ډير بهتر دي. په فتاوی هنديه کې ذکر دي:

اَلتَّصَدُّقُ عَلَى الْفَقِيْرِ الْعَالِمِ اَفْضَلُ مِنَ التَّصَدُّقِ عَلَى الْجَاهِلِ. (۳)

فقير عالِم ته صدقه ورکول د جاهل فقير ته د صدقې ورکولو نه ډير بهتر دي.

---

(۱) ويجوز دفعها لزوجة أبيه وابنه و زوج إبنته. شامي ج۳ ص۲۹۳ باب المصرف تحت قوله والى من بينهما ولاد، تاتارخانيه ج۲ ص۲۷۳ الفصل الثامن من توضع الزكوة، فتاوى محموديه ج۱۴ ص ۲۱۱، فتاوى حقانيه ج۴ ص ۶۳.

(۲) ويجوز دفعها لزوجة أبيه وابنه و زوج إبنته. شامي ج۳ ص۲۹۳ باب المصرف تحت قوله والى من بينهما ولاد، تاتارخانيه ج۲ ص۲۷۳ الفصل الثامن من توضع الزكوة، فتاوى محموديه ج۱۴ ص ۲۱۱، فتاوى حقانيه ج۴ ص ۶۲.

(۳) الفتاوى الهندية ج۱ ص۱۸۷ الباب السابع فى المصارف، ومثله فى الطحطاوي حاشيه مراقى الفلاح ص ۳۹۴ باب المصرف، ومثله فى البحر الرايق ج۲ ص ۲۵۰ قبيل باب صدقة الفطر، الدر المختار على الشامي ج۳ ص۳۰۲ باب المصرف، مطلب في الحوايج الاصلية، سكب الانهر على مجمع الانهر ج۱ ص ۳۲۳ قبيل باب صدقة الفطر، فتاوى حقانيه ج ۴ ص ۵۴.

قال ابن عابدين رحمه الله عن القهستاني: قوله افضل اى من الجاهل الفقير. الدرالمختار على هامش رد المحتار ج۲ ص ۶۹ كتاب الزكوة باب المصرف.

# مالدار طالب العلم ته دزکوة ورکولو مسئله

کوم طالبُ العلم سره چې په کور کې ډیر مال و دولت وي یعنی صاحب د نصاب وي خو دلته ورسره په دې سفر کې د نصاب په مقدار مال نشته نو داسې طالب ته زکوة ورکول جائز دي . (۱)

البته که دده سره په دې سفري حالت کې هم د نصاب مقدار مال وُ نو ده ته بیا زکوة ورکول صحیح نه دي . (۲)

# د مالداره کس غریب پلار ته زکوة ورکول جائز دي

که چیرته یو سړې په خپله غریب وي او مستحق د زکوة وي نو ده ته زکوة ورکول جائز دي اگر چې د دې کس زامن مالدار وي ، که دا د دې زامنو سره یو ځای اوسیږي یا جدا ، خو په هر حال ده ته زکوة ورکول جائز دي ، ځکه د ځوي په مالدارۍ سره پلار نه مالداره کیږي . (۳)

# د مالدار سړي بالغ فقیر ځوي ته زکوة ورکول جائز دي

که چیرته یو سړې مالدار یعنی صاحب د نصاب وي ، او دده بالغ بچي فقیران وي ، نو د دې فقیرانو بچو ته زکوة ورکول جائز دي ، ځکه د پلار په مالدارۍ سره د بچي په حالت څه اثر نه غورځي . البته د دې مالداره کس نابالغه بچو ته زکوة ورکول صحیح نه دي ، ځکه نابالغه بچي د پلار تابع وي ، او د دوی ټول ضروریات په پلار باندې لازم دي . (۴)

---

(۱) قال ابن عابدين رحمه الله : وابن السبيل اذا كان له في وطنه مال بمنزلة الفقير . رد المحتار ج ۲ ص ۳۴۳ باب المصرف ، وابن السبيل من كان له مال في وطنه وهو في مكان لاشيء له فيه . الهداية ج۱ ص ۱۸۷ باب المصرف ، فتاوى حقانيه ج۴ ص ۵۷ .

(۲) قال علي ابن ابي بكر المرغيناني رحمه الله : ولايجوز دفع الزكوة الى من يملك نصاباً من ايّ مال كان لان الغنى الشرعي مقدر به . الهداية ج۱ ص ۱۸۹ باب المصرف ، فتاوى حقانيه ج۴ ص ۵۷ .

(۳) وفي الهندية : ويجوز صرفها الى الاب المعسر وان كان ابنه موسرا . كذا في شرح الطحاوي . فتاوى عالمكيرية ۱ : ۱۸۹ الباب السابع في المصارف ، فتاوى حقانيه ج۳ ص ۳۷۴ .

(۴)

# چاته چې زکوة نشي ورکولې د هغوی بیان

کومو خلقو ته چې فرضي زکوة ورکول ناجائز دي د هغوی تفصیل دا دی:

## اصولو او فروعو ته زکوة نشي ورکولی

که چیرته د یو سړي مور او پلار غریب وي او دده نه جدا او سیږي خو بیا هم دوی ته فرضي زکوة نشي ورکولی (البته نور احسانات ورسره کولې شي). یعنی خپلو اصولو (پلار، نیکه، غورنیکه، او داسې پورته. او مور، نیا او همداسې پورته) او خپلو فروعو (یعنی زامنو، نمسو، کړوسو او همداسې ښکته سلسله) دوی ته زکوة ورکول نا جائز دي. (۱)

البته که دوی حاجتمند وو نو د دوی نفقه په مالدار بچي واجب ده (۲)

همدغه شان د صله رحمی په وجه ورسره نور امداد کولې شي. (۳)

**نوټ**: ناسکه مور (کومه چې دده خپله مور نه وي) چې غریبه وي او سیّده نه وي نو دیته زکوة ورکول جائز دي. (۴)

(۱) قال علي ابن ابي بكر المرغيناني رحمه الله: ولايدفع المزكي زكوة ماله الى أبيه وجده وان علا. ولا الى ولده. وولد ولده وان سفل. الهدايه ج۱ ص ۲۰۶ باب المصارف ./ قال العلامة ابن عابدين رحمه الله: ولا الى من بينهما ولاد .... اى اصله وان علا كأبويه وأجداده وجدّاته من قبلهما. وفروعه وإن سفل. رد المحتار ج۲ ص ۲۴۳ باب المصرف ، ومثله فى البحر الرايق ج۲ ص ۶۴۳ باب المصرف. فتاوى حقانيه ج ۴ ص ۴۹.

(۲) قال ويجبر الولدُ الموسر على نفقة الابوين المعسرين مسلمين كانا او ذميين قدر على الكسب او لم يقدر. عالمكيري ج۱ ص ۵۶۴ باب النفقة الفصل الخامس في نفقة ذوى الارحام ، خانية على الهندية ج۱ ص ۴۴۷ باب النفقة فصل في نفقة الوالدين وذوى الارحام ، فتاوى محموديه ج۱۴ ص ۲۱۴.

(۳) و قيّد بالصدقة الواجبة لانّ صدقة التطوع الاولى دفعها الى الاصول والفروع. كذا فى البدائع ، بحر ج۲ ص ۲۴۴ باب المصرف ، شامي زكريا ج۳ ص ۲۹۳ باب المصرف ، فتاوى محموديه ج۱۴ ص ۲۱۵.

(۴) ويجوز دفعها لزوجة أبيه. شامي زكريا ج۳ ص ۲۹۳ باب المصرف ، تاتارخانيه ج۲ ص ۲۷۳ الفصل الثامن من لوضع الزكاة مطبوعه كراچي. فتاوى محموديه ج۱۴ ص ۲۱۷.

## خاوند ښځې ته ، او ښځه خاوند ته زکوة نشي ورکولی

ښځه او خاوند دواړه يو بل ته زکوة نشي ورکولی . (۱)

## سيّد ته زکوة نشي ورکولی

سيّد يعنی هاشمي ته زکوة ورکول صحيح نه دي . (۲)

## نابالغ ته د زکوة ورکولو مسئله

کوم ماشوم چې دومره وړوکې وي چې په هيڅ شي نه پوهيږي نو ده ته زکوة ورکول صحيح نه دي ، البته که دا ماشوم مُراهِق وُ (يعنی قريبُ البلوغ وُ) څه نا څه پوهه وُ ، او غريب وُ نو ده ته زکوة ورکول جائز دي ، ځکه د زکوة قبض کولو د پاره دا ضروري نه ده چې کُني قبض کوونکې دې خامخا بالغ وي ، بلکه که ماشوم مراهِق وي نو ده ته هم زکوة ورکولی شی . (۳)

---

(۱) قال علي ابن ابي بكر المرغيناني رحمه الله : ولا إلى إمرأته للاشتراك في المنافع عادةً . ولاتدفع المرأة الى زوجها عند ابي حنيفة رحمه الله . الهداية ج۱ ص ۱۸۸ باب المصارف ./ قال علاؤ الدين الحصكفي رحمه الله : ولا إلى مَن بينهما ولاد ولو مملوكا لفقير . او بينهما زوجيّة ... الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲ ص ۳۴۶ باب المصرف ، ومثله في الهندية ج۱ ص ۱۸۹ باب المصرف ، فتاوى حقانيه ج۴ ص ۵۸ .

(۲) او هاشمي : اى لا يجوز دفعها إلى بني هاشم لقوله عليه السلام إنّ هذه الصدقات انّما أوساخ النّاس وانّها لاتحلّ لمحمّدٍ ولا لآلِ محمّد . رواه مسلم . وقال عليه الصلوة والسلام : نحن اهل بيت لاتحلّ لنا الصدقة . رواه البخاري . زيلعي ج۱ ص ۳۰۳ باب المصرف ، البحرالرائق ج۲ ص ۲۴۶ باب المصرف ، مجمع الانهر ج۱ ص ۳۳۱ باب في بيان احكام المصرف ، فتاوى محموديه ج۱۲ ص ۱۸۷ . مولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله په بهشتي زيور کې ليکي چې : د حضرت فاطمې رضی الله عنها اولاد ، د حضرت علي ، د حضرت جعفر ، حضرت عقيل ، او حضرت حارث بن عبدالمطلب رضي الله عنهم د دوی اولاد ته هم زکوة ورکول صحيح نه دي ، البته نور خيرات ورکولې شی . د جنت کالي دريمه حصه کومو خلقو ته چې زکوة ورکولې شی د هغوی بيان مسئله نمبر ۱۴ .

(۳) وفي الهندية : ولو قبض الصغير وهو مراهق جاز . وكذا لو كان يعقل القبض بأن كان لا يرمي به . ولا يخدع عنه . ولو دفع الى فقير معتوه جاز . الفتاوى الهندية ج ۱ ص ۱۹۰ باب المصرف ، ومثله في فتاوى قاضي خان ج ۱ ص ۱۲۸ فصل فيمن يوضع فيه الزكوة . قال علاؤ الدين الحصكفي رحمه الله : / ودفع الزكوة الى صبيان اقاربه برسم عيد او الى مبشر او مهدي الباكور جاز . وقال ابن عابدين رحمه الله في تشريح قوله (الى صبيان اقاربه) اى العقلاء . والا فلا يصح الا بدفع الى ولى الصغير . الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲ ص ۳۵۶ باب المصرف ، فتاوى حقانيه ج۴ ص ۵۴ كتاب الزكوة .

**نوټ** : نابالغه ماشوم په غريبۍ او مالدارۍ کې د پلار تابع وي لهذا که د دې ماشوم پلار مالدار وُ نو بيا دې نابالغه (مراهِق) ماشوم له هم زکوة نشي ورکولی.

**خلاصه** : خلاصه دا چې اصولو (مور پلار، نيا او نياګۍ او همداسې په پورته سلسله) او فروعو (زامنو، لورانو، نمسو، کړوسو او همداسې په ښکته تْوله سلسله) او ښځه او خاوند په خپل مينځ کې يو بل ته، سيّد، او صاحبِ نصاب ته زکوة ورکول ناجائز دي، او د دينه علاوه نورو فقيرانو ته زکوة ورکول جائز دي. (۱)

## د زکوة نه ورکوونکي حکم

کله چې په يو چا باندې زکوة فرض شي، که هغه د سرو زرو، يا سپينوزرو يا نَغدو روپو وي، او يا عُشر وي او دې زکوة ورکول ضروري نه ګڼي، بلکه د زکوة نه بالکل اِنکار کوي نو دا سړی خو قطعي مُرتَد او کافِر دی، دده سره هغه معامله په کار ده کومه چې حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه د زکوة نه منکرينو سره کړې وه. (۲)

او که دې د زکوة فرضيت منې خو د بُخل او غفلت په وجه زکوة نه اوباسي نو داسې کس فاسِق و فاجِر او سخت ګناهګار دی، او داسې کس د پاره په قرآن کريم او احاديثو کې د قبر او حشر سختې سزاګانې بيان شوې.

ځکه زکوة نه ورکول ګناهِ کبيره ده، دغه وجه ده چې علامه ذهبي رحمه الله په خپل کتاب الکبائر کې زکوة نه ورکول د ګناهِ کبيره وُ په لِست کې راوستی.

---

(۱) ولا إلى مَن بينهما ولاد. او بينهما زوجية. ولاالى غني يملک قدر نصاب فارغ عن حاجته الاصلية من أيِّ مال. ولاالى بني هاشم. الدرعلى الرد ج۲ ص۳۳۶ باب المصرف ./ ولايعطي من الزکوة والدًا وان علا. ولا ولدًا وان سفل. وفى الخانية من قبل الذکور والاناث. تاتارخانية ج۲ ص ۲۷۱ الفصل الثامن فى المسايل المتعلقة بمن توضع فيه الزکوة، تبيين الحقائق ص ۳۰۱، ۳۰۳ باب المصرف، مجمع الانهر ج۱ ص ۳۲۹، ۳۳۱ باب فى بيان احکام المصرف. فتاوى محموديه ج۱۴ ص۱۸۳.

(۲) وأما صفتها : فهي فريضةٌ محکمةٌ يکفر جاحِدُها ويُقْتَلُ مانِعُها. هکذا فى محيط السرخسي، عالمګيري ج۱ ص ۱۷۰ کتاب الزکوة. فَالدَّلِيْلُ على فرضيّتها: الکتابُ والسنّةُ والاجماعُ والمعقولُ... بدائع ج۲ ص۴. آپ کے مسائل اور ان کا حل ج۵ ص۵۹ تخرج شده ايډيشن.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

وَالَّذِيْنَ يَكْنِزُوْنَ الذَّهَبَ وَالْفِضَّةَ وَلَا يُنْفِقُوْنَهَا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ فَبَشِّرْهُمْ بِعَذَابٍ أَلِيْمٍ ﴾

التوبة آيت ۳۴.

# د زکوة نه ورکوونکي د پاره د دُنيا او آخرت سزاګاني او عذابونه

تَاليف :


اَبُوالشَّمس مولانا نُوْرُالْهُدیٰ عُفِيَ عَنْهُ

مُدَرِّس دَارُالعلوم فيضُ القُرآن اکاخيل کالونی مردان

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

# د زكوة نه وركوونكي د پاره سزاګانې او عذابونه :

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ وَكَفٰى ، وَسَلَامٌ عَلٰى عِبَادِهِ الَّذِيْنَ اصْطَفٰى .

اَمَّا بَعْدُ فَأَعُوْذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ . قَالَ اللهُ تَبَارَكَ وَتَعَالٰى فِى الْقُرْآنِ الْمَجِيْدِ وَالْفُرْقَانِ الْحَمِيْدِ :

﴿ وَالَّذِيْنَ يَكْنِزُوْنَ الذَّهَبَ وَالْفِضَّةَ وَلَا يُنْفِقُوْنَهَا فِيْ سَبِيْلِ اللهِ فَبَشِّرْهُمْ بِعَذَابٍ اَلِيْمٍ . يَوْمَ يُحْمٰى عَلَيْهَا فِيْ نَارِ جَهَنَّمَ فَتُكْوٰى بِهَا جِبَاهُهُمْ وَجُنُوْبُهُمْ وَظُهُوْرُهُمْ . هٰذَا مَا كَنَزْتُمْ لِأَنْفُسِكُمْ فَذُوْقُوْا مَا كُنْتُمْ تَكْنِزُوْنَ ﴾ . (۱)

وَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : مَنْ اٰتَاهُ اللهُ مَالًا فَلَمْ يُؤَدِّ زَكٰوتَهُ مُثِّلَ لَهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ شُجَاعًا أَقْرَعَ لَهُ زَبِيْبَتَانِ يُطَوَّقُهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ثُمَّ يَأْخُذُهُ بِلِهْزِمَتَيْهِ يَعْنِيْ بِشِدْقَيْهِ ثُمَّ يَقُوْلُ : أَنَا مَالُكَ ، أَنَا كَنْزُكَ ، ثُمَّ تَلَا ﴿ وَالَّذِيْنَ يَكْنِزُوْنَ الذَّهَبَ وَالْفِضَّةَ وَلَا يُنْفِقُوْنَهَا فِيْ سَبِيْلِ اللهِ .. ﴾ اَلْآيَةَ . (۲)

صَدَقَ اللهُ الْعَظِيْمُ .

## د زكوة فرضيت قطعي دى

محترمو مسلمانانو ! چاته چې الله ﷻ مال و دولت وركړې وي ، دې صاحب د نصاب وي ، او په ده كال تير شي ، نو په ده باندې زكوة وركول فرض دي .

ځكه د زكوة فرضيت قطعي دى ، د كلِمه توحيد او لمونځ نه پس دا د اِسلام دريم ( ۳ ) بُنيادي او اَهم رُكن دى ، تر دې چې د زكوة نه منكِر كافِر دى ، او نه وركوونكې يې فاسِق و فاجر او سخت ګناهګار دى .

---

(۱) التوبة آيت ۳۴ ، ۳۵ .

(۲) بخاري ج۱ كتاب الزكوة باب إثم مانع الزكوة باب ۸۸۴ ، حديث ۱۳۲۱ ، و ج ۲ ص ۱۰۶ حديث ( ۱۴۰۳ ) .

# دزکوة نه منکرینو خلقو سره جهاد

لکه څرنګې چې لمونځ د اسلام اَهم رکن دی نو همدغه شان زکوة هم د اسلام اَهم رُکن دی، په قرآن کريم کې دوه ديرش (۳۲) ځايه د لمانځه سره يو ځای د زکوة ذکر راغلی، او ځانله هم په ډيرو ځايونو کې ددې حکم راغلی.

دغه وجه ده چې په لمانځه او زکوة کې يو خاص رابطه او تعلق دی، او په دې کې يو منَل او د بل نه اِنکار کول کفر دی.

په احاديثو کې ددې تذکره شته (۱) چې د رسول الله ﷺ د وفات نه پس څه قبائلو (لکه غطفان او بني سُليم وغيره) د زکوة ورکولو نه اِنکار وکړو، اګر چې دوی په ظاهره کلمه ويله، لمونځونه يې کول، خو صرف د زکوة نه يې اِنکار وکړو نو حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه د دوی سره د جهاد اِعلان وکړو، حضرت عمر رضي الله عنه ورته وفرمايل:

ته د دوی سره څنګه جهاد کوی؟ حالانکه دوی خو کلمه وايي، (او لمونځونه کوي).

حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه ورته وفرمايل:

وَاللهِ لَأُقَاتِلَنَّ مَنْ فَرَّقَ بَيْنَ الصَّلٰوةِ وَالزَّكٰوةِ. فَإِنَّ الزَّكٰوةَ حَقُّ الْمَالِ.

قسَم په الله زه به د هغه چا سره خامخا جهاد کوم څوک چې د لمانځه او زکوة په مينځ کې فرق کوي (يعنی لمونځ مني او زکوة نه مني)، ځکه زکوة د مال حق دی.

حضرت عمر رضي الله عنه چې دا واوريده نو وې فرمايل:

فَوَاللهِ مَا هُوَ إِلَّا رَأَيْتُ أَنَّ اللهَ شَرَحَ صَدْرَ أَبِي بَكْرٍ لِلْقِتَالِ. فَعَرَفْتُ أَنَّهُ الْحَقُّ.

---

(۱) د بخاري شريف حديث دی حضرت ابوهريرة رضي الله عنه فرمايي: لَمَّا تُوُفِّيَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَكَانَ أَبُوْبَكْرٍ رضي الله عنه وَكَفَرَ مَنْ كَفَرَ مِنَ الْعَرَبِ. فَقَالَ عُمَرُ رضي الله عنه: كَيْفَ تُقَاتِلُ النَّاسَ؟ وَقَدْ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: أُمِرْتُ أَنْ أُقَاتِلَ النَّاسَ حَتّٰى يَقُوْلُوْا "لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ" فَمَنْ قَالَهَا فَقَدْ عَصَمَ مِنِّيْ مَالَهُ وَنَفْسَهُ إِلَّا بِحَقِّهِ. وَحِسَابُهُ عَلَى اللهِ. فَقَالَ: وَاللهِ لَأُقَاتِلَنَّ مَنْ فَرَّقَ بَيْنَ الصَّلٰوةِ وَالزَّكٰوةِ. فَإِنَّ الزَّكٰوةَ حَقُّ الْمَالِ. وَاللهِ لَوْ مَنَعُوْنِيْ عَنَاقًا كَانُوْا يُؤَدُّوْنَهَا إِلَى رَسُوْلِ اللهِ ﷺ لَقَاتَلْتُهُمْ عَلَى مَنْعِهَا. قَالَ عُمَرُ رضي الله عنه: فَوَاللهِ مَا هُوَ إِلَّا رَأَيْتُ أَنَّ اللهَ شَرَحَ صَدْرَ أَبِي بَكْرٍ لِلْقِتَالِ. فَعَرَفْتُ أَنَّهُ الْحَقُّ.

بخاري شريف ج۱ کتاب الزکوة باب وجوب الزکوة باب ۸۸۲ حديث ۱۳۱۸. و ج۲ ص ۱۰۵ حديث ۱۳۹۹.

قسم په الله ﷻ ددې نه علاوه بله خبره نشته ، بلکه زه پوهه شوم چې الله تعالى د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه سينه د (الهام په ذريعه) ددې منکرينو سره د جهاد د پاره پرانيستې ده ، نو ماته هم يقين او شو چې ددې منکرينِ زکوة سره جهاد کول حق او صحيح دي .

## د حضرت ابن عباس رضي الله عنه قول

حضرت ابن عباس رضى الله عنهما وايي چې : (په قرآن مجيد کې) درې آيتونه داسې نازل شوي چې په هغې کې دوه شيان هر ځاى اکثر يو ځاى ذکر دي نو که چيرته يو انسان په دې کې يو کار کوي خو بل نه کوي نو هغه اول کار يې هم الله ﷻ ته قبول نه دى .

اول : الله تعالى فرمايي : ﴿ أَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ ﴾ . (۱)

ترجمه : تاسو تابعداري د الله ﷻ کوئ او تابعداري د رسول " محمد " ﷺ کوئ .

نو اوس که څوک د الله تعالى اطاعت کوي خو د پيغمبر ﷺ اطاعت نه کوي نو دده دغه د الله ﷻ اطاعت هم قبول نه دى (لکه نن صبا يهود او نصارى الله ﷻ مني خو زمونږ پيغمبر صلى الله عليه وسلم نه مني نو ځکه مسلمانان نه دي ، بلکه کافر دي) .

دويم : الله تعالى فرمايي : ﴿ وَأَقِيمُوا الصَّلَوٰةَ وَآتُوا الزَّكَوٰةَ ﴾ . (۲)

ترجمه : تاسو لمونځ قائموئ او زکوة ورکوئ .

اوس که يو کس لمونځ کوي خو زکوة نه ورکوي نو دا لمونځ يې هم الله ﷻ ته قبول نه دى

دريم : الله تعالى فرمايي :

﴿ أَنِ اشْكُرْ لِي وَلِوَالِدَيْكَ ﴾ . (۳)

(اې بنده !) زما شکريه اداء کوه او د خپل مور او پلار شکريه اداء کوه .

نو اوس که يو کس د الله ﷻ شکريه اداء کوي خو د خپل مور او پلار شکريه نه اداء کوي نو دغه د الله ﷻ شکريه اداء کول يې هم قبول نه دي .

---

(۱) سورة النساء ۹۵ . سورة النور ۶۴ ، سورة محمد ۳۳ . او د دينه علاوه هم په بې شماره ځايونو کې راغلى .

(۲) سورة البقرة آيت ۴۳ ، ۸۳ ، ۱۱۰ ، سورة النساء ۷۷ ، سورة النور آيت ۵۶ ، سورة المزمل آيت ۲۰ .

(۳) سورة لقمان آيت ۱۴ .

ځکه په دې درې آيتونو کې دا دوه خبرې (اکثره) يو ځای ذکر دي نو يوه عملي کول او بله نه عملي کول، په دې سره دا اوله هم قبوله نه ده، بلکه دا دواړه عملي کول لازمي دي.

لهذا - لمانځه سره سره د مالدار د پاره زکوة ورکول هم لازمي دي. (۱)

## د اسلام ټول احکامات عملي کول لازمي دي

نبي عليه السلام فرمايي:

أَرْبَعٌ فَرَضَهُنَّ اللهُ فِي الْإِسْلَامِ . فَمَنْ جَاءَ بِثَلَاثٍ لَمْ يغنين عَنْهُ شَيْئًا حَتّٰى يَأْتِيَ بِهِنَّ جَمِيْعًا اَلصَّلٰوةُ . وَالزَّكٰوةُ . وَصِيَامُ رَمَضَانَ . وَحَجُّ الْبَيْتِ . (۲)

(د ايمان نه روستو) څلور (۴) شيان داسې دي چې الله تعالی په اسلام کې فرض کړې دي، پس څوک چې په دې څلورو کې درې (۳) اداء کوي (او د څلورم د فرضيت نه منکر وي) نو دا درې به دده په کار رانشي ترڅو پورې چې ټول اداء نه کړي (يعنې په ټولو باندې ايمان او يقين او نه لري). هغه څلور شيان (د ايمان نه روستو) لمونځ، زکوة، د رمضان روژې او د بيت الله حج کول دي.

معلومه شوه چې د لمونځ، روژې او حج غوندې زکوة هم د اسلام د اَهمو اَرکانو نه دی.

## دزکوة نه ورکولو په وجه د لمونځ ثواب هم پوره نه ملاويږي

۱. حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنهما فرمايي:

أُمِرْنَا بِإِقَامِ الصَّلٰوةِ وَإِيْتَاءِ الزَّكٰوةِ . وَمَنْ لَّمْ يُزَكِّ فَلَا صَلٰوةَ لَهُ . (۳)

مونږ ته د لمانځه قائمولو او زکوة ادا کولو حکم شوی، او څوک چې زکوة نه ورکوي د هغه لمونځ هم قبول نه دی (يعنې د کامل لمانځه ثواب يې نه کيږي).

---

(۱) قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ رضي الله عنهما: ثَلَاثُ اٰيَاتٍ نُزِلَتْ مَقْرُوْنَةً بِثَلَاثٍ لَا تُقْبَلُ مِنْهَا وَاحِدَةٌ بِغَيْرِ قَرِيْنَتِهَا . (احداها) قوله تعالى: ﴿ أَطِيْعُوا اللهَ وَأَطِيْعُوا الرَّسُوْلَ ﴾ . فَمَنْ أَطَاعَ اللهَ وَلَمْ يُطِعِ الرَّسُوْلَ لَمْ يُقْبَلْ مِنْهُ . (الثانية) قوله تعالى: ﴿ وَأَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ ﴾ فَمَنْ صَلّٰى وَلَمْ يُزَكِّ لَمْ يُقْبَلْ مِنْهُ . (الثالثة) قوله تعالى: ﴿ أَنِ اشْكُرْ لِيْ وَلِوَالِدَيْكَ ﴾ فَمَنْ شَكَرَ اللهَ وَلَمْ يَشْكُرْ لِوَالِدَيْهِ لَمْ يُقْبَلْ مِنْهُ . الكبائر للحافظ الذهبي ، الكبيرة الثامنة عقوق الوالدين ص ۴۴ .

(۲) احمد ، وطبراني ، فتاوی حقانية ج۴ ص ۱۱۳ .

(۳) رواه الطبراني في الكبير باسانيد احدها صحيح ، كذا في الترغيب ، فتاوی حقانية ج ۴ ص ۱۱۴ .

# د زكوة نه وركوونكي حُكم

كله چې په يو چا باندې زكوة فرض شي، كه هغه د سرو زرو، يا سپينوزرو يا نَغدو روپو وي، او يا عُشر وي او دې زكوة وركول ضروري نه ګڼي، بلكه د زكوة نه بالكل انكار كوي نو دا سړې خو قطعي مُرتَد او كافِر دى، د ده سره هغه معامله په كار ده كومه چې حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه د زكوة نه منكرينو سره كړې وه. (۱)

او كه دې د زكوة فرضيت مني خو د بُخل او غفلت په وجه زكوة نه وركوي نو داسې كس فاسِق و فاجِر او سخت ګناهګار دى، او داسې كس د پاره په قرآن كريم او احاديثو كې د قبر او حشر سختې سزاګانې بيان شوي.

ځكه زكوة نه وركول ګناهِ كبيره ده، دغه وجه ده چې علامه ذهبي رحمه الله په خپل كتاب "الكبائر" كې زكوة نه وركول د ګناهِ كبيره ؤ په لِست كې راوستى.

## د علامه انورشاه كشميري رحمه الله وينا

علامه انور شاه كشميري رحمه الله په فيض الباري شرح صحيح البخاري كې ليكلي:

إِنَّ الْإِيْمَانَ إِسْمٌ لِالْتِزَامِ كُلِّ الدِّيْنِ. فَمَنْ فَرَّقَ بَيْنَ الصَّلٰوةِ وَالزَّكٰوةِ فَكَأَنَّهُ لَمْ يُؤْمِنْ بِالْكُلِّ، وَمَنْ لَمْ يُؤْمِنْ بِالْكُلِّ فَهُوَ كَافِرٌ قَطْعًا. (۲)

ايمان نوم دى د پوره دين د اِلتزام او د منلو، پس څوک چې په لمونځ او زكوة كې فرق كوي (يعنى د يو نه په كې اِنكار كوي) ګويا چې ده په پوره دين باندې ايمان نه دې راوړى، او چا چې په پوره دين باندې ايمان نه وي راوړى هغه سړې قطعي كافِر دى.

---

(۱) وأما صفتها: فهي فريضةٌ محكمةٌ يكفر جاحِدُها ويُقْتَلُ مانِعُها. هكذا في محيط السرخسي، عالمكيري ج۱ ص ۱۷۰ كتاب الزكوة. فَالدَّلِيْلُ على فرضيتها: الكتابُ والسنةُ والاجماعُ والمعقولُ... بدائع ج۲ ص۲. آپ كے مسائل اور ان كا حل ج۵ ص ۵۹ تخرج شده ايڈيشن.

(۲) فيض الباري شرح صحيح البخاري ج۱ ص۱۰۸.

# د زکوة نه ورکولو نقصانات او سزاګانې

کوم کس چې د بُخل، یا سستیا او لاپرواهۍ د وجې نه د خپل مال نه زکوة نه ورکوي، یا د زمکې نه عُشر نه اُوباسي نو دداسې خلقو د پاره په قرآن مجید او احادیثو کې د قبر، حشر او جهنم داسې سختې سزاګانې ذکر شوي چې د هغې په اَوریدو سره د انسان په وجود باندې ویښته اُودریږي، خو لیکن بیا هم د دُنیا په مَحبّت کې ډُوب انسان د غفلت د خُوب نه راپیدار نه شو، او ددې سختو سزاګانو په اَوریدو دې بیا هم دې اَهمې فریضې طرف ته متوجّه نه شو
غواړم چې د هغې سزاګانو نه یو څو سزاګانې ستاسو په مخکې ذکر کړم کومې چې د زکوة نه ورکوونکي د پاره مقرر شوي.

## ۱. د جهنم سزا

قرآن کریم د زکوة نه ورکوونکو د پاره دا سزا ذکر کړې چې څوک سره زَر او سپین زَر جمع کوي، او ددې نه فرضي زکوة نه اُوباسي نو په قیامت کې به همدغه سره زَر او سپین زر د جهنم په اُور ګرمولې شي، او ددې خلقو تَندي، اَړخونه او شاګانې به پرې داغلې شي.

۱. الله تعالی فرمایي:

﴿وَالَّذِينَ يَكْنِزُونَ الذَّهَبَ وَالْفِضَّةَ وَلَا يُنفِقُونَهَا فِي سَبِيلِ اللهِ فَبَشِّرْهُم بِعَذَابٍ أَلِيمٍ. يَوْمَ يُحْمَىٰ عَلَيْهَا فِي نَارِ جَهَنَّمَ فَتُكْوَىٰ بِهَا جِبَاهُهُمْ وَجُنُوبُهُمْ وَظُهُورُهُمْ. هَٰذَا مَا كَنَزْتُمْ لِأَنفُسِكُمْ فَذُوقُوا مَا كُنتُمْ تَكْنِزُونَ﴾. (۱)

ترجمه: او څوک چې سره زَر او سپین زَر ذخیره کوي او د الله ﷻ په لاره کې یې نه خرچ کوي (یعنی زکوة ورنه نه اُوباسي) پس (اې پیغمبره!) ته دوی ته د دَرد ناک عذاب زیرې ورکړه، په کومه ورځ چې به دا مال (او خزانې) د جهنم په اُور کې ګرمولې شي، بیا به په دې سره د دوی تَندي، د دوی اَړخونه او د دوی شاګانې داغلې شي (او دا به ورته ویلې شي) چې دا هغه خزانې دي چې تاسو د خپل ځان د پاره جمع کړې وې، پس او څکئ تاسو مزه د هغه څه چې تاسو به جمع کول.

---

(۱) التوبة آیت ۳۴، ۳۵.

**تفسير** : تفسير مظهري ليکلي چې په دې آيت کې ذکر د تَندو ، اَړخونو او شاګانو راغلی خو مراد ورنه ټول بدن دی ، چې ټول بدن ته به د هر اَړخ نه داغونه ورکولې شي .

يا دا چې دا مذکوره اعضاء په ټول بدن کې اَشرف د اعضاؤ دي نو ځکه ددې تخصيص اوشو يا ددې درې (۳) اندامونو تخصيص ددې د وجې اوشو چې کله دا بخيل مالدار څوک فقير زکوة غوښتونکې اوګوري نو اول دې ورته تَندې تريو (تَرش) کړي . يياکه فقير دده مجلس ته راشي نو مخ ورنه واړوي ، او هغه ته اَړخ کړي . يياکه په دې هم کار اونه شي نو دې فقير ته مکمل شا کړي .

نو ځکه په دې آيت کې ددې درې (۳) اندامونو تخصيص اوشو ، چې همدغه سره زَر او سپين زَر به د جهنم په اُور کې ګرمولې شي او د دوی تَندي ، اَړخونه او شاګانې به پرې داغلې شي . (۱)

۲ . د بخاري او مسلم شريف حديث دی ، رسول الله ﷺ فرمايي :

مَا مِنْ صَاحِبِ ذَهَبٍ وَلَا فِضَّةٍ لَا يُؤَدِّي مِنْهَا حَقَّهَا إِلَّا إِذَا كَانَ يَوْمُ الْقِيَامَةِ صُفِّحَتْ لَهُ صَفَائِحُ مِنْ نَارٍ ، فَأُحْمِيَ عَلَيْهَا فِي نَارِ جَهَنَّمَ فَيُكْوَى بِهَا جَنْبُهُ وَجَبِينُهُ وَظَهْرُهُ ، كُلَّمَا بَرَدَتْ أُعِيدَتْ لَهُ فِي يَوْمٍ كَانَ مِقْدَارُهُ خَمْسِينَ أَلْفَ سَنَةٍ حَتَّى يُقْضَى بَيْنَ الْعِبَادِ ، فَيُرَى سَبِيلُهُ ، إِمَّا إِلَى الْجَنَّةِ وَإِمَّا إِلَى النَّارِ ... (۲)

---

(۱) فذكر الجهات كلّها . يعني يكوي بها أبدانهم من كلّ جهةٍ . وقيل : إنّما خصّ هذه الأعضاء بالذكر لأنّهم إذا بصروا الفقير عبسوا ، وإذا ضمّهم إيّاه مجلس أعرضوا عنه وتولّوا بأركانهم وولّوه ظهورهم . او لأنّها أشرف الأعضاء الظاهرة فإنّها المشتملة على الأعضاء الرئيسة التي هي الدّماغ والقلب والكبد . تفسير مظهري ج۴ ص ۲۰۰ التوبة آيت ۲۵ ، معارف القرآن آيت ۳۵ ، الكبائر ص ۳۷ الكبيرة الخامسة منع الزكوة .

(۲) هذا الحديث اخرجه البخاري في صحيحه في كتاب الزكوة باب اثم مانع الزكوة رقم (۱۴۰۲) ، ومسلم كتاب الزكاة باب اثم مانع الزكوة ۲۲۶۵/۲۴ (۹۸۷) ، والنسائي في كتاب الزكاة باب التغليظ في حبس الزكاة رقم (۲۴۴۲) ، وابو داؤد في سننه في كتاب الزكاة باب في حقوق المال رقم (۱۶۵۸) وابن ماجه في سننه في كتاب الزكاة باب ما جاء في منع الزكاة رقم (۱۷۸۶) ، واحمد في مسنده (۲ : ۲۶۲ ، ۳۸۴) ./ په يو روايت کې داسې الفاظ راغلي : مَا مِنْ صَاحِبِ كَنْزٍ لَا يُؤَدِّي زَكَاتَهُ إِلَّا أُحْمِيَ عَلَيْهِ فِي نَارِ جَهَنَّمَ فَيُجْعَلُ صَفَائِحَ . فَيُكْوَى بِهَا جَنْبَاهُ وَجَبِينُهُ حَتَّى يَحْكُمَ اللهُ بَيْنَ عِبَادِهِ فِي يَوْمٍ كَانَ مِقْدَارُهُ خَمْسِينَ أَلْفَ سَنَةٍ . ثُمَّ يُرَى سَبِيلُهُ إِمَّا إِلَى الْجَنَّةِ وَإِمَّا إِلَى النَّارِ . ومسلم كتاب الزكاة باب اثم مانع الزكوة ۲۲۶۷/ ۲۶ ، ۲۶ (۹۸۷) .

څوک چې د سرو زَرو او سپينو زَرو مالِک وي، او دا کس ددينه ددې (مالي) حق (زکوة) نه ادا کوي نو د قيامت په ورځ به ددې سرو زرو او سپينو زرو نه د اُور تختې جوړې کړې شي (يعنى دا پَترې او تختې خو به د سرو زرو او سپينو زَرو وي خو هغه به په اُور کې دومره گرمې کړې شي گويا چې دا د اُور تختې دي، ځکه نبي ﷺ ورپسې او فرمايل:) او هغه به د جهنم په اُور کې گرمولې شي، بيا به په دې سره دده اَړخ، دده تَندې او دده شا داغلې شي، کله چې دا پَترې يَخ شي نو دوباره به ورته گرمولې شي (۱)، او بار بار به دده ته دا سزا د قيامت په داسې ورځ کې ورکولې شي چې د هغې مقدار د دُنيا په حساب سره پنځوس زره (۵۰۰۰۰) کاله دى. (دده ته به دا سزا همداسې مسلسل ورکولې شي) تر دې چې د خلقو په مينځ کې فيصله اوشي، بيا به دده ته د جنت يا جهنم لار اُوخودې شي.

(يعنى که نور گناهونه يې نه وو کړي نو بيا به ددې سزا خوړلو نه روستو جنت ته بوتلې شي، او که نور گناهونه يې هم کړي وو نو بيا به جهنم ته بوتلې شي. (۲))

## ۲. همدا مال و دولت به ورته دغاړې طوق کړې شي

کوم کس چې فرضي زکوة نه ورکوي، او بُخل کوي نو د قيامت په ورځ به د همدې مال نه يو زهر جَن گنجې مار جوړ کړې شي او دده به په غاړه کې وَر واچولې شي چې دې به چيچي

۱. الله تعالى فرمايي:

﴿ وَلَا يَحْسَبَنَّ الَّذِيْنَ يَبْخَلُوْنَ بِمَآ اٰتٰهُمُ اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖ هُوَ خَيْرًا لَّهُمْ ۭ بَلْ هُوَ شَرٌّ لَّهُمْ ۭ سَيُطَوَّقُوْنَ مَا بَخِلُوْا بِهٖ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ۭ وَلِلّٰهِ مِيْرَاثُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۭ وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرٌ ﴾. (۳)

---

(۱) كُلَّمَا بَرَدَتْ. قال الطيبي: اى كلما بردت رُدّت إلى نار جهنم ليحمى عليها، والمراد منه الاستمرار. وقال ابن الملك: يعني إذا وصل كيُّ هذه الأعضاء من أوّلها إلى آخرها أعيد الكيُّ إلى أوّلها حتى وصل الى آخرها.. ويمكن أن يكون الضمير في "رُدّتْ" راجعًا إلى الأعضاء. اى كلما ردّت الأعضاء بالتبديل بعد الإحراق والقرب من الفناء أعيدت الصفائح عليها، فيكون موافقًا لقوله تعالى: ﴿ كُلَّمَا نَضِجَتْ جُلُوْدُهُمْ بَدَّلْنٰهُمْ جُلُوْدًا غَيْرَهَا لِيَذُوْقُوا الْعَذَابَ ﴾. سورة النساء الآية ۵۶ فتح الملهم ج۵ ص۳۴ كتاب الزكاة.

(۲) مظاهر حق ج۳ ص۲۶۲ كتاب الزكاة.

(۳) آل عمران آيت ۱۸۰.

ترجمه : او چاته چې الله ﷻ په خپل فضل سره مال وركړې وي ، او دوى په كې بُخل كوي (يعنى فرضي زكوة نه وركوي ) نو دوى دې هرگز دا خيال نه كوي چې گڼي دا بُخل د دوى د پاره ښه دى ، بلكه دا بُخل د دوى د پاره ډير بَد دى ، ډير زر به د قيامت په ورځ دغه مال په كوم چې دوى بُخل كړى وُ دوى ته به طوق ورواچولې شي ( يعنى همدغه مال به يې د غاړې تيزندې كړې شي ، او زهرجَن گنجې مار به ورنه جوړ كړې شي ، دده په غاړه كې به وَرواچولې شي چې دې به چيچي (۱) )

۲ . د بخاري شريف حديث دى ، رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي :

مَنْ اٰتَاهُ اللهُ مَالًا فَلَمْ يُؤَدِّ زَكٰوتَهُ مُثِّلَ لَهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ شُجَاعًا أَقْرَعَ لَهُ زَبِيْبَتَانِ يُطَوِّقُهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ثُمَّ يَأْخُذُهُ بِلِهْزِمَتَيْهِ يَعْنِيْ بِشِدْقَيْهِ ثُمَّ يَقُوْلُ : أَنَا مَالُكَ .أَنَا كَنْزُكَ . ثُمَّ تَلَا ﴿ وَالَّذِيْنَ يَكْنِزُوْنَ الذَّهَبَ وَالْفِضَّةَ وَلَا يُنْفِقُوْنَهَا فِيْ سَبِيْلِ اللهِ .. ﴾ اٰلآيَةَ . (۲)

چاته چې الله ﷻ مال وركړې وي ، او دا ددې مال نه زكوة اداء نه كړي نو دده ددې مال نه به د قيامت په ورځ يو زهرجَن گنجې مار جوړ كړې شي (چې د ډيرو زهرو د وجې به يې په سَر ويښتان هم نه وي ) ، ددې مار په سترگو كې به دوه تور ټاكي وي ( لكه څرنگې چې دا د زهرجنو مارانو په سترگو كې وي (۳) ) ، او دا مار به دده په غاړه كې د طوق په طور وَرواچولې شي ، بيا به دا مار ددې سرې دواړه وَښكي اُونيسي ( چيچي به يې ) او ورته وايي به : ''زه ستا خزانه يم ( د كومې نه به چې تا زكوة نه وركولو ) ''. ددې نه پس نبي عليه السلام ( ددې په تائيد كې ) دا آيت اولوستو : وَلَا يَحْسَبَنَّ الَّذِيْنَ يَبْخَلُوْنَ ...

---

(۱) وفي معنى تطويقهم به اربعة اقوال : احدها : أنه يُجعل كالحية يُطوِّق بها الانسان . . . وهذا مذهب ابن مسعود . ومقاتل . والثاني : أنه يُجعل طوقًا من نار . رواه منصور عن مجاهد ، وابراهيم . والثالث : أن معنى تطويقهم به : تكليفُهُم أن يأتوا به . رواه ابن ابي نجيح عن مجاهد . والرابع : أن معناه : يُلزَمُ أعناقَهم إثمُهُ . قاله ابن قتيبة . زاد المسير ج۱ ص ۳۵۳ آل عمران آيت ۱۸۰ .

(۲) بخاري ج۱ كتاب الزكاة باب إثم مانع الزكوة باب ۸۸۴ ، حديث ۱۳۲۱ .

(۳) الزَّبيبتان : هما الزبدتان فى الشدقين . وقيل : هما النكتتان السوداوان فوق عينيه . نزهة الناظرين ص ۱۹۶ الباب الثالث فى التشديد على تارك الزكاة .

ترجمه : کومو خلقو ته چې الله ﷻ په خپل فضل سره مال ورکړې وي او په هغې کې بُخل کوي (يعنی زکوة ترې نه اُوباسي) نو هغوی دې دا گمان نه کوي چې گني دا بُخل د دوی د پاره ښه دی، بلکه دا بُخل د دوی په حق کې ډير بد دی، ډير زر به د قيامت په ورځ دغه مال په کوم کې چې دوی بخل کړی دا به دوی ته طوق واچولې شي.

۳. د مشکوة شريف حديث دی، پيغمبر عليه السلام فرمايي:

يَكُوْنُ كَنْزُ أَحَدِكُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ شُجَاعًا أَقْرَعَ يَفِرُّ مِنْهُ صَاحِبُهُ وَهُوَ يَطْلُبُهُ حَتّٰى يُلْقِمَهُ أَصَابِعَهُ. (۱)

ستاسو خزانې (د کومو نه چې زکوة نه وي ويستلې شوی هغه) به د قيامت په ورځ د گنجي مار په صورت وي، مالِک به د هغې نه تختي او هغه به دده پسې شاته روان وي، دې به طلب کوي، تردې چې هغه مار به دا مالک رالاندې کړي، او د هغه گوتې به لقمه (نوړی) کړي. (يعنی ددې مالک گوتې به اُوخوري).

## ۳. د زکوة نه ورکولو په وجه ټول مال هلاک او بې برکته کيږي

د زکوة نه اداء کولو يو نقصان دادی چې په کوم مال کې زکوة واجب شوې وي، او دا واجب شوې حصه زکوة ددې مال نه او نه ويستل شي، بلکه د نور حلال مال سره يو ځای شي نو په دې سره دا نور حلال مال هم هلاکيږي او بې برکته کيږي.

همدا مضمون رسول الله ﷺ په دې الفاظو بيان کړی چې:

مَا خَالَطَتِ الزَّكٰوةُ مَالًا قَطُّ إِلَّا أَهْلَكَتْهُ. (۲)

---

(۱) رواه احمد، مشکوة کتاب الزکاة الفصل الثالث حديث ۲۰. په مسلم شريف کې دا حديث داسې نقل دی، نبي عليه السلام فرمايي: وَلَا مِنْ صَاحِبِ مَالٍ لَا يُؤَدِّيْ زَكَاتَهُ إِلَّا تَحَوَّلَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ شُجَاعًا أَقْرَعَ. يَتْبَعُ صَاحِبَهُ حَيْثُمَا ذَهَبَ. وَهُوَ يَفِرُّ مِنْهُ. وَيُقَالُ: هٰذَا مَالُكَ الَّذِيْ كُنْتَ تَبْخَلُ بِهِ. فَإِذَا رَأَى أَنَّهُ لَا بُدَّ مِنْهُ أَدْخَلَ يَدَهُ فِيْ فِيْهِ. فَجَعَلَ يَقْضَمُهَا كَمَا يَقْضَمُ الْفَحْلُ. مسلم کتاب الزکوة باب الم مانع الزکوة ۲۲۷۲/۲۸.

(۲) رواه الشافعي والبخاري في تاريخه والحُميديّ، مشکوة کتاب الزکوة الفصل الثالث حديث ۲۲، الترغيب والترهيب کتاب الصدقات (۱۸/۵۲۶).

د چا په مال کې چې د زکوة مال یو ځای شي (یعنی کوم زکوة چې نه وي ویستل شوی دا د نور مال سره یو ځای شي) نو دا دا نور حلال مال هم هلاکوي.

امام حُمیدي رحمه الله ذکر کري چې امام بخاري رحمه الله ددې حدیث مطلب دا بیانوي

يَكُوْنُ قَدْ وَجَبَ عَلَيْكَ صَدَقَةٌ فَلَا تُخْرِجُهَا فَيُهْلِكَ الْحَرَامُ الْحَلَالَ. (۱)

کله چې په تا باندې زکوة واجب شي او ته دا زکوة او نه باسی، بلکه د نور حلال مال سره یو ځای شي نو دغه حرام مال (یعنی کوم زکوة چې تا نه دی ویستلی) ستا حلال مال هلاکوي

## د باغ د مالِکانو واقعه

کله چې سړي زکوة او صدقه نه ورکوي نو بیا الله ﷻ دده مال هم هلاکوي او بې برکته یې کرځوي، لکه په قرآن مجید کې هم په همدې مناسبت یوې واقعې ته اشاره شوی کومه چې د باغ په مالِکانو باندې د دوی د بُخل او کنجوسی په وجه راغلې وه، او الله تعالی د دوی غونډ مال ختم کړې وُ، الله رب العزت ددې تذکره په دې آیتونو کې کړی:

﴿ إِنَّا بَلَوْنَاهُمْ كَمَا بَلَوْنَا أَصْحَابَ الْجَنَّةِ إِذْ أَقْسَمُوا لَيَصْرِمُنَّهَا مُصْبِحِينَ ... ﴾. (۲)

دا واقعه قاضي ثناء الله پاني پتي رحمه الله په تفسیر مظهري کې او نورو مفسرینو په خپلو تفسیرونو کې رانقل کړی:

حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما فرمايي: چې په یمن کې یو نیک سړی وُ، د هغه یو باغ وُ "صروان" نوم یې وُ، کوم چې د صنعاء ښار نه د دوه فرسخه په فاصله کې وُ، ددې نیک سړي دا طریقه وه چې د فصل ریبلو په وخت به د لور (په کوم سره چې فصل ریبلې شي) د ځلې نه څه پاتې شو هغه به یې د فقیرانو او مسکینانو د پاره پریښودل، او دې فقیرانو به د هغې نه د خپلې ګزارې د پاره غله حاصلوله.

دغه شان دغلې بادولو په وخت به چې د غنمو کومې دانې د بُوسو سره آلوتې وی هغه به یې هم دفقیرانو دپاره پریښودی.

---

(۱) مشکوة کتاب الزکوة الفصل الثالث في ضمن حدیث ۲۲.

(۲) القلم آیت ۱۷.

دغه شان د باغ د ميوو شوكولو په وخت به چې كومې ميوې لاندې را او غورځيدې هغه به يې هم فقيرانو ته پريښودې (يعنې د لو، غوبل او ميوو شوكولو په وخت به ورته ډير فقيران او مسكينان راجمع كيده، او ده به ورسره امداد كولو).

خو كله چې دا نيک بنده مړ شو، او دده درې (۳) زامن وارثان پاتې شو، نو هغوى په خپل مينځ كې يو بل ته وويل چې: "اوس خو زمونږ بال بچ زيات دى او پيداوار كم دى نو ځكه فقيرانو او مسكينانو ته څه نه شو پريښودى" (په ځنو رواياتو كې راځي چې دې زامنو يې داسې وويل: "زمونږ پلار خو بې وقوف وُ چې هسې يې فقيرانو ته دومره غله پريښوده، مونږ له دغه طريقه بندول په كار دي").

الله ﷻ د دوى واقعه داسې بيانوي:

﴿ إِذْ أَقْسَمُوا لَيَصْرِمُنَّهَا مُصْبِحِينَ . وَلَا يَسْتَثْنُونَ ﴾ .(۱)

ترجمه: هركله چې دوى قسمونه وكړه په خپل مينځ كې، چې دا ځل به دوى ضرور سهر وختي ددې باغ ميوې پريكوي (ددې د پاره چې مسكينان راباندې را خبر نه شي)، او (په دې خپله منصوبه دومره ټينګ ولاړ وو چې) دوى انشاءالله هم او نه ويله.

﴿ فَطَافَ عَلَيْهَا طَائِفٌ مِّن رَّبِّكَ وَهُمْ نَائِمُونَ . فَأَصْبَحَتْ كَالصَّرِيمِ ﴾ .(۲)

ترجمه: پس ستا درب د طرفه په دې باغ باندې يو ګرځيدونكې (عذاب، يعنې أور) وګرځيده، او دوى أوده وو، پس د دوى باغ داسې شو لكه د ريبلي شوي فصل په شان (يعنې ټول فصل يې توره ايرې شو، او مكمل ختم شو).

﴿ فَتَنَادَوْا مُصْبِحِينَ . أَنِ اغْدُوا عَلَىٰ حَرْثِكُمْ إِن كُنتُمْ صَارِمِينَ ﴾ .(۳)

ترجمه: نو دوى د صبا په وخت (وختي) يو بل ته آواز وكړو چې كه چيرته تاسو ميوه راټولوونكي يئ نو سهر وختي خپل پټي ته لاړ شئ.

(۱) القلم آيت ۱۷، ۱۸.

(۲) القلم آيت ۱۹، ۲۰.

(۳) القلم آيت ۲۱، ۲۲.

﴿ فَانْطَلَقُوْا وَهُمْ يَتَخَافَتُوْنَ . أَنْ لَّا يَدْخُلَنَّهَا الْيَوْمَ عَلَيْكُمْ مِّسْكِيْنٌ . وَّغَدَوْا عَلٰى حَرْدٍ قَادِرِيْنَ ﴾ . (۱)

ترجمه : پس دوی روان شو ، او د يو بل سره يې پټې خبرې کولې چې (ګوری) نن د تاسو نه هيڅ يو مسکين دې باغ ته داخل نه شي (او دا پټې خبرې يې ددې د پاره کولې چې څوک راباندې خبر نه شي ، او راپسې رانشي) ، او دوی ډير په اهتمام سره سهر وختي راورسيده ، او دوی په خپل تدبير او قوت سره په دې قادر وو (چې نن به فقيران څه نه وړي) .

﴿ فَلَمَّا رَأَوْهَا قَالُوْا إِنَّا لَضَآلُّوْنَ . بَلْ نَحْنُ مَحْرُوْمُوْنَ ﴾ . (۲)

ترجمه : پس هر کله چې دوی دا (هلاک شوی) باغ وليده (چې هلته هيڅ شی نه وُ پاتې) نو وې ويل : بيشکه مونږ لاره هيره کړې ، (خو کله يې چې خواوُ شا حدودو ته اُوکتل نو وې ويل : ) بلکه (يقيني خبره داده چې) مونږ ددې نعمت نه محرومه کړې شوي يو (او بَد نصيبه يو) .

﴿ قَالَ أَوْسَطُهُمْ أَلَمْ أَقُلْ لَّكُمْ لَوْلَا تُسَبِّحُوْنَ ﴾ . (۳)

ترجمه : په دوی کې مينځني ورور (کوم چې د پلار په شان نيک کس وُ) وويل : آيا ماتاسو ته دا نه وو ويلي چې تاسو د الله ﷻ پاکي ولې نه بيانوئ ؟ (او فقيران مه منع کوئ)

﴿ قَالُوْا سُبْحٰنَ رَبِّنَآ إِنَّا كُنَّا ظٰلِمِيْنَ . فَأَقْبَلَ بَعْضُهُمْ عَلٰى بَعْضٍ يَّتَلَاوَمُوْنَ . قَالُوْا يٰوَيْلَنَآ إِنَّا كُنَّا طٰغِيْنَ . عَسٰى رَبُّنَآ أَنْ يُّبْدِلَنَا خَيْرًا مِّنْهَآ إِنَّآ إِلٰى رَبِّنَا رٰغِبُوْنَ ﴾ . (۴)

ترجمه : بيا دوی وويل : بيشکه زمونږ رب پاک دی ، بيشکه همدا مونږ ظالمان وو (چې د فقير بَرخه خوړل مو غوښته) ، بيا دوی يو بل ته رامخامخ شو چې يو بل يې ملامته کول (چې دا فقيران منع کول ستا غلطه رايه وه ، نو ځکه عذاب راغلو ، ددې اِلزام تراشی نه روستو دوی غور وکړو ، او ټولو اِقرار وکړو چې دا غلطي زمونږ د ټولو ده ، نو توبه يې

(۱) القلم آيت ۲۳ تا ۲۵ .

(۲) القلم آيت ۲۶ ، ۲۷ .

(۳) القلم آيت ۲۸.

(۴) القلم آيت ۲۹ تا ۳۲ .

اُوويسته ، او دالله ﷻ نه يې اميد شروع كړو ، او ) دوى وويل : هاى افسوس (هلاكت ) دى زمونږ دپاره ، بيشكه همدا مونږ د حَد نه تيريدونكي وو ، اميد دى چې زمونږ رب مونږ ته ددينه بهترين باغ راكړي ، بيشكه مونږ خپل رب ته رجوع كوونكي يو .

امام بغوي رحمه الله وايي چې حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ فرمايي چې ماته دا خبره رارسيدلى چې : كله دوى په اِخلاص توبه وويسته نو الله ﷻ دوى ته ددې په بدله كې داسې باغ وركړو چې د هغې د اَنګورو غونچې دومره لوي وى چې يوه غُنچه به په يوه قچر باروله شوه . (۱)

**فايده** : ددې واقعې نه دا معلومه شوه چې څوک هم بُخل كوي ، مالي حقوق نه ادا كوي ، او د مسكينانو لحاظ نه ساتي نو الله تعالى دده په مال هلاكت راولي .

تفسير قرطبي رحمه الله ليكي :

لِأَنَّ الْعُقُوْبَةَ كَانَتْ بِسَبَبِ مَا أَرَادُوْهُ مِنْ مَنْعِ الْمَسَاكِيْنِ كَمَا ذَكَرَ اللّٰهُ تَعَالٰى . (۲)

دا عذاب وريانديې ددې وجې نه راغلى وُ چې دوى د مسكينانو منع كولو اِراده كړې وه . لكه دا خبره الله رب العزت هم په خپله ذكر كړى .

## ۴ . د زكوة نه ادا كولو په وجه په قحط سالۍ كې مبتلاء كيدل

كوم خلق او قوم چې زكوة نه وركوي نو په داسې خلقو بانديې الله ﷻ قحط سالي راولي ، او بارانونه پرې بندوي .

۱ . نبي عليه السلام فرمايي :

مَا مَنَعَ قَوْمٌ الزَّكٰوةَ إِلَّا ابْتَلَاهُمُ اللّٰهُ بِالسِّنِيْنَ . (۳)

---

(۱) تفسير مظهري ج۱۰ ص ۳٦ القلم آيت ۱۷ تا ۳۲ ، معارف القرآن سورة قلم آيت ۱۷ .

(۲) قرطبي جز ۱۸ ص ۲۱۰ القلم آيت ۱۷.

(۳) رواه الطبراني في الاوسط ، ورواته ثقات ، والحاكم والبيهقي في حديث إلا انهما قالا : وَلَا مَنَعَ قَوْمٌ الزَّكَاةَ إِلَّا حَبَسَ اللّٰهُ عَنْهُمُ الْقَطْرَ . وقال الحاكم صحيح على شرط مسلم . المستدرك على الصحيحين ۲۵۷۷ . الترغيب والترهيب ج۱ كتاب الصدقا حديث (۵۲۷/۲۰) . كوم قوم چې زكوة وركول بند كړي نو الله ﷻ په دوى بانديې باران بند كړي .

کوم قوم چې زکوة ورکول بند کړي نو الله تعالی دغه قوم په قحط سالی کې مبتلاء کوي.

۲ . په يو حديث کې نبي ﷺ څه تفصيل ذکر کړی ، رسول الله صلی الله عليه وسلم مهاجرينو ته وفرمايل :

يَا مَعْشَرَ الْمُهَاجِرِيْنَ خِصَالٌ خَمْسٌ إِنِ ابْتُلِيْتُمْ بِهِنَّ وَنَزَلْنَ بِكُمْ أَعُوْذُ بِاللهِ أَنْ تُدْرِكُوْهُنَّ: لَمْ تَظْهَرِ الْفَاحِشَةُ فِيْ قَوْمٍ قَطُّ حَتّٰى يُعْلِنُوْا بِهَا إِلَّا فَشَا فِيْهِمُ الْأَوْجَاعُ الَّتِيْ لَمْ تَكُنْ فِيْ أَسْلَافِهِمْ. وَلَمْ يَنْقُصُوا الْمِكْيَالَ وَالْمِيْزَانَ إِلَّا أُخِذُوْا بِالسِّنِيْنَ وَشِدَّةِ الْمَئُوْنَةِ وَجَوْرِ السُّلْطَانِ . وَلَمْ يَمْنَعُوْا زَكٰوةَ أَمْوَالِهِمْ إِلَّا مُنِعُوا الْقَطْرَ مِنَ السَّمَاءِ . وَلَوْ لَا الْبَهَائِمُ لَمْ يُمْطَرُوْا . وَلَا نَقَضُوْا عَهْدَ اللهِ وَعَهْدَ رَسُوْلِهِ إِلَّا سُلِّطَ عَلَيْهِمْ عَدُوٌّ مِنْ غَيْرِهِمْ فَيَأْخُذُ بَعْضَ مَا فِيْ أَيْدِيْهِمْ . وَمَا لَمْ تَحْكُمْ أَئِمَّتُهُمْ بِكِتَابِ اللهِ إِلَّا جُعِلَ بَأْسُهُمْ بَيْنَهُمْ . (۱)

اې د مهاجرينو ډلې ! پنځه (۵) شيان داسې دي که چيرته تاسو په هغې کې مبتلاء شی (نو په ډير لوي آفت کې به گير شی) ، او زه په الله ﷻ سره پناه غواړم د دې خبرې نه چې تاسو په دې کې مبتلاء شی .

( هغه پنځه شيان دا دي : ) په کوم قوم کې چې بَدکاري علی الإعلان او ښکاره شروع شي نو په دوی کې داسې نوې نوې بيمارياني راپيدا کيږي کومې چې د دوی په اسلافو کې نه وی (يعنی مخکې د دې بيماريانو نوم هم چا نهٔ اَوريدلی) .

---

(۱) رواه ابن ماجه (۴۰۱۹) والبزار والبيهقي من حديث ابن عمر . واللفظ للبيهقي ، الترغيب والترهيب ج۱ (۲۰ /۵۲۷) .

علامه ذهبي رحمه الله په الکبائر کې دا حديث په دې الفاظو رانقل کړی . نبي عليه السلام فرمايي : خَمْسٌ بِخَمْسٍ: قَالُوْا : يَارَسُوْلَ اللهِ ! وَمَا خَمْسٌ بِخَمْسٍ؟ قَالَ : مَا نَقَضَ قَوْمٌ الْعَهْدَ إِلَّا سَلَّطَ اللهُ عَلَيْهِمْ عَدُوَّهُمْ . وَمَا حَكَمُوْا بِغَيْرِ مَا أَنْزَلَ اللهُ إِلَّا فَشَا فِيْهِمُ الْفَقْرُ . وَمَا ظَهَرَتْ فِيْهِمُ الْفَاحِشَةُ إِلَّا فَشَا فِيْهِمُ الْمَوْتُ . وَلَا طَفَّفُوا الْمِكْيَالَ وَالْمِيْزَانَ إِلَّا مُنِعُوا النَّبَاتَ . وَأُخِذُوْا بِالسِّنِيْنَ . وَلَا مَنَعُوا الزَّكٰوةَ إِلَّا حُبِسَ عَنْهُمُ الْقَطْرُ . الکبائر ص ۳۷ الکبيرة الخامسة منع الزکوة .
پنځه شيان د پنځو شيانو په بدله کې دي ، چا عرض وکړو : يارسول الله ! د دې څه مطلب دی ؟ پيغمبر عليه السلام ورته وفرمايل : کوم قوم چې د معاهدې خلاف ورزي کوي نو الله تعالی به په دوی دشمن مسلط (غالب) کوي ، او کوم قوم چې د الله تعالی د نازل کړي قانون نه بغير (په بل قانون) فيصلې کوي نو الله تعالی په دوی فقر عام کړي (غربت پرې راولي) ، او کوم قوم چې په ناپ تول کې کمې کوي نو الله ﷻ د دوی د زمکې پيداوار کم کړي ، او په قحط سالی کې يې مبتلاء کړي ، او کوم قوم چې زکوة ورکول بند کړي نو الله تعالی په دوی باران بند کړي .

او کوم قوم چې په ناپ تول کې کمې کوي نو په دوی باندې قحط سالي، مشقت او د بادشاه ظلم مسلط کولی شي.

او کوم قوم چې د خپلو مالونو نه زکوة ویستل بند کړي نو په دوی باندې د آسمان نه باران بند کړې شي، او که چیرته چارپیان (حیوانات) نه وی نو یو څاڅکې باران به هم نهٔ شوی (خو چونکه چارپیان د الله ﷻ مخلوق دی او بې قصوره دي نو ځکه د دوی د وجې نه هم څه نا څه باران کیږي).

او کوم قوم چې د الله ﷻ او د هغه د رسول ﷺ وعدو خلاف ورزي کوي نو په دوی باندې نور قومونه مسلط کولی شي چې د دوی په لاس کې کوم مال و دولت وي هغه ورنه لوټ کړي.

او چې د چا حاکمان په کتابُ الله باندې فیصلې نه کوي نو د دوی په خپل مینځ کې خانه جنګي شروع کیږي.

## ۵. زکوة نه ورکول د جهنم د تللو سبب دی

زکوة نه ادا کوونکې به د قیامت په ورځ په هغه کسانو کې وي کوم چې به اول جهنم ته داخل کړې شي، رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي:

اَوَّلُ ثَلَاثَةٍ يَدْخُلُوْنَ النَّارَ: أَمِيْرٌ مُسَلَّطٌ، وَذُوْ ثَرْوَةٍ لَايُؤَدِّيْ حَقَّ اللهِ مِنْ مَالِهِ، وَفَقِيْرٌ فَخُوْرٌ. (۱)

اول هغه درې (۳) کسان چې جهنم ته به د ټولو نه اول داخلیږي په هغې کې اول ظالم بادشاه دی، دویم هغه مالدار سړی دی چې د خپل مال نه د الله تعالی حق (زکوة) نه ادا کوي، او دریم هغه فقیر دی چې باوجود د فقر نه تکبر کوي.

(۱) اخرجه ابن ابي شيبة (۵/ ۲۹۶)، و رواه ابن خزيمة في صحيحه، وابن حبان، الترغيب والترهيب ج۱ كتاب الصدقة (۹/ ۵۲۳)، نزهة الناظرين كتاب الصدقة الباب الثالث في التشديد على تارك الزكوة ص ۱۹۶.

**لطيفه** : کله چې کافرِ په دارُ الإسلام کې جِزيه ورکوي نو په دې سره دده جان ومال محفوظ ګرځي ، نو که چيرته يو مسلمان په طِيبِ نفس سره زکوة ورکوي نو په دې سره به هم دې په آخرت کې د جهنم د اور نه محفوظ ګرځي . (۱)

## ٦ . زکوة نه ورکول د عذابِ قبر سبب دی

علامه عبدالرحمن صفوري رحمه الله په خپل کتاب کې يوه واقعه ذکر کړې ، چې د حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما په زمانه کې ډير مالدار سړی ؤ ، کله چې دې وفات شو ، او خلقو ورله قبر وکنيسته نو په قبر کې يو لوی مار راووت ، خلقو ابن عباس ﷺ ته ددې خبر ورکړو ، هغه ورته وويل چې بل قبر ورله اُوکنئ ، کله چې يې بل قبر ورله جوړ کړو نو په هغې کې هم دا غټ مار راووت ، تر دې پورې چې اووه (۷) قبرونه يې ورله اوکنيسته او په هر يو کې به دا مار راوَت ، حضرت ابن عباس ﷺ د دده دکور واله نه پوښتنه وکړه چې ده به څه عمل کولو ( چې اوس ورته په هر قبر کې مار راووځي ؟ ) هغوی ورته وويل : ده به د خپل مال نه زکوة نه ورکول . ابن عباس ﷺ ورته حکم وکړو چې اوس يې دهمدې مار سره خخ کړئ ( ځکه چې دا دده د خپل عمل جزاء ده ) . (۲)

## ۷ . زکوة نه ورکوونکې به دقيامت په ورځ د الله ﷻ د رحمت نه لرې وي

کوم سړې چې فرضي زکوة نه ورکوي نو د قيامت په ورځ به دغه فقيران د الله ﷻ په دربار کې په دې مالدارو باندې شِکايت وکړي ، چې اې الله ﷻ ! دې خلقو زمونږ حقوق د مونږ نه منع کړي وو .

---

(۱) اَلْكَافِرُ يحرمُ دَمُهُ وَمَالُهُ بِأَخْذِ الجِزْيَةِ مِنْهُ . وَكَذٰلِكَ الْمُؤْمِنُ يحرمُ لَحْمُهُ وَدَمُهُ عَلَى النَّارِ فِي الآخِرَةِ إِذَا أَخْرَجَ الزَّكٰوةَ بِطِيْبِ نَفْسٍ . نزهة المجالس ج۱ ص ۱۸٦ باب فضل الزكوة .

(۲) كان في زمن ابن عباس رضى الله عنهما رجلٌ كثيرُ المالِ فلمّا مات حفروا قبرَه . فوَجَدُوا فيه ثعبانًا عظيمًا . فأخبروهُ ابن عباس ﷺ بذلك . فقال : احفروا غيره . فحفروا . فوجدوا الثعبان فيه حتى حفروا سبعة قبور . فسألَ ابنُ عباس ﷺ أهله عن حاله . فقالوا : إِنَّهُ كَانَ يَمْنَعُ الزَّكٰوةَ . فَأَمَرَهُمْ بِدَفْنِهِ مَعَهُ . نزهة المجالس ج۱ ص ۱۸۵ باب فضل الزكوة .

نبي عليه السلام فرمايي :

وَيْلٌ لِلْأَغْنِيَاءِ مِنَ الْفُقَرَآءِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ يَقُوْلُوْنَ : رَبَّنَا ظَلَمُوْنَا حُقُوْقَنَا الَّتِيْ افْتَرَضْتَ لَنَا عَلَيْهِمْ . فَيَقُوْلُ اللهُ تَعَالَى : وَعِزَّتِيْ وَجَلَالِيْ لَأُدْنِيَنَّكُمْ وَلَأُبْعِدَنَّهُمْ . ثُمَّ تَلَا رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ﴿ وَالَّذِيْنَ فِيْ أَمْوَالِهِمْ حَقٌّ مَّعْلُوْمٌ . لِّلسَّائِلِ وَالْمَحْرُوْمِ ﴾ . (۱) ، (۲)

هلاكت دي ( هغه ) غنيانو لره ( كوم چې د مال فرضي حقوق نه اداء كوي ) ، ځكه د قيامت په ورځ به فقيران الله ﷻ ته ووايي : اې زمونږه ربه ! دې مالدارانو د مونږ سره ظلم كړې وُ د هغه حقوقو متعلق كوم چې تا زمونږ د پاره په دوی باندې فرض كړي وُ ( يعنى مونږ ته يې فرضي زكوة نه راكول ) . الله رب العزت به ورته وفرمايي : زما دې په خپل عزت او جلال قسَم وي چې زه به خامخا تاسو مقرّب كړم ، او دوی به د خپل رحمت نه لرې كړم . بيا رسول الله صلى الله عليه وسلم دا آيتِ مباركه اولوست : ﴿ وَالَّذِيْنَ فِيْ أَمْوَالِهِمْ حَقٌّ مَّعْلُوْمٌ... ﴾ ترجمه : .... او هغه خلق چې د هغوی په مالونو كې حق معلوم دی ، د سوال كوونكو او محتاجو د پاره .

## په سروزَرو او سپينوزرو كې دزكوة نه وركولو سزا

د كومو زنانهٔ سره چې د سرو زرو يا سپينو زرو زيورات وي او هغه نصاب ته رسي ، په دې كال تير شي ، او دا ورنه زكوة نه اُوباسي نو دداسې زَنانه د پاره سخت وعيدونه ذكر شوي چې همدغه سره زَر او سپين زَر به د دوی د پاره د جهنم اُور وګرځي .

۱ . رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي :

أَيُّمَا اِمْرَأَةٍ تَقَلَّدَتْ قِلَادَةً مِنْ ذَهَبٍ قُلِّدَتْ فِيْ عُنُقِهَا مِثْلَهَا مِنَ النَّارِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ . وَأَيُّمَا اِمْرَأَةٍ جَعَلَتْ فِيْ أُذُنِهَا خُرْصًا مِنْ ذَهَبٍ جُعِلَ فِيْ أُذُنِهَا مِثْلُهُ مِنَ النَّارِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ . (۳)

---

(۱) المعارج آيت ۲۴ ، ۲۵ .

(۲) ذكره الهيثمي في المجمع ( ۶۲/۳ ) ، نزهة الناظرين كتاب الصدقة ص ۱۹۷ .

(۳) رواه ابوداؤد والنسائي باسناد جيد ، الترغيب والترهيب ج۱ ( ۵۳۳/۳۱ ) .

كومه ښځه چې په غاړه كې د سرو زرو هار اَچوي (او نصاب ته د رسيدو باوجود د دينه فرضي زكوة نه وركوي) نو د قيامت په ورځ به ددې په غاړه كې همدغه شان د اُور هار اچولې شي، او كومه ښځه چې په غوږونو كې د سرو زرو غوږوالې اچوي (او ددينه زكوة نه وركوي نو د قيامت په ورځ به ديته د اُور غوږوالې وراچولې شي.

۲. د ابوداؤد شريف حديث دى، حضرت عايشه رضى الله عنها فرمايي چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم زما كورته راغى، نو زما په لاس كې يې غټې غټې د سرو زرو ګټمې وليدى، نو راته وې فرمايل: مَا هٰذَا يَا عَائِشَةُ؟ اې عائشې! دا څه شى دى؟

ما ورته ووېل: صَنَعْتُهُنَّ أَتَزَيَّنُ لَکَ يَا رَسُوْلَ اللهِ.

اې د الله رسوله! دا مې ددې د پاره جوړې كړي چې تاسو د پاره پرې ځان مزيّن كړم.

نبي عليه السلام راته وفرمايل: أَتُؤَدِّيْنَ زَكَاتَهُنَّ؟ آيا ته ددې زكوة وركوى؟

ما ورته ووېل: نه. (ددې زكوة نه وركوم) .نو پيغمبر عليه السلام راته وفرمايل:

هِيَ حَسْبُکِ مِنَ النَّارِ. (۱) ستا د جهنم د بوتلو دپاره همدا كافي دي.

## د څاروو نه دزكوة نه ويستونكي كس سزا

د كوم سړي سره چې د نصاب برابر اُوښان، غواګاني او چيلى وي او د هغې نه زكوة نه وركوي نو د داسې كس دپاره هم سخته سزا ذكر ده. (۲)

د مشكوة شريف حديث دى، رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي: مَا مِنْ رَجُلٍ يَكُوْنُ لَهُ إِبِلٌ أَوْ بَقَرٌ أَوْ غَنَمٌ لَايُؤَدِّيْ حَقَّهَا إِلَّا أُتِيَ بِهَا يَوْمَ الْقِيَامَةِ أَعْظَم مَا تَكُوْنُ وَأَسْمَنَهُ تَطَؤُهُ بِأَخْفَافِهَا وَتَنْطَحُهُ بِقُرُوْنِهَا كُلَّمَا جَازَتْ أُخْرَاهَا رُدَّتْ عَلَيْهِ أُوْلَاهَا حَتّٰى يُقْضٰى بَيْنَ النَّاسِ. (۳)

---

(۱) حضرت عايشه رضى الله عنها فرمايي: دَخَلَ عَلَيَّ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ فَرَاٰى فِيْ يَدَيَّ فَتَخَاتٍ مِنْ وَرِقٍ. فَقَالَ: مَا هٰذَا يَا عَائِشَةُ؟ فَقُلْتُ: صَنَعْتُهُنَّ أَتَزَيَّنُ لَکَ يَا رَسُوْلَ اللهِ. قَالَ: أَتُؤَدِّيْنَ زَكَاتَهُنَّ؟ قُلْتُ: لَا. هِيَ حَسْبُکِ مِنَ النَّارِ.
ابوداؤد كتاب الزكوة باب ۵۲۶ الكنز ماهو وزكاة الحلي ۱۵۵۱، الترغيب والترهيب ج۱ ص ۲۱۲ (۲۷ / ۵۳۰).

(۲) نوټ: د اُوښانو، غواګانو او چيلو څانله څانله نصاب دى، تفصيل په كې دير دى، دلته يې نه شم ليكلى، كه د چا سره دير څاروي وي نو ددې د زكوة تفصيل دې د علماؤ نه معلوم كړي. ابوالشمس

(۳) متفق عليه، مشكوة كتاب الزكوة الفصل الاول حديث ۴.

د کوم سرې سره چې اُوښان، غواګانې او چیلۍ وي، او دا ددې نه زکوة نه ورکوي نو د قیامت په ورځ به دا څاروي په داسې حال کې راوستې شي چې ډیر غټ او په څورب شکل کې به وي، نو دا څاروي به دا سړې په خپلو خپو سره مړي (چَخنړې کوي به یې)، او په خپلو ښکرونو سره به یې وهي، کله چې ددې څاروو آخري جماعت لاړشي نو بیا به ړومبې جماعت راوستې شي (یعنی بار بار به دا څاروي په ده باندې ځي راځي، دې به په خپو کې چَخنړې کوي، او په ښکرونو به یې وهي)، دا سلسله به تر هغه وخته پورې جاري وي تر څو پورې چې د خلقو حساب و کتاب کولو سره د هغوی فیصله اُو نکړې شي.

## بخیل سړې د شیطاني وسوسو په وجه زکوة نه ورکوي

ډیر بخیلان ددې د وجې زکوة نه ورکوي چې د دوی په ذهنونو کې دا شیطاني وَسوسه وي چې که چیرته زه د خپل مال نه زکوة اُو باسم نو دا خو ډیرې روپۍ جوړیږي، په دې سره به زما اَصل سَرمایه کمه شي. حالانکه په زکوة ورکولو سره مال نه کمیږي بلکه نور هم په کې برکت راځي.

دغه رنګې کله چې څوک د زکوة ورکولو اِراده وکړي نو په اِنساني جَامه کې ډیر د شیطان ملګري ورته رامخې ته شي او دا وَسوسې وراچوي چې که ته دا زکوة ورکړې نو بیا به ستا بچو او ښځو ته څه پاتې شي؟ په تا باندې خو د بچو او ښځې حق زیات دی. نو دا بخیل په دې دُهوکه کې راشي او زکوة بیا نه ورکوي.

لهذا انسان ته په کار دي چې د دُنیا سره دومره محبت او نه کړي چې ددې په وجه یو مالي فرضي عبادت ورنه پاتې شي، او نه د زکوة په ورکولو کې د بچو او ښځو د حق ضائع کیدلو پَرواه وکړي، بلکه د شریعت موافق دې د خپل مال نه زکوة ورکوي.

الله تعالی فرمایي: ﴿اَلشَّيْطٰنُ يَعِدُكُمُ الْفَقْرَ وَيَاْمُرُكُمْ بِالْفَحْشَآءِ وَاللّٰهُ يَعِدُكُمْ مَّغْفِرَةً مِّنْهُ وَفَضْلًا وَاللّٰهُ وَاسِعٌ عَلِيْمٌ﴾. (۱)

ترجمه: شیطان د تاسو سره د فقر وعده کوي (یعنی تاسو د محتاجه کیدو نه یَروي)، او د بې حیایۍ (او شومتوب) حکم درته کوي. او الله تعالی درسره (د مال په لږولو او بنه څیز

---

(۱) البقرة آیت ۲٦۸.

ورکولو سره) د خپلې بخښې او مهربانۍ وعده کوي، او الله تعالی د فراخی خاوند او پوهه دی

## واقعه:

امام رازي رحمه الله په تفسیر کبیر کې یوه واقعه رانقل کړې: چې یو عالِم د زکوة او صدقې په باره کې وعظ کولو، او دایې وویل: کله چې یو انسان په خرابو ځایونو کې مال لږوي نو هیڅوک یې نه منع کوي خو چې زکوة، صدقه یا بل نیک کار کې یې خرچ کوي نو بیا شیطان او د شیطان ملګري یې صدقې ورکولو ته نه پرېږدي.

په دې مجلس کې یو کس ناست ؤ، هغه وویل چې: کله زه صدقه ورکوم نو ما به شیطان او د هغه ملګري څنګه منع کړي، دا دې زه اوس ځم، صدقه ورکوم، ګورم چې ما څوک منع کولې شي؟

کله چې کورته راغی، د غنمو نه یې لمن راډکه کړه، په کور کې خپلو بچو ولید، مور ته یې آواز وکړو چې: راشه، پلار مو ټول غنم وړي وړه.

کله چې ددې سړي بي بي راغله، پوښتنه نه یې ورنه وکړه: په دې غنمو څه کوی؟ ده ورته وویل: صدقه کوم یې. هغې ورته وویل:

څه څه، صدقه کوې یې. دا مونږ به څه خورو؟ او دا بچې به دې څه خوري؟

دواړو سره خبرې ګرمې کړې، آخر دا چې دې ښځې یې دده لمن ته لاس وَرواچول، او ټول غنم یې ورنه توی کړه.

دا کس خالي لاس جُمات ته راغی، خلقو ورنه پوښتنه وکړه: تاخو صدقه رانه وړه؟

ده ورته وویل: یره څه وکړم، ما د شیطان او دهغه د ملګرو مقابله وکړه، خو د شیطانانو مور راباندې غالبه شوه، او د صدقې غنم یې رانه ټول توی کړه. (۱)

## د زکوة نه د اِنکار کوونکي کس سزا

دا خبره مخکې بیان شوه چې د زکوة نه اِنکار کول کُفر دی، چا چې د زکوة نه اِنکار کړی الله ﷻ هغه په دُنیا کې هم رَسوا کړی، او په آخرت کې خو به هسې هم دده د پاره دَرد ناک عذاب وي.

---

(۱) تفسیر کبیر، صدقه کې برکات ص۳۶۸.

# د قارون واقعه

په قرآن مجيد سورة قصص کې په اتمه (۸) رکوع کې د قارون واقعه ذکر ده، کومه چې تفسير مدارک، تفسيرکشاف او درّمنثور واله تفصيلي ذکر کړې ( خو زه به يې درته مختصر مطلبي ځاى ذکر کړم).

قارون ته الله رب العزت ډير مال ورکړې وُ، الله ﷻ فرمايي:

﴿ وَآتَيْنَاهُ مِنَ الْكُنُوزِ مَآ إِنَّ مَفَاتِحَهُ لَتَنُوءُ بِالْعُصْبَةِ أُولِي الْقُوَّةِ ﴾. (۱)

ترجمه: او مونږ ده ته دومره ډيرې خزانې ( د مال و دولت ) ورکړې وې چې د هغې ګنجيانې به د طاقتورو کسانو په ډله باندې درنې وې.

(يعنى د طاقتورو کسانو پوره جَماعت به په ډير مشکل سره دده د خزانو ګنجيانې پورته کولې شوې. پس هر کله چې ګنجيانې يې دومره ډيرې وې نو خزانې خو به يې يقينًا ډيرې زياتې وې).

حضرت موسى عليه السلام او دده قوم ورته ډير نصيحت وکړو چې تکبّر مه کوه، او په دې مال کې د آخرت دپاره څه عمل وکړه.

دلته علامه جلال الدين سيوطي رحمه الله په خپل تفسير کې د حضرت ابن عباس رضى الله عنهما قول رانقل کړى چې حضرت موسى عليه السلام ورته وفرمايل:

إِنَّ اللهَ أَمَرَنِيْ أَنْ اٰخُذَ الزَّكٰوةَ. (۲)

بيشکه الله ﷻ ماته د تا نه د زکوة اخيستلو حکم کړى، نو قارون دده نه اِنکار وکړو، او قوم ته يې وويل چې: حضرت موسى ﷺ په څه چل کې ستاسو مالونه خُوري. تاسو مخکې دده ډير حکمونه منلي دي، اوس وايي چې زکوة راکړئ. نو آيا تاسو دا خبره برداشت

---

(۱) القصص آيت ۷٦.

(۲) تفسير درّمنثور ج٦ ص ۳۸۷ القصص آيت ۷۷. په تفسير مدارک او تفسير کشاف کې ذکر دي چې کله موسى عليه السلام دده ته د زکوة حکم وکړو چې د هر وُزرو (۱۰۰۰) دينارو او زرو (۱۰۰۰) درهمو په عوض کې يو دينار او يو درهم زکوة اُوباسه، قارون چې ديته حساب وکړو نو دده نه ډير شى جوړيده، نو بُخل يې وکړو، او د زکوة نه يې اِنکار وکړو. تفسير مدارک ج۲ ص ۲۷۷ القصص آيت ۷۷، تفسير کشاف ج۳ ص ۴۳۷ القصص آيت ۷۷.

کوئ ؟ د قارون ملګرو وويل : مونږ هيڅ کله دا خبره نه برداشت کوو ، پس ته زمونږ مشر يې ، ته چې څه حکم کوی مونږ يې منو . قارون وويل چې زه به يوه زِناکاره ښځه د مال و دولت په زُور پدې راضي کړم چې په حضرت موسی ﷺ باندې د زِنا تهمت اُولږوي (نو په خلقو کې به بدنام شي ، خلق به بيا دده خبرو ته غوږ نه ږدي )

نو ده د يوې زِنا کاره ښځې سره خبره وکړه چې کله د اختر په ورځ حضرت موسی ﷺ د تورات احکامات بيانوي نو ته به پرې تهمت اُولږوي . هغې وويل چې صحيح ده .

کله چې د اختر ورځ شوه ، او حضرت موسی ﷺ خپل قوم ته د تورات احکامات بيانول شروع کړه : چې اې بني اسرائيلو ! که چا غلا وکړه نو مونږ به يې لاس پرېکوو ..... که چا زِنا وکړه او شادي شده کس وُ نو مونږ به يې رَجَم کوو . نو په دې کې قارون راپاڅيده او وې ويل :

که دا کار تا وکړو نو بيا ؟ حضرت موسی ﷺ ورته وفرمايل چې زما هم همدا حکم دی

قارون وويل چې بعضې خلق دا ګمان کوي چې تا دا کار د فلانکۍ ښځې سره کړې دی .

کله چې هغه ښځه راوستې شوه ، حضرت موسی ﷺ ورته قَسَم ورکړو چې رِيښتيا ووايه ، او صحيح خبره بيان کړه . هغې اقرار وکړو چې ما ته قارون دومره دومره مال و دولت راکړی دی چې ته په حضرت موسی عليه السلام باندې تهمت اُولږوه ، خو زه دا ګواهي ورکوم چې ته پاک يې او د الله ﷻ رسول يې .

حضرت موسی ﷺ په سجده پريوت ، او الله ﷻ ته په ژړا شو . الله ﷻ ورته وحي وکړه :

مُرِ الْأَرْضَ بِمَا شِئْتَ فَإِنَّهَا مُطِيعَةٌ لَكَ .

اې موسی ! زمکې ته حکم وکړه چې څه ستا خوښه وي ، زمکه به ستا تابعداري کوي .

نو حضرت موسی ﷺ زمکې ته حکم وکړو :

يَا أَرْضُ ! خُذِيْهِمْ . اې زمکې دې او دده ملګري اونيسه .

نو زمکې ټول لاندې راښکل ، تر دې چې د زنګنونو پورې دوب شو .

قارون او دده ملګرو حضرت موسی ﷺ ته سوال او زاري شروع کړی، چې مونږ معاف کړه، او قسمونه يې کول چې بيا به هيڅکله داسې نه کوو. خو حضرت موسی ﷺ معاف نه کړه.

حضرت موسی عليه السلام په دويمه پيره زمکې ته حکم وکړو :

خُذِيْهِمْ . دوی ټول اونيسه (رايې کاږه) نو زمکې تر نيمايي بدن پورې رانښکوده.

دوی بيا سوال او زاری شروع کړې. خو حضرت موسی ﷺ معاف نه کړه. ځکه دې دير غصه وُ.

په دريمه پيره حضرت موسی ﷺ زمکې ته حکم وکړو : خُذِيْهِمْ . دوی ټول اونيسه .نو زمکې ټول دوب کړه. (۱)

الله جل جلاله فرمايي :

﴿ فَخَسَفْنَا بِهٖ وَبِدَارِهِ الْأَرْضَ فَمَا كَانَ لَهٗ مِنْ فِئَةٍ يَّنْصُرُوْنَهٗ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَمَا كَانَ مِنَ الْمُنْتَصِرِيْنَ ﴾ . (۱)

ترجمه: مونږ قارون او دده کور په زمکه کې ورښخ کړه، پس بيا داسې يو ټولې نه وُ چې د الله ﷻ په مقابله کې يې دقارون مدد کړې وی، او نه ده په خپله خپل ځان بچ کړې شو (يعنی نه خو يې خپل ځان د عذاب نه بچ کړې شو او نه يې د حضرت موسی عليه السلام نه بدل واخيستې شو).

مفسرينو ليکلي چې د قارون د غرقيدو په وخت بعضې بني اسرائيلو وويل چې موسی عليه السلام ګني دده مال و دولت حاصلول غواړي، نو حضرت موسی ﷺ دُعا وکړه، نو قارون، دده کور او خزانې ټول الله ﷻ په زمکه کې ننويسته. (۳)

(۱) تفسير مدارک ج۲ ص۲۷۸، تفسير کشاف ج۳ ص۴۳۷ القصص ايت ۷۷. الدّرّالمنثور فی التفسير بالماثور ج۶ ص۳۸۶ القصص آيت ۸۱.

(۲) القصص آيت ۸۱.

(۳) تفسير مدارک ج۲ ص۲۷۸، تفسير کشاف ج۳ ص۴۳۷ القصص ايت ۷۷.

# منافق ته د خپل مال نه زکوة ويستل ډير ګران معلوميږي

کله چې د يو سړي ايمان کمزورې وي، او په زړه کې يې د دُنيا محبت وي نو بيا ده ته د خپل مال نه زکوة ويستل ډير ګران ښکاري، او دا ورته يو مالي تاوان معلوميږي.

الله ﷻ هم په سورة توبه کې د بعضې منافقانو تذکره کړې، الله تعالى فرمايي:

﴿ وَمِنْهُمْ مَّنْ عٰهَدَ اللهَ لَئِنْ اٰتٰنَا مِنْ فَضْلِهٖ لَنَصَّدَّقَنَّ وَلَنَكُوْنَنَّ مِنَ الصّٰلِحِيْنَ ... ﴾. (۱)

ددې آيت په شانِ نزول کې اکثره مفسرينو يوه واقعه رانقل کړې، کومه چې بغوي، ابن جرير، ابن ابي حاتم، ابن مردويه او بيهقي رحمهم الله د حضرت امامة باهلي رضي الله عنه په روايت سره نقل کړې.

## د ثعلبه بن حاطب واقعه

(**نوټ**: ددې واقعې بيانولو نه مخکې په دې خبره باندې ځان پوهه کړئ چې د نبي عليه السلام په زمانه کې د ثعلبة بن حاطب په نوم باندې دوه (۲) کسان وو:

يو '' ثعلبه بن حاطب الاوسي البدري '' ؤ کوم چې غزوه بدر او غزوه اُحد کې شريک شوې ؤ، او په اُحد کې شهيد شوې هم ؤ.

او دويم ثعلبه بن حاطب منافق ؤ.

مفسرينو چې دکوم ثعلبه بن حاطب واقعه ددې آيت لاندې ليکلي نو ددې نه دا دويم ثعلبه منافق مراد دی، دا د حضرت عثمان رضي الله عنه په دورِ خلافت کې مړ شوې ؤ.

ځکه هغه اول ثعلبه بن حاطب الاوسي خو بَدري صحابي دی او په غزوه اُحد کې شهيد شوی. او د بدري صحابه ؤ په باره کې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي:

لَايَدْخُلُ النَّارَ أَحَدٌ شَهِدَ بَدْرًا وَالْحُدَيْبِيَةَ.

هغه کس به هيچرې د جهنم اُور ته داخل نه شي چې غزوه بدر او حُديبې کې حاضر شوی وي (يعنی په دې دوه ځايونو کې شريک شوې وي).

---

(۱) التوبة آيت ۷۵.

نوټ: [ د ثلعبه بن حاطب په باره کې تحقيق لاندې په حاشيه کې اوګوره. (۱) ]

واپس راځم شانِ نزول ته. حضرت امامه باهلي ﷺ فرمايي چې يو کس " ثعلبه بن حاطب انصاري " د رسول الله صلی الله عليه وسلم په خدمت کې حاضر شو، او ورته وې ويل: أُدْعُ اللهَ أَنْ يَّرْزُقَنِيْ مَالًا. د الله ﷻ نه دُعا اوغواړه چې ماته ډير مال راکړي او زه مالدار شم.

پيغمبر عليه السلام ورته وفرمايل: وَيْحَكَ يَا ثَعْلَبَة. قَلِيْلٌ تُؤَدِّيْ شُكْرَهُ خَيْرٌ مِنْ كَثِيْرٍ لَاتُطِيْقُهُ.

افسوس دې په تا باندې اې ثعلبه، هغه لږ مال چې ته د هغې شکر ادا کړې د هغه ډير مال نه بهتر دی چې ته د هغې حقوق نشې ادا کولی.

ثعلبه بيا خپله خبره وکړه، نبي عليه السلام ورته وفرمايل:

---

(۱) **د ثعلبه بن حاطب په باره کې علمي تحقيق**: قَالَ الشيخُ ابن حجرٍ: وصاحبُ تلک القصةِ مغائرٌ لِثعلبة بن حاطب الاوسي البدري فإنّه استشهد بأُحُدٍ على ما قاله ابن الكلبي. وايضًا روي ابن مردويه أَنّ صاحبَ تلک القصة ثعلبة بن حاطب وكيف يصحّ أَنْ يكونَ بَدريًا. وقد ثَبَتَ أَنّه صلى الله عليه وسلم قال: لَايَدْخُلُ النَّارَ أَحَدٌ شَهِدَ بَدْرًا وَالحُدَيْبِيَّةَ. كرخي، حاشيه جلالين نمبر ۱۳. وحكي عن ربّه أنّه قَالَ لِأَهْلِ بَدْرٍ: إِعْمَلُوْا مَاشِئْتُمْ قَدْ غَفَرْتُ لَكُمْ. فمن يكون بهذه المثابة كيف يعقبه الله نِفَاقًا في قلبه. فَالظَاهِرُ أَنّه غيره. الاصابة ۱/ ۱۹۸، حاشيه روح المعاني جز ۱۰ ص ۲۶۴. /وَهذَا الّذي ذَكَرَهُ المفسرونَ غير " ثعلبة بن ابي حاطب " الصحابي المشهور، وإنّما هذا رَجُلٌ مِنَ المنافقين يُسَمّى ثعلبة. حاشيه صفوة التفاسير ج۱ ص ۵۱۳.

وَأَمّا ثعلبةُ بنُ حاطب الانصاري ففي تَرْجَمَتِهِ خَلَطٌ كثيرٌ. أهو رجلٌ واحدٌ أم رجلانِ؟ أولهما هوالّذي آخى رسولُ الله بينه وبين معتب بن الحمراء. وَالّذِيْ شَهِدَ بَدْرًا وَأُحُدًا. والآخر هو صاحبُ هذه القصّة. يُقَالُ: إِنَّ الأَوَّلَ قُتِلَ يَوْمَ أُحُدٍ. وَجَعَلَهُمَا بَعْضُهُمْ رَجُلاً وَاحِدًا وَلَكِنْ أَنْ يَكُوْنَ قُتِلَ يَوْمَ أُحُدٍ. انظر ترجمته في الاصابة، والاستيعاب ۷۸، وأُسد الغابة ۱ : ۲۳۷، وابن سعد ۳/۲/۳۲.

**نوټ**: کوم محققين علماء چې دا ګڼي چې ثعلبه بن حاطب انصاري د نبي عليه السلام په زمانه کې صرف يو کس وُ نو هغوی بيا په دې واقعه باندې سخت ردُونه کړي چې دا واقعه ضعيفه ده، ځکه چې ثعلبه بن حاطب انصاري خو بَدري صحابي وُ. خو صحيح داده چې ثعلبه بن حاطب دوه (۲) کسان وو، يو صحابي وُ، او بل منافق وُ، په دې آيت کې چې مفسرينو د کوم ذکر کړی هغه منافق وُ. صحابي نه وُ. ابو الشمس عفي عنه.

أَمَا تَرْضٰى أَنْ تَكُوْنَ مِثْلَ نَبِيِّ اللهِ . فَوَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ لَوْ شِئْتُ أَنْ تَسِيْرَ مَعِيَ الْجِبَالُ ذَهَبًا وَفِضَّةً لَسَارَتْ .

اې ثعلبه ! آيا ستا دا خوښه نه ده چې ته په فقر او غريبئ کې د الله ﷻ د نبي په طريقه لاړ شې ، زما دې قسم وي په هغه ذات چې د چا په قبضه کې زما ساه ده که چيرته زه او غوارم چې دا غرونه د سرو زرو او سپينو زرو جوړ شي او د ما سره ګرځي نو هم د ما سره به هر ځای روان وي ( خو زما دا نه ده خوښه ، بلکه فقر مې خوښ دی ) .

ثعلبه وويل : زما دې قسم وي په هغه ذات کوم چې ته بَرحقه پيغمبر راليږلې يې که چيرته تا زما د پاره د الله ﷻ نه دُعا اوغوښته ، او هغه ما له مال راکړو نو زه به هر حقدار ته حق ورکوم (يعنی زکوة او نفلي صدقات به ادا کوم ) .

پيغمبر عليه السلام ورته دُعا وکړه :

اَللّٰهُمَّ ارْزُقْ ثَعْلَبَةَ مَالًا . اې الله ! ثعلبه ته مال ورکړې .

د نبي عليه السلام د دُعا په برکت سره د ثعلبه په چيلو کې داسې برکت پيدا شو چې د مدينې منورې زمکه پرې تنګه شوه ، او د مدينې نه بهر اووت ، ده به د ماسپخين او ماز يګر لمونځ په مدينه کې د جَمعې سره کول او نور لمونځونه به يې بهر هغه ځای کې کول چيرته به چې دده مال وُ .

بيا يې چيلئ نورې هم زياتې شوی او دغه ځای پرې هم تنګ شو ، د هغه ځای نه به صرف د جُمعې مانځه له مدينې منورې له راتلو ، او نور پنځه واړه لمونځونه به يې هم هملته ادا کول . چيلئ يې ورځ په ورځ همداسې زياتيدی تردې چې دومره زياتې شوی چې هغه ځای يې هم پريښود ، او دومره لرې ديره شو چې د جُمعې او پنځه واړه لمونځونو جَمعه ورنه پاتې شوه .

څه وخت پس رسول الله صلی الله عليه وسلم د خلقو نه دده باره کې پوښتنه وکړه :

مَا فَعَلَ ثَعْلَبَةُ ؟ ثعلبه په څه حالت دی ؟

خلقو ورته وويل : اې د الله رسوله ! د هغه چيلئ دومره ديرې شوې دي چې د مدينې زمکه پرې تنګه شوه ، او س چيرته لرې ديره دی ( نو ځکه نشي ليدی ) .

پیغمبر علیه السلام ددې په اَوریدو وفرمایل :

يَا وَيْحَ ثَعْلَبَة . يَا وَيْحَ ثَعْلَبَة . يَا وَيْحَ ثَعْلَبَة .

افسوس په ثعلبه ، افسوس په ثعلبه ، افسوس په ثعلبه .

په دې ورځو کې د زکوة آیت نازل شو په کوم کې چې رسول الله ﷺ ته د مسلمانانو نه د صدقاتو (زکوة) راغونډلو حکم اوشو . الله تعالی فرمایي :

﴿ خُذْ مِنْ أَمْوَالِهِمْ صَدَقَةً تُطَهِّرُهُمْ وَتُزَكِّيهِمْ بِهَا ... ﴾ .(۱)

ترجمه : اې پیغمبره ! ته د دوی د مالونو نه صدقه (زکوة) واخله چې ته د دې صدقې په ذریعه دوی (د ګناهونو نه) پاک او صفا کړې .

رسول الله ﷺ دوه (۲) کسان د زکوة راغونډلو د پاره ولیږل ، هغوی ته یې د خلقو نه د زکوة راغونډولو پوره قانون ولیکل چې د خلقو نه به په کومه طریقه زکوة راغونډوئ او کوم مال به اخلئ ؟

او دې دوه کسانو ته یې وویل چې تاسو د ثعلبه او د بني سُلیم یو کس نه هم زکوة وصول کړئ . دا دوه کسان چې کله ثعلبه له ورغله ، او ده ته یې د رسول الله ﷺ دا فرمان مبارک واورول ، نو ده ورته وویل :

مَا هٰذِهٖ إِلَّا جِزْيَةٌ . مَا هٰذِهٖ إِلَّا أُخْتُ الْجِزْيَةِ . مَا أَدْرِيْ مَا هٰذَا ؟

دا خو جزیه ده ، یا د جزیې په شان ده ، زه خو په دې نه پوهیږم چې د مانه مال اخیستل څه شی دی ؟

او بیا یې ورته وویل : چې تاسو کله د هغه بل ځای نه فارغ شئ نو بیا دلته راشئ .

بیا دا دوه کسان هغه بل کس "سُلیمي" ته ورغلل او هغه ته یې د رسول الله ﷺ فرمان مبارک واورول ، هغه د خپل مال نه بهترین څاروي راغونډ کړه ، او دوی ته یې راوسته چې دا واخلئ ، دوی ورته وویل : مونږ د چانړ کړې شوي څاروو اخیستو نه منع کړې شوي یو ، په تا خو دا واجب نه دي ، بلکه په تا خو درمیانه قِسم څاروي واجب دي ، هغه سُلیمي کس ورته

(۱) التوبة آیت ۱۰۳ .

وويل : دا واخلئ ، دا زه په خپله خوښه په طيبِ نفس درکوم ( او ددې په اخيستو يې ټينګار وکړو ) .

دې دوه کسانو دا څاروي ورنه واخيست ، او واپس په ثعلبه باندې راغله ، ثعلبه ورته وويل : تاسو ماته د زکوة وصولولو حُکم نامه اُوښايئ . دوی چې ورته اُوخوده ، ده په کې سوچ کولو او ورته وې ويل :

مَا هٰذِهٖ إِلَّا أُخْتُ الْجِزْيَةِ . إِنْطَلِقَا حَتّٰى أَرٰى رَأْيِيْ.

دا خو يو قِسم جِزيه ده ( چې د مسلمانانو نه يې وصولول نه دي په کار ) او بيا يې ورته وويل : تاسو دواړه اوس ځئ ، زه به سوچ وکړم بيا به څه فيصله وکړم ( چې څه وکړم ؟ ) .

دا دوه کسان چې کله مدينې منورې ته واپس راغله ، او نبي عليه السلام ته ورمخامخ شو نو هغه ته د حال ويلو نه مخکې پيغمبر عليه السلام وفرمايل :

يَا وَيْحَ ثَعْلَبَةَ . اې افسوس په ثعلبه . او بيا يې د هغه سُليمي د پاره د برکت دُعا وکړه .

کله چې دې خلقو رسول الله ﷺ ته د ثعلبه او سُليمي حال وويل ، نو الله تعالى دا آيتونه نازل کړه .

﴿ وَمِنْهُمْ مَّنْ عٰهَدَ اللهَ لَئِنْ اٰتٰنَا مِنْ فَضْلِهٖ لَنَصَّدَّقَنَّ وَلَنَكُوْنَنَّ مِنَ الصّٰلِحِيْنَ . فَلَمَّآ اٰتٰهُمْ مِّنْ فَضْلِهٖ بَخِلُوْا بِهٖ وَتَوَلَّوْا وَّهُمْ مُّعْرِضُوْنَ . فَأَعْقَبَهُمْ نِفَاقًا فِيْ قُلُوْبِهِمْ إِلٰى يَوْمِ يَلْقَوْنَهٗ بِمَا أَخْلَفُوا اللهَ مَا وَعَدُوْهُ وَبِمَا كَانُوْا يَكْذِبُوْنَ ﴾ . (۱)

ترجمه : په دې ( منافقينو ) کې بعضې خلق داسې دي چې د الله تعالى سره يې دا وعده کړې وه چې " که چيرته الله تعالى مونږ ته په خپل فضل سره ډير مال راکړي نو مونږ به يې ضرور صدقه کړو ( يعنى زکوة ، خيرات او نور حقوق به ورنه اداء کړو (۲) ) ، او د نيکانو خلقو نه به شو ( نيک نيک کارونه به ورباندې کوو ) " .

(۱) التوبة آيت ۷۵ تا ۷۸ .

(۲) والمرادُ بالتّصدق : قيل إعطاء الزكوة الواجبة . ومابعده إشارة إلى فعل سائر اعمال البرّ من صلة الأرحام ونحوها. وقيل : المراد بالتّصدق إعطاء الزكوة وغيرها من الصّدقات . وما بعدها إشارة الى الحجّ على ما روى عن ابن عباس رضى الله عنهما . تفسير روح المعاني جز ۱۰ ص ۲۶۵ .

پس کله چې الله تعالى دوى ته د خپل فضل نه (ډير مال) ورکړو نو په دې کې يې بُخل وکړو (يعنى فرضي زکوة يې ورنه کړو (۱))، او (د خپلې وعدې نه) واوړيده، او دوى مخ اړوونکي (انکار کوونکي) دي.

نو الله تعالى ددې په سزا کې د دوى په زړونو کې داسې نِفاق واچول چې د الله ﷻ سره د ملاقات (يعنى د قيامت) د ورځې پورې به (د دوى په زړونو کې) قائم وي. دا (سزا) ددې د وجې نه ده چې دوى: الله ﷻ سره کومه وعده کړې وه دوى د هغې وعدې مخالفت وکړو، او په سبب ددې سره چې دوى به دروغ ويل.

کله چې رسول الله صلى الله عليه وسلم د ثعلبه په باره کې درې (۳) ځله يَا وَيْحَ ثَعْلَبَةَ وويل، نو په دې مجلس کې د ثعلبه په خپلوانو کې يو کس ناست ؤ، هغه چې دا خبره واوريده نو په سفر راووت، او ثعلبه پسې ورغى، ډير يې ملامته کړو او ورته وې ويل:
اې ثعلبه په تا افسوس دى، الله تعالى ستا په باره کې آيتونه نازل کړي. ثعلبه چې دا واوريده نو د ځان سره اُوبونگيده او مدينې منورې ته روان شو، (کله چې راغى نو) نبي عليه السلام ته يې وويل: زما صدقه قبوله کړه. پيغمبر عليه السلام ورته وفرمايل:

إِنَّ اللهَ مَنَعَنِيْ أَنْ أَقْبَلَ مِنْكَ صَدَقَتَكَ.

الله تعالى زه ستا د صدقې (زکوة) اخيستو نه منع کړې يم.

ددې په اَوريدو ثعلبه (صرف د خلقو د بَدنامى نه د بچ کيدو د پاره (۲)) په خپل سَر باندې خاورې اَچولې. رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل:

هٰذَا عَمَلُكَ، قَدْ أَمَرْتُكَ فَلَمْ تُطِعْنِيْ.

دا خو ستا خپل عمل دى، ما خو تا ته حکم وکړو خو تا زما تابعداري اونه کړه. (لهذا اوس ستا زکوة نشي قبلولى).

---

(۱) بَخِلُوْا بِهٖ: اى مَنَعُوْا حَقَّ اللهِ تَعَالٰى مِنْهُ. تفسير روح المعاني جز ۱۰ ص ۳۶۵.

(۲) نبي عليه السلام ته د وحي په ذريعه دا معلومه شوې وه چې د ثعلبه پښيمانتيا او توبه د اخلاص نه ده بلکه په زړه کې يې اوس هم منافقت شته، او صرف مسلمانانو ته د هوکه ورکول غواړي نو ځکه يې نبي عليه السلام دده زکوة قبول نه کړو. معارف القرآن لمولانا مفتي محمد شفيع رحمه الله.

ثعلبه خپل کورته واپس لاړ. ددې نه يو څو ورځې پس رسول الله ﷺ وفات شو.

کله چې حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه خليفه شو نو دې راغی او حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه ته يې زکوة راوړو، او ورته وې ويل چې زما زکوة قبول کړه، حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه ورته وويل: کله چې د تا نه رسول الله ﷺ قبول نه کړو نو زه يې څنګه قبول کړم.

څه وخت پس کله چې حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه وفات شو او حضرت عمر رضي الله عنه خليفه شو نو ده ته يې زکوة راوړو، او ورته وې ويل: چې زما دا زکوة قبول کړه. ده ورته وويل: کله چې ستا زکوة رسول الله ﷺ او حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه نه دې قبول کړې نو زه يې څنګه قبول کړم؟

د حضرت عمر رضي الله عنه د وفات نه پس حضرت عثمان رضي الله عنه خليفه شو، ده ته يې زکوة راوړو، او ورته وې ويل چې دا قبول کړه. ده ورته وويل:

کله چې د تا نه دا زکوة نبي عليه السلام، حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه او حضرت عمر رضي الله عنه نه دې قبول کړې نو زه يې څنګه قبول کړم؟

بيا دا ثعلبه د حضرت عثمان رضي الله عنه په دورِ خلافت کې مړ شو. (۱)

﴿ **نوټ**: ددې موضوع متعلق فقهي مسائل په مخکينۍ موضوع " د زکوة اَهميت، فضيلت او اَحکام " کې تير شوي، هلته يې اوګوره ﴾.

(۱) تفسير ابن کثير ج۳ ص۴۱٦ التوبة آيت ۷۵، تفسير مظهري ج۴ ص ۲۷۰، تفسير طبري ج٥ ص ۴۰٥٥، تفسير زاد المسير ج۲ ص ۲۸۲، تفسير کشاف ج۲ ص۲۷۸، تفسير روح المعاني جز ۱۰ ص ۳٦۴، تفسير مدارک ج۱ ص ٥۰۹، تفسير خازن ج ۲ ص ۲٦۳، صفوة التفاسير ج ۱ ص ٥۱۳، تفسير حقاني ج۳ ص ۲٥٦، معارف القرآن لمولانا ادريس کاندهلوي ج۳ ص ۴۹۳، معارف القرآن لمولانا مفتي محمد شفيع رحمه الله التوبة آيت ۷۵. ددينه علاوه نورو مفسرينو هم رانقل کړې.

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

﴿ إِنَّ الْمُصَّدِّقِيْنَ وَالْمُصَّدِّقٰتِ وَأَقْرَضُوا اللهَ قَرْضًا حَسَنًا يُّضٰعَفُ لَهُمْ وَلَهُمْ أَجْرٌ كَرِيْمٌ ﴾
الحديد آيت ١٨ .

# د صدقې ورکولو اهميت ، فضيلت او فوايد

تالیف :


اَبُوالشَّمْس مولانا نُوْرُالْهُدیٰ عُفِيَ عَنْهُ
مُدَرِّس دَارُالعلوم فيضُ القُرآن اكاخيل كالونى مردان

# د صدقې ورکولو اهميت ، فضيلت او فوايد

اَلْحَمْدُ لِحَضْرَةِ الْجَلَالَةِ ، وَالصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ عَلٰى خَاتَمِ الرِّسَالَةِ ، وَعَلٰى آلِهٖ وَأَصْحَابِهِ الَّذِيْنَ هُمْ أَهْلُ الْفَضْلِ وَالْعَدَالَةِ .

اَمَّا بَعْدُ فَأَعُوْذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ . قَالَ اللهُ تَبَارَكَ وَتَعَالٰى فِى الْقُرْآنِ الْمَجِيْدِ وَالْفُرْقَانِ الْحَمِيْدِ :

﴿ إِنَّ الْمُصَّدِّقِيْنَ وَالْمُصَّدِّقٰتِ وَأَقْرَضُوا اللهَ قَرْضًا حَسَنًا يُّضٰعَفُ لَهُمْ وَلَهُمْ أَجْرٌ كَرِيْمٌ ﴾ .(۱)

وَقَالَ تَعَالٰى : ﴿ وَمَنْ يُّوْقَ شُحَّ نَفْسِهٖ فَأُولٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ ﴾ .(۲)

وَقَالَ النَّبِيُّ ﷺ : مَا مِنْ يَوْمٍ تُصْبِحُ الْعِبَادُ فِيْهِ إِلَّا وَمَلَكَانِ يَنْزِلَانِ فَيَقُوْلُ أَحَدُهُمَا : اَللّٰهُمَّ أَعْطِ مُنْفِقًا خَلَفًا ، وَيَقُوْلُ الْآخَرُ : اَللّٰهُمَّ أَعْطِ مُمْسِكًا تَلَفًا .(۳)

صَدَقَ اللهُ الْعَظِيْمُ .

## د فرائضو سره د نفلي عباداتو ذخيره ساتل

محترمو مسلمانانو ورونو ! په دې کې هيڅ شک و شُبهه نشته چې زکوة ورکول خو په هر صاحبِ نصاب باندې فرض دي ، خو ليکن موقع په موقع نفلي صدقات ، خيراتونه او د خير په کارونو کې خپل مال خرچ کول هم بهترين عبادت دی ، نو ځکه د هر انسان د پاره په کار دي چې دې د فرائضو سره سره د نفلي عباداتو ذخيره هم د ځان سره او ساتي ، د دې د پاره

(۱) الحديد آيت ۱۸ .

(۲) الحشر آيت ۹ .

(۳) رواه البخاري في الزكاة ۲۳۱ ، (۲/۱۴۲) ، ومسلم في الزكاة ۵۷ . وفي رواية : عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ ﷺ : أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ قَالَ : مَا طَلَعَتْ شَمْسٌ قَطُّ إِلَّا (بعث) بِجَنْبَتَيْهَا مَلَكَانِ يُنَادِيَانِ : اَللّٰهُمَّ مَنْ أَنْفَقَ فَأَعْقِبْهُ خَلَفًا . وَمَنْ أَمْسَكَ فَأَعْقِبْهُ تَلَفًا . رواه احمد وابن حبان والحاكم ، وقال صحيح الاسناد ، قال في مجمع الزوائد (۱۰/۲۵۵) ، رواه احمد والطبراني في الكبير والاوسط ، ورواه المنذري في الترغيب ۲/۱۱۸ .

چې که چيرته د قيامت په ورځ دده په فرائضو کې څه کمې يا نقصان راشي نو هغه به په دې نوافلو سره پوره کړې شي . (۱)

علامه سيوطي رحمه الله په "مرقاة الصّعود" کې نقل کړي چې اويا (۷۰) نوافل د يو فرض په ځای قائميدې شي .

لهذا که چيرته يو کس فرضي زکوة ورکوي نو ددې سره سره دې نفلي صدقات او خيرات هم ورکوي ، ددې د پاره چې که چيرته دده په زکوة کې څه کوتاهي راغلې وي نو هغه کوتاهي او کمې به په دې صدقې سره پوره کړې شي .

**مثال** : په دُنيا کې که مونږ او گورو چې څوک عدالت يا قاضي ته خپله فيصله وړي نو دده چې څومره خرچه کيږي د هغې نه زياتې روپۍ د ځان سره احتياطًا واخلي چې هسې نه ضرورت ورته راشي .

دغه شان انسان هم چې د الله ﷻ عدالت ته د عباداتو او زکوة د حساب د پاره پيش کيږي نو دده د پاره هم د نوافلو او صدقاتو ذخيره په کار ده چې که په فرائضو کې څه کمې راشي هغه به په دې نوافلو او صدقاتو سره پوره کړې شي .

## د فرضي زکوة نه علاوه نور مالي حقوق

بل دا چې په بعضو خاصو حالاتو کې په مالدار انسان باندې د فرضي زکوة نه علاوه نور مالي حقوق هم باقي پاتې وي ، لکه مثلاً يو سړي فرضي زکوة پوره اداء کړی ليکن اوس ورته معلومه شوه چې دده په گاونډ کې په يو غريب باندې سخته وَلږه ده ، يا دده په نزدې خپلوانو کې څوک ډير محتاج دی ، يا يو شريف مصيبت زده مسافر ده ته راغې او دې مسافر

(۱) لکه دا مضمون په يو حديث مبارک کې هم ذکر شوی ، د ابوداود شريف حديث دی ، رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي : إِنَّ أَوَّلَ مَا يُحَاسَبُ بِهِ الْعَبْدُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ الصَّلٰوةُ . يَقُوْلُ اللهُ عَزَّ وَجَلَّ لِمَلَائِكَتِهِ : " أُنْظُرُوْا فِيْ صَلٰوتِهِ . أَتَمَّهَا أَمْ نَقَصَهَا " فَيَنْظُرُوْا . فَإِنْ كَانَتْ كَامِلَةً كُتِبَتْ كَامِلَةً . وَإِنْ كَانَ انْتُقِصَ مِنْهَا شَيْءٌ قَالَ : " أَكْمِلُوْا لِعَبْدِيْ فَرِيْضَتَهُ مِنْ تَطَوُّعِهِ " ثُمَّ تُؤْخَذُ الْأَعْمَالُ عَلٰى قَدْرِ ذٰلِكَ . ابوداؤد ج۴ ص۲۱۳ حديث ۲۵۹۰ ، سنن ابن ماجه ج۱ ص ۴۵۸ باب ما جاء في اوّل ما يحاسب به العبدُ الصلوة حديث ۱۴۲۵ ، سنن الترمذي ج۱ ص ۵۳۵ حديث ۴۱۳ باب ما جاء انّ اول ما يحاسب به العبد يوم القيامة الصلوة .

ته فوري د مدد ضرورت وُ ، نو په دې صورتونو کې په دې مالدار باندې د دې ضرورتمند مدد کول لازمي دي ، او د دې صرف د فرضي زکوة په اداء کولو نه خلاصيږي. (۱)

رسول الله صلى الله عليه وسلم هم همدا خبره بيان کړې ، او په دليل کې يې د قرآن مجيد آيت ذکر کړی ، نبي ﷺ فرمايي :

إِنَّ فِي الْمَالِ لَحَقًّا سِوَى الزَّكٰوةِ ثُمَّ تَلَا :﴿ لَيْسَ الْبِرَّ أَنْ تُوَلُّوا وُجُوهَكُمْ قِبَلَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ وَلٰكِنَّ الْبِرَّ مَنْ اٰمَنَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَالْمَلٰٓئِكَةِ وَالْكِتٰبِ وَالنَّبِيّٖنَ وَاٰتَى الْمَالَ عَلٰى حُبِّهٖ ذَوِي الْقُرْبٰى وَالْيَتٰمٰى وَالْمَسٰكِيْنَ وَابْنَ السَّبِيْلِ وَالسَّآئِلِيْنَ وَفِي الرِّقَابِ وَاَقَامَ الصَّلٰوةَ وَاٰتَى الزَّكٰوةَ ... ﴾. (۲) ، (۳)

بيشکه په مال کې د زکوة نه علاوه هم ( د الله ﷻ ) حق شته ، بيا نبي عليه السلام دا آيتِ مبارکه تلاوت کړو ، الله تعالى فرمايي :

ترجمه : نيکي صرف دا نه ده چې تاسو خپل مخونه مشرق او مغرب طرف ته وګرځوئ ، بلکه ( لويه او ) اصل نيکي خو داده چې څوک ايمان راوړي په الله تعالى ، په ورځ د آخرت ، په فرښتو ، په کتابونو او پيغمبرانو باندې ، او ورکوي مال د الله تعالى په محبت کې خپلو ( حاجتمندو ) خپلوانو ته ، يتيمانو ته ، مسکينانو ته ، مسافرو ، او ( محتاجو ) سوال کوونکو ته ، او د غلامانو په خلاصولو کې ، او د لمونځ پابندي کوي او زکوة ورکوي . . .

**فايده** : په دې آيت کې د نيکۍ په کارونو کې د ايمان نه روستو د يتيمانو ، مسکينانو ، مسافرو او نورو حاجتمندو طبقو سره د مالي امداد ذکر دی ، او بيا ورپسې د لمانځه او زکوة حکم دی . معلومه شوه چې دا دلته د حاجتمندو د ضرورت پوره کولو کوم ذکر دی دا د فرضي زکوة نه علاوه دی ، ځکه د فرضي زکوة تذکره خو مستقلا ذکر ده ، او د ضرورتمندو مالي امداد کولو ذکر مستقلاً دی .

(۱) معارف القرآن البقره في ضمن آيت ۱۷۷ ، معارف الحديث ج۴ ص ۳۲۳ کتاب الزکوة .

(۲) البقرة ايت ۱۷۷ :

(۳) اخرجه الترمذي ، وابن ماجه ، والدارمي ، مشکوة باب فضل الصدقة حديث ۲۶ کتاب الزکوة .

**مسئله** : ددینه دا مسئله معلومه شوه چې د انسان غاړه صرف په دې نه خلاصیږي چې دې خالصه فرضي زكوة وركړي او نور ګني دده په ذمه هيڅ حقوق نشته ، بلکه د زکوة ادا، کولو نه روستو هم په خاصو حالاتو کې د انسان په ذمه د ضرورتمندو امداد کول لازمي دي.

البته صرف دومره خبره ده چې د زکوة د پاره يو خاص قانون دی چې د هغې مطابق زکوة وركول په هر حالت کې فرض او ضروري دي ، او دا نور مالي حقوق په انسان باندې په خاصو حالاتو کې فرض دي، يعنی که چیرته ضرورت وُ نو په ده اِمداد کول فرض دي ، او که ضرورت نه وُ نو په ده هم فرض نه دي . (۱)

اګر چې په احاديثو کې دا مضمون شته چې کله يو سړی زکوة ادا کړي نو ده د مال فرضي حقوق اداء کړه . (۲) د زکوة نه علاوه باقي نوره بيا د نوافلو درجه ده . ددې وجې نه د جمهورو علماؤ او ائمه اربعه وُ دا مذهب دی چې په مال کې بَحيثيتِ مال د زکوة نه علاوه بل شی واجب نه دی ، خو دنورو حيثياتو د وجې ، يا په خاصو موقعو او خاصو حالاتو کې په ده باندې بيا هم وجوب شته ، لکه د خپلې بي بي او دوړو بچو نفقه ، يا چې يو کس د وَلږې يا تندې د لاسه مړ کيږي د هغه مدد کول.

امام غزالي رحمه الله په "اِحياءُ العلوم" کې ذکر کړي چې د بعضې تابعينو مذهب دا دی چې په مال کې د زکوة نه علاوه نور حقوق هم شته ، لکه دا مذهب د نخعي ، شعبي ، عطاء او مجاهد رحمهم الله دی .

---

(۱) معارف القرآن البقره آيت ۱۷۷ . امام قرطبي رحمه الله ددې پاس حديث ذکر کولو نه روستو فرمايي : چې ددې حديث باره کې اګر چې د بعضو علماؤ اقوال شته ( چې بعضې ورته ضعيف وايي ) خو د آيت نه پخپله هم د حديث د مضمون تائيد کيږي ، دې وايي : قلتُ والحديثُ وإنْ كان فيه مقال فقد دلّ على صحته معنى ما في الآية نفسها من قوله تعالى : ﴿وَأَقَامَ الصَّلٰوةَ وَاٰتَى الزَّكٰوةَ﴾ . فذكر الزكوة مع الصلوة ، وذلك دليل على أنّ المراد بقوله : ﴿وَاٰتَى الْمَالَ عَلٰى حُبِّهٖ﴾ ليس الزكاة المفروضة فإنّ ذلك كان يكون تكرارًا . والله اعلم . واتّفق العلماء على أنّه إذا نزلت بالمسلمين حاجة بعد اداء الزكوة فإنّه يجب صرف المال اليها . قال مالك رحمه الله يجب على النّاس فداء أسراهم وإن استغرق ذلك أموالهم . وهذا اجماع ايضًا . وهو يقوّي ما اخترناه . والموفق الإله . تفسير قرطبي ج۲ ص۲۳۷ البقرة آيت ۱۷۷ .

(۲) نبي عليه السلام فرمايي : إِذَا أَدَّيْتَ الزَّكٰوةَ فَقَدْ قَضَيْتَ مَا عَلَيْكَ . رواه ابن حبان ، وابن خزيمه في صحيحهما ، والحاكم وقال صحيح الاسناد ، وكذا في الترغيب . کله چې تا زکوة ادا کړو نو په تا چې کوم واجب حق وُ هغه تا اداء کړو ( ددينه علاوه نوره صرف د نوافلو درجه ده ) .

د امام شعبي رحمه الله نه چا پوښتنه وکړه چې په مال کې د زکوة نه علاوه څه بل حق شته ؟ هغه ورته وويل : آو ـ او بيا يې د قرآن مجيد دا آيت تلاوت کړو : ﴿وَاٰتَى الْمَالَ عَلٰى حُبِّهٖ ذَوِي الْقُرْبٰى....﴾

## د شريعت ، اخلاقو او انساني همدردۍ خبره

بل دا چې دا د شريعت ، اَخلاقو او انساني همدردۍ هم خلاف ده چې يو کس خو دې د ډير مال و دولت د وجې په عيش و عشرت ، او خواهشاتو کې اَخته وي ، د خپل آرام و راحت دپاره دې بِلډنګونه او اَسباب برابروي ، سره زَر ، سپين زَر او مال و دولت دې جمع کوي ، او بل طرف ته دده يو مسلمان ورور د اُوچې دوډۍ محتاج وی ، د هغه بچي د ولږې او تَندې د لاسه مره کيږي ، دده په ګاونډ کې کنډې ، يتيمان ، محتاج او فقيران اُوسيږي ، او دا مالدار سره د قدرته د دوی سره هيڅ امداد نه کوي ، بلکه صرف د خپل مال په زياتولو کې لګيا وی ، نو دا يقيني خبره ده چې دا د شريعت ، او انساني همدردۍ خلاف خبره ده .

لهذا د فرضي زکوة نه علاوه په نورو موقعو کې هم خپل حلال مال لګول ضروري دي .

بل دا چې لکه څرنګ چې په فقير او مسکين باندې دا فَقر يو امتحان دی چې آيا دې پرې صبر کوي او که نه ؟ نو دغه شان د مالدار د پاره دا مال هم يو امتحان دی چې آيا دا په دې مال کې فرضي حقوق اداء کوي او که نه ؟

## د صدقې ترغيب او برکات

دغه وجه ده چې په قرآن کريم او احاديثو کې د صدقې ورکولو ډير فضيلت بيان شوی ، او رسول الله صلی الله عليه وسلم هم خپل امت ته د صدقې ورکولو ډير ترغيب ورکړی.

۱ . الله تعالى فرمايي :

﴿إِنَّ الْمُصَّدِّقِيْنَ وَالْمُصَّدِّقٰتِ وَأَقْرَضُوا اللّٰهَ قَرْضًا حَسَنًا يُّضٰعَفُ لَهُمْ وَلَهُمْ أَجْرٌ كَرِيْمٌ﴾ (۱)

(۱) الحديد آيت ۱۸ . همدا مضمون د قرآن مجيد په نورو آيتونو کې هم ذکر دی لکه د سورة بقرة آيت ۲۴۵ ، سورة تغابن آيت ۱۷ .

ترجمه: بيشکه صدقه ورکوونکي سړي او صدقه ورکوونکې ښځې، او څوک چې الله ﷻ ته په ښه شان سره قرض ورکوي (يعنى د الله ﷻ د رضا د پاره په اخلاص سره صدقه ورکوي (۱)) نو دوى ته به د دې صدقې ثواب دوچند کولې شي، او د دوى د پاره اَجر د عزت (يعنى جنت) دى.

۲. بل ځاى الله رب العزت فرمايي:

﴿مَن ذَا الَّذِي يُقْرِضُ اللَّهَ قَرْضًا حَسَنًا فَيُضَاعِفَهُ لَهُ وَلَهُ أَجْرٌ كَرِيمٌ﴾. (۲)

ترجمه: څوک دى چې الله ﷻ ته په ښه شان قرضه ورکړي (يعنى په اخلاص سره دا سې صدقه ورکړي چې بې اِحسانه او بې رِيا وي (۳)) نو الله تعالى به دا دده د پاره څو څو چنده زيات کړي، او دده د پاره لوى اَجر دى.

**فايده**: الله ﷻ خو صَمد او بې نيازه ذات دى د چا د قرضې محتاج نه دى، خو دلته مطلب دا دى چې څوک د الله ﷻ د رضا د پاره يو فقير، مسکين او ضرورتمند ته صدقه ورکړي نو دا ګويا دده انسان د الله ﷻ سره اَمانت شو، دده اَجر به ورکوي، لکه څرنګه چې سړې چاته قرض ورکړي او هغه يې ده ته بيا واپس کوي. (۴)

---

(۱) ﴿وَأَقْرَضُوا اللَّهَ قَرْضًا حَسَنًا﴾ بالصدقة والنفقة في سبيل الله. قال الحسن: كُلُّ ما في القرآن مِنَ القرض الحَسَن فهو التَّطَوُّعُ. وقيل: هوالعملُ الصَّالِحُ مِنَ الصَّدقةِ وغيرها مُحْتَسِبًا صادقًا. ﴿وَلَهُمْ أَجْرٌ كَرِيمٌ﴾ يعنى الجنة. تفسيرقرطبي ج۱۷ ص ۲۱٦ الحديد آيت ۱۸./ ﴿وَأَقْرَضُوا اللَّهَ قَرْضًا حَسَنًا﴾ صدقةً مقرونةً بِالاخلاص إبتغاء مرضاة الله بِلا منٍّ ولا أذى، ولا إرادة جزآء من المحتاج المعطي. تفسيرمنير ج ۱۴ ص ۳۳۹ الحديد آيت ۱۸.

(۲) الحديد آيت ۱۱.

(۳) ﴿قَرْضًا حَسَنًا﴾ اى صدقةً محتسبًا مِنْ قلبه بِلَا مَنٍّ وَلَا أَذًى. وَالْقَرْضُ الْحَسَنُ: أَن يكونَ الْمُتَصَدِّقُ صادق النية طيب النفس يَبتغي به وجهَ الله، دُونَ الرِّيَاءِ والسُّمْعةِ، وأَنْ يكونَ مِنَ الحَلَالِ. تفسير قرطبي ج ۱۴ ص ۲۰۸ الحديد آيت ۱۱.

(۴) سُمِّيَ الصَّدقةُ قرضًا لانّ القرضَ أخرج لاسترداد البدل. اى مَنْ ذَا الَّذِي يُنْفِقُ فِي سَبِيلِ اللهِ حتى يبدله الله بِالْأَضْعَافِ الكثيرةِ. تفسير قرطبي ج۱۷ ص۲۰۸ الحديد آيت ۱۱.

## د حضرت ابوالدحداح رضي الله عنه واقعه :

حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه فرمايي : چې کله دا آيت ﴿مَنْ ذَا الَّذِيْ يُقْرِضُ اللهَ قَرْضًا حَسَنًا... ﴾ نازل شو نو حضرت ابوالدحداح رضي الله عنه عرض وکړو : اې د الله جل جلاله رسوله ! زما مور او پلار دې په تاسو قربان وي ، آيا يقيني الله جل جلاله د مونږ نه قرض غواړي ؟ حالانکه د هغه قرض ته هيڅ حاجت نشته ، نبي عليه السلام وفرمايل : آو . الله تعالى دا غواړي چې ددې په ذريعه تاسو جنت ته داخل کړي .

ابوالدحداح رضي الله عنه ددې په اوريدو سره وويل : اې د الله تعالى رسوله ! لاس راوړاندې کړئ ، هغوى لاس وَروړاندې کړو ، نو ابوالدحداح رضي الله عنه داسې وويل :

زه د قجورو د دوه وُ باغونو مالِک يم ، ددينه بغير زما په مِلک کې بل څه نشته ، زه خپل دغه دواړه باغونه الله تعالى ته قرض ورکوم .

رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل : چې يو د الله تعالى په لار کې وقف کړه ، او بل د خپل بال بچ د ژوند ضروورياتو د پاره ځان سره اوساته .

ابوالدحداح رضي الله عنه وفرمايل : تاسو ګواه اوسئ ، په دې دواړو کې چې کوم ډير ښه باغ دی زه هغه د الله تعالى په لار کې خرچ کوم ، په کوم کې چې دقجورو شپږسوه (۶۰۰) اونې دي .

نبي عليه السلام وفرمايل : ددې په بدل کې به الله رب العزت تاته جنت درکړي .

ابوالدحداح رضي الله عنه خپل کورته راغی ، او خپلې بي بي رضی الله عنها ته يې ددې خبر ورکړو ، نو هغه هم د ابوالدحداح رضي الله عنه په دې ډيرې بهترينې سودا کولو سره ډيره خوشحاله شوه .

رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل :

كَمْ مِنْ عِذْقٍ رَدَاحٍ ، وَدَارٍ فَيَاحٍ لِأَبِي الدَّحْدَاحِ .

څومره ډيرې د قجورو ميوه دارې ونې اونې ، او څومره پراخه محلونه (دجنت) د ابوالدحداح رضي الله عنه د پاره تيار دي . (۱)

۳ . رسول الله ﷺ فرمايي : قَالَ اللهُ تَعَالَى : أَنْفِقْ يَا ابْنَ آدَمَ أُنْفِقْ عَلَيْكَ . (۲)

---

(۱) معارف القرآن البقرة آيت ۲۴۵ . تفسير قرطبي واله ددې شانِ نزول داسې بيانوي : لمّا نزل : ﴿مَنْ ذَا الَّذِي يُقْرِضُ اللهَ قَرْضًا حَسَنًا ...﴾ قال ابوالدحداح فداک أبي و أمي يا رسول الله ! إنّ الله يستقرضنا وهو غنيٌّ عن القرض ؟ قال : نعم "يريدُ أن يدخلكم الجنّة به" . قال : فإنّي أقرضتُ ربّي قرضًا يضمن لي به ولِصِبْيَتِي الدحداحة معي الجنة ؟ قال : نعم . قال : فناولني يدک . فناوله رسول الله ﷺ يده . فقال : إنّ لي حديقتين إحداهما بالسافلة والأخرى بالعالية . والله لا أملکُ غيرها . قد جعلتُهما قرضًا لله تعالى . قال رسول الله ﷺ : "إجعل إحداهما لله والأخرى دعها معيشة لک ولعيالک" . قال : فأشهدک يا رسول الله أنّي قد جعلتُ خيرهما لله تعالى . وهو حائطٌ فيه ستمائة نخلة . قال : إذًا يجزيک الله به الجنّة . فانطلق أبوالدحداح حتّى جاء أمّ الدحداح وهي مع صبيانها في الحديقة تدور تحت النحل فأنشأ يقول :

هَدَاکِ رَبِّيْ سُبُلَ الرَّشَادِ * الى سَبِيْلِ الْخَيْرِ وَالسَّدَادِ

بِيني من الحائط بالودادِ * فقد مضى قرضًا الى التّنادِ

أقرضْتُه الله على اعتمادي * بالطّوع لا مَنٍّ وَلَا ارْتِدَادِ

إلّا رَجَاءَ الضِّعف في المَعاد * فَارْتَحِلِي بالنفس والاولادِ

وَالبِرّ لاشکّ فخَيْرُ زادِ * قَدَّمَه المرءُ إلى المعادِ .

قالت أمّ الدحداح : رَبِحَ بَيْعُکَ . بَارَکَ اللهُ لَکَ فيما اشتريتَ . ثُمَّ أجابته أمّ الدحداح وأنشأت تقول :

بشّرکَ الله بخيرٍ وفَرَحْ * مِثلُکَ اذّى ماللديه ونَصَحْ

قد مَتَّعَ الله عيالي وَمَنَحْ * بالعجوة السّوداءِ وَالزَّهْوِ البَلَحْ

وَالعبدُ يسعى وله ما قد کَدَحْ * طولَ الليالي وعليه مَا اجْتَرَحْ .

ثم أقبلتْ أمّ الدحداح على صبيانها تُخرج ما في أفواههم وتنفض ما في أکمامهم حتى أفضت الى الحائط الآخر . فقال النبي ﷺ : کَمْ مِنْ عِذْقٍ رَدَاحٍ . وَدَارٍ فَيَاحٍ لِأَبِي الدَّحْدَاحِ . تفسير قرطبي ج۳ ص ۲۲۶ البقرة آيت ۲۴۵ ، و اخرجه عبدالرزاق في تفسيره ۳۰۷ ، وابن جرير الطبري ۵۶۲۱ مختصرا عن زيد بن اسلم .

(۲) هذا الحديث اخرجه البخاري في صحيحه في کتاب التفسير ، تفسير سورة هود باب "وکان عرشه على الماء" رقم (۴۶۸۴) ومسلم باب الحث على النفقة وتبشير المنفق بالخلف ۲۲۸۳ / ۳۶ (۹۹۳) ، والترمذي في جامعه في کتاب تفسير القرآن رقم (۳۰۴۵) ، وابن ماجه في سننه في المقدمة رقم (۱۹۷) ، واحمد في مسنده (۲ : ۲۴۳ ، ۳۱۳) . وَفِي رِوَايَةٍ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : إِنَّ اللهَ قَالَ لِيْ أَنْفِقْ أُنْفِقْ عَلَيْکَ . مسلم باب الحث على النفقة (۲۲۸۴ / ۳۷) .

حديث قدسي دی الله تعالی فرمايي : اې د آدم ځويه ! ته (زما په ضرورتمندو بندګانو باندې ) خرچ کوه زه به په تا باندې خرچ کوم (يعنی د خپلو خزانو نه به تاته درکوم ) .

**فايده** : ګويا دا الله ﷻ د طرفه دا ضمانت دی چې څوک په محتاجو او ضرورتمندو باندې خرچ کوي نو الله تعالی به دوی ته د خپلو غيبي خزانو نه ورکوي .

او دا په معاشره کې مونږ ګورو چې څوک هم په فراخ دلۍ سره د ضرورت په ځايونو کې خرچ کوي نو الله تعالی هماغه شان ده ته د بلې لارې نه فراخه ورکوي . الله رب العزت فرمايي : ﴿ وَمَآ أَنفَقْتُم مِّن شَيْءٍ فَهُوَ يُخْلِفُهُ ﴾ (۱) ترجمه : او څه چې تاسو ( د الله ﷻ په لاره کې ) خرچ کوی نو هغه به دده بدله درکوي .

۴ . يو کرت رسول الله ﷺ صحابه کرامو ته وفرمايل :

أَيُّكُمْ مَالُ وَارِثِهِ أَحَبُّ إِلَيْهِ مِنْ مَالِهِ ؟

په تاسو کې څوک داسې دی چې هغه ته د وارث مال د خپل مال نه دير خوښ دی ؟

صحابه کرامو ورته وفرمايل :

يَا رَسُوْلَ اللهِ ! مَا مِنَّا أَحَدٌ إِلَّا مَالُهُ أَحَبُّ إِلَيْهِ .

په مونږ کې خو هيڅ څوک داسې نشته ، بلکه هر کس ته خپل مال زيات خوښ دی .

رسول الله ﷺ ورته وفرمايل :

فَإِنَّ مَالَهُ مَا قَدَّمَ . وَمَالُ وَارِثِهِ مَا أَخَّرَ . (۲)

بيشکه د انسان خپل مال هغه دی چې ده د خپل ځان نه مخکې وليږل ( يعنی صدقه يې کړو او د آخرت ذخيره يې جوړه کړه ) ، او د وارث مال هغه دی کوم چې ده روستو پريښود .

يعنی د انسان خپل مال هغه دی چې ده د الله ﷻ د رضا دپاره صدقه کړو نو دا به دده په کار راشي ، او کوم چې ده نه پاتې شو نو دا خو بيا دده د وارثانو مال دی .

---

(۱) سورة سبا آيت ۳۹ .

(۲) رواه احمد ۱ / ۳۸۲ ، والبخاري في الزكاة ۸ / ۱۸۶ وجزء ۸ ص ۹۳ حديث ۶۴۴۲ باب مَا قَدَّمَ مِن ماله فهو لَهُ ، المتجر الرابح في ثواب العمل الصالح ص ۱۳۳ .

# بايد هر مسلمان صدقه ورکړي

د بخاري شريف حديث دی، نبي عليه السلام فرمايي:

عَلىٰ كُلِّ مُسْلِمٍ صَدَقَةٌ.

(د نعمتِ الهي پيشِ نظر) په هر مسلمان صدقه ورکول لازمي دي.

صحابه کرامو (دې اوريدو سره) عرض وکړو: که دچا سره د صدقې ورکولو دپاره هيڅ شی نه وي (نو هغه به څه کوي؟) نبي عليه السلام ورته وفرمايل:

فَلْيَعْمَلْ بِيَدَيْهِ فَيَنْفَعُ نَفْسَهُ وَيَتَصَدَّقُ.

داسې سړي له په کار دي چې هغه د خپلو لاسونو په ذريعه مال اوګټي، خپل ځان ته هم فايده اورسوي، او نورو ته صدقه هم ورکړي.

صحابه کرامو عرض وکړو: که دا کس ددې طاقت هم نه لري، او محنت، مزدوري هم نشي کولی (نو بيا به څه کوي؟).

رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: فَيُعِينُ ذَا الْحَاجَةِ الْمَلْهُوفَ.

دا کس دې د غمجن او پريشان حاله سړي څه کار وکړي او د هغه مدد دې وکړي (چې دا هم يو قِسم صدقه ده).

صحابه کرامو بيا عرض وکړو: که دا هم نشي کولی (نو بيا به څه کوي؟). نبي عليه السلام ورته وفرمايل:

فَيَأْمُرُ بِالْخَيْرِ. ده له په کار دي چې خلقو ته د نيکۍ حکم وکړي.

صحابه کرامو عرض وکړو: که يو کس دا هم نشي کولی؟ پيغمبر ﷺ ورته وفرمايل:

فَيُمْسِكُ عَنِ الشَّرِّ فَإِنَّهُ لَهُ صَدَقَةٌ. (۱)

---

(۱) قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: عَلىٰ كُلِّ مُسْلِمٍ صَدَقَةٌ. قَالُوْا: فَإِنْ لَمْ يَجِدْ قَالَ: فَلْيَعْمَلْ بِيَدَيْهِ فَيَنْفَعُ نَفْسَهُ وَيَتَصَدَّقُ. قَالُوا فَإِنْ لَمْ يَسْتَطِعْ أَوْ لَمْ يَفْعَلْ. قَالَ: فَيُعِينُ ذَا الْحَاجَةِ الْمَلْهُوفَ. قَالُوْا: فَإِنْ لَمْ يَفْعَلْهُ؟ قَالَ: فَيَأْمُرُ بِالْخَيْرِ. قَالُوْا: فَإِنْ لَمْ يَفْعَلْ؟ قَالَ: فَيُمْسِكُ عَنِ الشَّرِّ فَإِنَّهُ لَهُ صَدَقَةٌ. رواه البخاري ومسلم، مشكوة باب فضل الصدقة الفصل الاول حديث ۸.

ده له په کار دي چې خپل ځان د تکليف رسولو نه منع کړي (يعنى په خپل لاس او ژبې سره بل چا ته تکليف او نه رسوي ، او که وَس يې کيږي نو بل کس دې هم نورو خلقو ته د تکليف رسولو نه منع کړي ) ځکه دا کار هم دده د پاره صدقه ده (يعنى ده ته به په دې سره هم د صدقې ثواب حاصليږي ) .

**فايده** : ددې حديث نه معلومه شوه چې په انسان باندې د الله ﷻ دومره نعمتونه دي چې که په چا باندې زکوة فرض نه وي نو بيا هم ده له په کار دي چې څه نا څه صدقه ورکوي ، او س که مال و دولت ورسره بالکل نه وي نو مزدوري دې وکړي په خپل ځان دې هم خرچ کړي او صدقه دې هم ورنه ورکړي ، او که دا هم نشي کولى نو د يو پريشان حاله کس خدمت دې په لاس خپو وکړي ، او که دا هم نشي کولى نو په ژبه دې خدمت وکړي او خلقو ته دې د نيکى حکم وکړي ، ورنه کم از کم دې نورو ته ضرر نه رسوي .

ددې حديث رُوح او خاص پيغام دادى چې : هر مسلمان که هغه مالدار وي او که غريب ، که طاقتور وي او که کمزورې نو څه نا څه طريقې سره دې د حاجتمند و مدد وکړي ، که هغه د مال په ذريعې سره وي ، يا د خدمت په ذريعې سره ، يا هغه سره د اِحسان په ذريعې سره.(۱)

# د صدقې ورکولو فوايد

زمونږ په شريعت کې د صدقې ورکولو دومره فضايل او فوايد بيان شوي دي چې د هغې ټولو بيانول ډير گران دي ، خو زه به درته صرف يو څو غټ فوايد بيان کړم :

## د صدقې په وجه په مال کې برکت او پاکوالې راځي

د صدقې اوله فايده داده چې ددې په وجه د انسان په مال کې برکت پيدا کيږي او مال ورسره صفا کيږي .

۱. الله رب العزت فرمايي :

﴿وَمَا أَنفَقْتُم مِّن شَيْءٍ فَهُوَ يُخْلِفُهُ وَهُوَ خَيْرُ الرَّازِقِينَ ﴾.(۲)

(۱) معارف الحديث ج۲ ص ۳۲۵ .

(۲) سورة سبا آيت ۳۹ .

ترجمه : او څه چې تاسو ( د الله ﷻ په لاره کې ) خرچ کوئ نو هغه به ددې بدله درکوي، او هغه ډير ښه رزق ورکوونکې دی .

۲ . بل ځای الله ﷻ فرمايي :

﴿ وَمَا تُنفِقُوا مِنْ خَيْرٍ يُوَفَّ إِلَيْكُمْ وَأَنتُمْ لَا تُظْلَمُونَ ﴾ . (۱)

ترجمه : او تاسو چې کوم مال خرچ کوئ هغه به درته ( په دُنيا او آخرت کې ) پوره پوره واپس درکړې شي ، او په تاسو به ظلم نشي کولی .

۳ . د بخاري او مسلم شريف حديث دی ، رسول الله ﷺ فرمايي :

مَا مِنْ يَوْمٍ تُصْبِحُ الْعِبَادُ فِيهِ إِلَّا وَمَلَكَانِ يَنْزِلَانِ فَيَقُولُ أَحَدُهُمَا : اَللّٰهُمَّ أَعْطِ مُنْفِقًا خَلَفًا . وَيَقُولُ الْآخَرُ : اَللّٰهُمَّ أَعْطِ مُمْسِكًا تَلَفًا . (۲)

په هره ورځ د سهر په وخت کې دوه ( ۲ ) فرښتې راکوزيږي ، او په هغې کې يوه فرښته (: سخي د پاره ) دا دُعا کوي : يا الله ! څوک چې ( د خير په کارونو کې) خرچ کوي هغه ته ددې بَدله ورکړه ( يعنی په دُنيا کې يې مال زيات کړه ، او آخرت کې ورته ددې ثواب ورکړه (۳) )

۴ . په يو روايت کې دا حديث داسې ذکر دی ، نبي عليه السلام فرمايي :

---

(۱) البقرة آيت ۲۷۲ .

(۲) رواه البخاري في الزكاة ۲۳۱ ، ( ۲ / ۱۴۲ ) ، ومسلم في الزكاة ۵۷ . وفي رواية : عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ رضي الله عنه : أَنَّ رَسُولَ اللهِ ﷺ قَالَ : مَا طَلَعَتْ شَمْسٌ قَطُّ إِلَّا ( بعث ) بِجَنْبَتَيْهَا مَلَكَانِ يُنَادِيَانِ : اَللّٰهُمَّ مَنْ أَنْفَقَ فَأَعْقِبْهُ خَلَفًا . وَمَنْ أَمْسَكَ فَأَعْقِبْهُ تَلَفًا . رواه احمد وابن حبان والحاكم ، وقال صحيح الاسناد ، قال في مجمع الزوائد ( ۱۰ / ۲۵۵ ) ، رواه احمد والطبراني في الكبير والاوسط ، ورواه المنذري في الترغيب ۲ / ۱۱۸ .

(۳) خَلَفًا : اى عِوَضًا عَظِيمًا . وَهُوَ الْعِوَضُ الصَّالِحُ . أَوْ عِوَضًا فِي الدُّنْيَا وَبَدَلًا فِي الْعُقْبٰى . لقوله تعالى : ﴿ وَمَا أَنفَقْتُم مِّن شَيْءٍ فَهُوَ يُخْلِفُهُ وَهُوَ خَيْرُ الرَّازِقِينَ . سورة السبا آيت ۳۹ ﴾ . قال الحافظ : أَمَّا الْخَلَفُ فَإِبْهَامُهُ أَوْلٰى . لِيَتَنَاوَلَ الْمَالَ وَالثَّوَابَ وَغَيْرَهَا . فتح الملهم ج۵ ص ۷۵ .

إِنَّ مَلَكًا بِبَابٍ مِّنْ أَبْوَابِ الْجَنَّةِ يَقُولُ : مَنْ يُّقْرِضِ الْيَوْمَ يُجْزَ غَدًا . وَ مَلَكٌ بِبَابٍ آخَرَ يَقُوْلُ: اَللّٰهُمَّ أَعْطِ مُنْفِقًا خَلَفًا . وَأَعْطِ مُمْسِكًا تَلَفًا . (۱)

بيشکه د جنت په دروازو کې په يوه دروازه باندې يوه فرښته دا اعلان کوي " څوک چې نن قرض ورکړي ( يعنې دالله ﷻ په لاره کې مال خرچ کړي ) نو سبا ( د قيامت په ورځ ) به ددې بدله ورکړې شي " او يوه فرښته په بله دروازه باندې دا دُعا کوي : يا الله ! خرچ کوونکي ته ددې ښه بدله ورکړې ، او منع کوونکي ( بخيل ) ته بربادي ورکړې ( يعنې د هغه مال بې برکته او ضائع کړې ) .

## واقعه :

۵ . په مسلم شريف کې يوه واقعه ذکر ده ، رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي :

بَيْنَا رَجُلٌ فِيْ فَلَاةٍ مِّنَ الْأَرْضِ فَسَمِعَ صَوْتًا فِيْ سَحَابَةٍ إِسْقِ حَدِيْقَةَ فُلَانٍ . فَتَنَحَّى ذٰلِكَ السَّحَابُ فَأَفْرَغَ مَاءَهُ فِيْ حَرَّةٍ فَإِذَا شَرْجَةٌ مِنْ تِلْكَ الشِّرَاجِ قَدِ اسْتَوْعَبَتْ ذٰلِكَ الْمَاءَ كُلَّهُ . فَتَتَبَّعَ الْمَاءَ . فَإِذَا رَجُلٌ قَائِمٌ فِيْ حَدِيْقَةٍ يُحَوِّلُ الْمَاءَ بِمِسْحَاتِهِ . فَقَالَ : يَا عَبْدَاللهِ ! مَا اسْمُكَ ؟ قَالَ ( لَهُ ) : فُلَانٌ . لِلْإِسْمِ الَّذِيْ سَمِعَ فِي السَّحَابَةِ . فَقَالَ لَهُ : يَا عَبْدَاللهِ ! لِمَ سَأَلْتَنِيْ عَنْ إِسْمِيْ ؟ قَالَ سَمِعْتُ فِي السَّحَابِ الَّذِيْ ( هٰذَا ) مَاؤُهُ ( صَوْتًا ) يَقُوْلُ : إِسْقِ حَدِيْقَةَ فُلَانٍ لِإِسْمِكَ . فَمَا تَصْنَعُ فِيْهَا ؟ قَالَ : أَمَّا إِذَا قُلْتَ هٰذَا فَإِنِّيْ أَنْظُرُ إِلٰى مَايَخْرُجُ مِنْهَا فَأَتَصَدَّقُ بِثُلُثِهِ . و أَكُلُ أَنَا وَعِيَالِيْ ثُلُثًا . وَأَرُدُّ فِيْهِ ثُلُثَهُ . (۲)

---

(۱) رواه البخاري ومسلم وابن حبان ، الترغيب والترهيب ج۱ (۱/ ٦۳۵) . وفي رواية : إِنَّ مَلَكًا بِبَابٍ مِنْ أَبْوَابِ السَّمَآءِ يَقُوْلُ : مَنْ يُقْرِضِ الْيَوْمَ يُجْزَ غَدًا . وَمَلَكٌ بِبَابٍ آخَرَ يَقُوْلُ : اَللّٰهُمَّ أَعْطِ مُنْفِقًا خَلَفًا . وَأَعْطِ مُمْسِكًا تَلَفًا . رواه الطبراني وابن حبان ، ورواه احمد ۲ / ۳۰۵ ، والسيوطي في الدر ۱ /۳۱۳ ، والهندي في الكنز ۱۹۱۱۹ . د نبي عليه السلام حديث دی : ما أحسن عبد الصدقة إلا أحسن الله الخلافة على تركته . ذكره الزبيدي في الاتحاف (۴/ ۱٦۷) ، نزهة الناظرين ص ۱۹۸ كتاب الصدقة .

(۲) رواه مسلم ۲۲۸۸ ، واحمد ۲۹٦ ، والبيهقي ۴/ ۱۲۳ . نضرة النعيم ج۴ ص ۱۵۰۹ حديث ۸ ، الترغيب والترهيب ج ۱ ص ۲۳۷ ، المتجر الرابح في ثواب العمل الصالح ص ۱۳۱ .

یو کس د زمکې په یوه حصه (ځنګل) کې ولاړ وُ چې د وريځې نه يې يو آواز واوريدو : (څوک ويونکې وايي :)

إِسْقِ حَدِيْقَةَ فُلَانٍ . د فلانکي سړي باغ اُوبه (يعنى سيراب) کړه.

بيا هغه وريځ يو طرف ته لاړه ، په يو کاڼځنه سخته زمکه باندې يې اُوبه اُو وَرولى ، او هغه ټولې اُوبه د هغه نالو نه په يوه نالى کې راجمع شوى ، او يو طرف ته روانې شوى ، دا سړې هم ددې اُوبو پسې روان شو (ددې د پاره چې دا اوګوري چې دا اُوبه د چا باغ ته ځي ؟) ناڅاپه يې يو کس وليده ، چې په خپل باغ کې ولاړ دى ، د بيلچې په ذريعه يې دا اُوبه په باغ کې خوَرولى . ده ورنه پوښتنه وکړه :

يَا عَبْدَاللّهِ ! مَا اسْمُکَ ؟ اې د الله ﷻ بنده ! ستا څه نوم دى ؟

هغه ورته ويل : زما نوم فلانې دى . هاغه نوم يې ورته واخيست کوم چې ده د وريځ نه اوريدلې وُ ، بيا دې باغ واله دده نه پوښتنه وکړه : اې د الله ﷻ بنده ! ته زما د نوم پوښتنه ولې کوى ؟ ده ورته ويل : د کومې وريځې نه چې دا اُوبه راغلي ما ددغې وريځې نه دا آواز اوريدلى چې ويل يى : إِسْقِ حَدِيْقَةَ فُلَانٍ . د فلانکي سړي باغ اُوبه کړه .

او هغه نوم ستا دى . خو اوس دا راته ووايه چې ته په دې باغ کې د خير کوم کار کوى ؟ (چې د هغې په وجه تاته دا فضيلت او بزرګي درکړې شوه چې وريځې ته دا حکم اوشو چې د فلانکي باغ له اُوبه ورکړه) . د باغ واله ورته ويل : دا وخت ته پوښتنه کوى نو ځکه زه هم اوس تاته دا ښايم چې زه په دې باغ کې څه کوم ؟ نو ددې باغ چې کوم پيداوار کيږي زه هغه ګورم (د هغې حصمانه کوم ، بيا هغه په درې حصو تقسيم کړم) يوه حصه يعنى دريمه حصه خو فوراً صدقه کړم ، بله دريمه حصه زه او زما اهل و عيال خوري ، او بله دريمه حصه زه په دې باغ لږوم .

**فايده** : د صدقې ورکولو په برکت ورته الله ﷻ دومره عزت وکړو چې وريځې ته حکم کيږي چې د فلانکي باغ اُوبه کړه ، دا ټول برکت د صدقې ورکولو دى .

٦ . د ابو داوُد شريف حديث دی ، رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي :

يَا مَعْشَرَ التُّجَّارِ ! إِنَّ الْبَيْعَ يَحْضُرُهُ اللَّغْوُ وَالْحَلْفُ فَشُوْبُوْهُ بِالصَّدَقَةِ . (۱)

اې د تاجرانو ټولګيه ! بيشکه په بَيعه کې لغوه ( دروغ ) او قسَم راځي نو تاسو دا په صدقه ورکولو سره پاکه کړئ ( ځکه په صدقه ورکولو سره د دينه پاکوالې راځي ) .

## د صدقې ورکولو په وجه مال نه کميږي

بعضې خلق دا ګمان کوي چې که چيرته مونږ صدقه يا خيرات ورکړو نو ګني په دې سره به زمونږ مال کم شي ، حالانکه داسې نه ده ، رسول الله ﷺ خپل امت ته دا خبره واضحه کړې چې د صدقې په وجه مال نه کميږي ، بلکه نور هم په کې برکت پيدا کيږي .

١ . د مسلم شريف حديث دی ، نبي عليه الصلوة والسلام فرمايي :

مَا نَقَصَتْ صَدَقَةٌ مِنْ مَالٍ ، وَمَا زَادَ اللهُ عَبْدًا بِعَفْوٍ إِلَّا عِزًّا ، وَمَا تَوَاضَعَ أَحَدٌ لِلّٰهِ إِلَّا رَفَعَهُ اللهُ عَزَّ وَجَلَّ . (۲)

صدقې په مال کې کمې نه دې راوستې ، ( يعنې صدقې سره مال نه کميږي ) ، او الله تعالى په معافي کولو سره د بنده په عزت کې نوره هم اضافه کوي ، او چا چې هم د الله ﷻ د پاره تواضع او عاجزي کړې نو الله تعالى هغه پورته کړې دی ،

**فايده** : په دې حديث کې اوله خبره دا بيان شوه چې که يو کس د خپل مال نه څه صدقه ورکړي نو په دې سره مال نه کميږي ، اګر چې په ظاهره په دې مال کې کمې راشي خو په حقيقت کې په صدقې او خيرات سره مال نور هم زياتيږي ، ځکه الله ﷻ د ده په مال کې برکت اچوي ، او په دُنيا کې د دې نِعمُ البَدل هم ورکوي ، يعنې مال يې زيات شي ، د آفتونو نه

(۱) اخرجه ابوداؤد ۳۳۲۶ ، والنسائي ۷ / ۱۲ ، نزهة الناظرين ص ۱۹۷ الباب الرابع في فوائد الصدقة .

(۲) رواه مسلم فى البرّ والصلة ٦٩ ، واحمد ٥ / ۲۳٥ ، ۳٦۸ ، والبيهقي ۱۰ / ۲۳٥ ، ۴ / ۱۸۷ ، مشكوة باب فضل الصدقة الفصل الاول حديث ۲ . وَفِيْ رِوَايَةٍ : عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا يَرْفَعُهُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ : مَا نَقَصَتْ صَدَقَةٌ مِنْ مَالٍ ، وَمَا مَدَّ عَبْدٌ يَدَهُ بِصَدَقَةٍ إِلَّا أُلْقِيَتْ فِيْ يَدِ اللهِ قَبْلَ أَنْ تَقَعَ فِيْ يَدِ السَّائِلِ ، وَلَا فَتَحَ عَبْدٌ بَابَ مَسْئَلَةٍ عَنْهَا غِنًى إِلَّا فَتَحَ اللهُ عَلَيْهِ بَابَ فَقْرٍ . رواه مسلم فى البر والصلة ۲۹ ، واحمد ۲ / ۲۳٥ ، ۲۸٦ ، والبيهقي ۱ / ۲۳٥ ، ۴ / ۱۸۷ .

محفوظ شي، او دده په عمل نامه کې ددې ډير اجر وليکلې شي، نو ځکه نبي عليه السلام وفرمايل چې صدقه ورکول مال کې کمې نه کوي. (۱)

۲. په يو بل حديث کې رسول الله صلى الله عليه وسلم قسَم کوي:

ثَلَاثٌ أُقْسِمُ عَلَيْهِنَّ ـ وَأُحَدِّثُكُمْ حَدِيْثًا فَاحْفَظُوْهُ ـ مَا نَقَصَ مَالُ عَبْدٍ مِنَ الصَّدَقَةِ، وَلَا ظُلِمَ عَبْدٌ مَظْلَمَةً صَبَرَ عَلَيْهَا إِلَّا زَادَهُ اللهُ عِزًّا، وَلَا فَتَحَ عَبْدٌ بَابَ مَسْئَلَةٍ إِلَّا فَتَحَ اللهُ عَلَيْهِ بَابَ فَقْرٍ. (۲)

درې (۳) خبرې داسې دي چې زه د هغې په صداقت قسَم کوم، او تاسو ته يوه خبره کوم هغه ياده کړئ، د بنده مال په صدقې ورکولو سره نه کميږي، او په کوم بنده چې ظلم او شي او هغه پرې صبر وکړي نو الله تعالى به يې نور هم عزت زيات کړي، او کوم بنده چې (په خپل ځان باندې) د سوال دروازه پرانيزي نو الله تعالى به په ده باندې د فقيرۍ دروازه پرانيزي.

۳. اميرِ شريعت سيد عطاء الله شاه بخاري رحمه الله به فرمايل: چې ما ټول عُمر د دوه (۲) کسانو تلاش وکړو خو هغه ما او نه موندل:

يو هغه کس چې هغه صدقه ورکړي وي او هغه غريب شوې وي (يعنى په صدقې ورکولو سره هيڅوک نه غريب کيږي، بلکه الله ﷻ يې په مال کې نور هم برکت اچوي).

اَو دويم هغه کس چې هغه ظلم کړې وي او هغه د الله ﷻ د سزا نه محفوظ شوې وي (بلکه الله ﷻ ظالم ته خامخا سزا ورکړي).

## په پټه صدقې ورکولو سره د الله ﷻ د غضب نه محفوظ کيدل

کله چې انسان په پټه صدقه ورکړي چې د رِيا او سُمعت نه پاکه وي نو په دې سره دا انسان د الله ﷻ د غضب او قهر نه محفوظ کيږي.

۱. رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي:

(۱) مظاهر حق ج۳ ص ۳۸۸.

(۲) رواه احمد ۴ / ۲۳۱، والتبريزي في المشكاة ۵۲۸۷، والسيوطي في الدرّ ۴ / ۲۳۱، المتجر الرابح في ثواب العمل الصالح ص ۱۳۱، رياض الصالحين ج۱ باب الكرم والجود والانفاق في وجوه الخير.

صَدَقَةُ السِّرِّ تُطْفِئُ غَضَبَ الرَّبِّ ، وَصِلَةُ الرَّحِمِ تَزِيْدُ فِي الْعُمُرِ . (۱)

په پټه صدقه ورکول د الله ﷻ غضب يَخوي ( يعنې د الله ﷻ غضب دفع کوي ) ، او صله رحمي کول په عُمر کې زيادت ( او برکت ) راولي .

۲ . په يو بل حديث کې ورسره نوره اضافه هم شته ، نبي عليه السلام فرمايي :

إِنَّ الصَّدَقَةَ لَتُطْفِئُ غَضَبَ الرَّبِّ وَتَدْفَعُ مِيْتَةَ السُّوْءِ . (۲)

بيشکه صدقه ورکول د الله ﷻ غضب ( غصه ) يَخوي ( يعنې ختموي يې ) ، او د خراب مرګ نه حفاظت کوي .

**فايده** : د الله ﷻ د غضب يخيدو مطلب دادی چې الله ﷻ به دا کس په دُنيا کې په عافيت او سکون سره ساتي او د بَلاګانو نه به يې محفوظ کوي .

او د خراب مرګ نه د محفوظ کيدو مطلب دادی چې صدقه ورکوونکې به د مرګ په وخت د خراب حالت او د شيطاني وسوسو نه محفوظ وي ، او په داسې بيمارۍ کې به نه مبتلاء کيږي چې د هغې په وجه يې خاتمه خرابه شي ، بلکه خاتمه بِالخير به يې نصيبه کيږي . (۳)

۳ . په يوه موقع د نبي عليه السلام نه پوښتنه اوشوه :

يَا رَسُوْلَ اللهِ ! أَيُّ الصَّدَقَةِ أَفْضَلُ ؟ اې د الله ﷻ رسوله ! کومه صدقه غوره ده ؟

نبي عليه السلام ورته اوفرمايل : سِرٌّ إِلَى فَقِيْرٍ وَ جُهْدٌ مِنْ مُقِلٍّ . (۴)

(۱) قال في مجمع الزوائد (۳/۱۱۵) رواه الطبراني في الكبير (۲/۹٦) واسناده حسن ، الترغيب والترهيب ج۱ (۴/٦۱۷) ، المتجر الرابح في ثواب العمل الصالح ص ۱۳۸ ثواب صدقة السرّ ، نزهة الناظرين ص ۱۹۹ كتاب الصدقة .

(۲) رواه الترمذي الحديث ٦٦۴ ، وابن حبان في صحيحه والسيوطي في الجوامع ۵٦٦۱ ، والهندي في الكنز ۱۵۹۳۵ ، ۱٦۱۱۴ ، والزبيدي في الاتحاف ۴/۱۱۲ ، ۱٦۷ ، المتجر الرابح ۱۳٦ ثواب الصدقة وفضلها ، وقال الترمذي حديث حسن غريب . الترغيب والترهيب (۴/٦۱۷) . وروي ابن المبارک في كتاب البر شطره الاخير . ولفظه : إِنَّ اللهَ لَيَدْرَءُ بِالصَّدَقَةِ سَبْعِيْنَ بَابًا مِنْ مِيْتَةِ السُّوْءِ . الترغيب والترهيب ج۱ (۲۱/۵۸۹) .

(۳) مظاهر حق ج۳ ص ۳۰۲ .

(۴) رواه احمد ۵/۲٦۵ ، والطبراني في المعجم ۸/۲۵۹ ، ۲٦۹ ، والسيوطي في الدر ۱/۳۵۳ ، المتجر الرابح ص ۱۳۷ ثواب صدقة المقلّ .

فقیر ته په پټه صدقه ورکول ، او په فقیری (تنګ دستی) کې صدقه ورکول .

## په پټه سره د صدقې ورکولو فضیلت

څومره چې صدقه پټه ورکړې شي نو دومره ددې اجر زيات وي ، ځکه په دې کې خو يو رِيا نه وي ، او بل اخيستونکې هم د نورو خلقو د وړاندې اونه شرميږي .

۱ . الله رب العزت فرمايي :

﴿إِن تُبْدُوا الصَّدَقَٰتِ فَنِعِمَّا هِيَ وَإِن تُخْفُوهَا وَتُؤْتُوهَا الْفُقَرَاءَ فَهُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ وَيُكَفِّرُ عَنكُم مِّن سَيِّئَاتِكُمْ وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ﴾.(۱)

ترجمه : که چيرته تاسو صدقې په ښکاره ورکوی نو (هم) ښه خبره ده ، او که چيرته تاسو دا صدقې پټوئ او په پټه يې فقيرانو ته ورکوئ نو دا (په پټه ورکول) ستاسو د پاره ډير بهتر دي ، او الله تعالى به (ددې په برکت) ستاسو څنې ګناهونه لرې (معاف) کړي ، او الله تعالى په هغه کارونو چې تاسو يې کوی ښه خبردار دی .

۲ . د بخاري او مسلم شريف حديث دی ، رسول الله ﷺ فرمايي :

سَبْعَةٌ يُظِلُّهُمُ اللهُ فِي ظِلِّهِ يَوْمَ لَا ظِلَّ إِلَّا ظِلُّهُ . ..... وَرَجُلٌ تَصَدَّقَ بِصَدَقَةٍ فَأَخْفَاهَا حَتَّى لَا تَعْلَمَ شِمَالُهُ مَا تُنْفِقُ يَمِينُهُ .(۲)

اووه (۷) کسان داسې دي چې د قيامت په هغه سخته ورځ کې به الله ﷻ دوی ته د خپل عرش د سيوري لاندې ځای ورکړي ، په کومه ورځ چې د عرش د سيوري نه علاوه بل سيوری نوي ........ په دوی کې يو هغه کس دی چې په داسې پټې طريقې سره (په خي لاس) صدقه ورکړي چې چپ لاس ته هم معلومه نه وي چې خي لاس څه شی صدقه کړو ،

۳ . د ترمذي شريف حديث دی ، رسول الله ﷺ فرمايي :

---

(۱) البقرة آيت ۲۷۱ .

(۲) اخرجه البخاري في الاذان باب ۳۶ والرقاق باب ۲۴ والزكوة باب ۱۶ (۲۲۶) والحدود باب ۱۹ . ومسلم في الزكوة حديث ۹۱ . والترمذي في الزهد باب ۵۳ . والنسائي في القضاة باب ۲ ، واحمد ۲ / ۴۳۹ .

لَمَّا خَلَقَ اللّٰهُ الْأَرْضَ جَعَلَتْ تَمِيْدُ فَخَلَقَ الْجِبَالَ فَقَالَ بِهَا عَلَيْهَا (۱) فَاسْتَقَرَّتْ فَعَجِبَتِ الْمَلَائِكَةُ مِنْ شِدَّةِ الْجِبَالِ فَقَالُوْا : يَارَبِّ ! هَلْ مِنْ خَلْقِكَ شَيْءٌ أَشَدُّ مِنَ الْجِبَالِ ؟ قَالَ : نَعَمْ اَلْحَدِيْدُ . فَقَالُوْا : يَارَبِّ هَلْ مِنْ خَلْقِكَ شَيْءٌ أَشَدُّ مِنَ الْحَدِيْدِ ؟ قَالَ : نَعَمْ اَلنَّارُ . فَقَالُوْا : يَا رَبِّ هَلْ مِنْ خَلْقِكَ شَيْءٌ أَشَدُّ مِنَ النَّارِ ؟ قَالَ : نَعَمْ اَلْمَاءُ . فَقَالُوْا : يَارَبِّ هَلْ مِنْ خَلْقِكَ شَيْءٌ أَشَدُّ مِنَ الْمَاءِ ؟ قَالَ : نَعَمْ اَلرِّيْحُ . فَقَالُوْا : يَارَبِّ هَلْ مِنْ خَلْقِكَ شَيْءٌ أَشَدُّ مِنَ الرِّيْحِ ؟ قَالَ : نَعَمْ اِبْنُ آدَمَ تَصَدَّقَ صَدَقَةً بِيَمِيْنِهٖ يُخْفِيْهَا مِنْ شِمَالِهٖ . (۲)

کله چې الله تعالی زمکه پیدا کړه نو هغه په خوزیدو شوه ، بیا الله تعالی غرونه پیدا کړه او دایې په زمکه اُودرول ، نو زمکه په قلاره شوه . فرښتو ته د غرونو په سختۍ ډیر تعجب اوشو ، الله تعالی ته یې وویل :

اې الله ! ستا په مخلوقاتو کې د غرونو نه هم سخت شی شته ؟ الله تعالی ورته وفرمایل : هو .اُوسپنه ده ( چې دا کاڼې هم ماتوي ) .

فرښتو بیا عرض وکړو : اې زمونږه ربه ! آیا ستا په مخلوقاتو کې د اُوسپنې نه هم زیات سخت څه شی شته ؟ الله رب العزت ورته وفرمایل : آو ، هغه اُور دی ( چې دا اُوسپنه هم ویلې کوي ) .

فرښتو بیا پوښتنه وکړه : اې زمونږه ربه ! آیا ستا په مخلوقاتو کې د اُور نه هم زیات سخت شی شته ؟ الله تعالی وفرمایل : آو ، اُوبه دي ( چې اُوبه اُور هم مړ کوي ) .

فرښتو بیا عرض وکړو : اې زمونږه ربه ! آیا ستا په مخلوقاتو د اُوبو نه هم زیات قوي څه شی شته ؟ الله تعالی وفرمایل : آو ، هوا ده ( چې دا اُوبه هم اُوچوي ) .

فرښتو بیا وویل : اې زمونږه ربه ! آیا ستا په مخلوقاتو کې د هوا نه هم زیات مضبوط څه شی شته ؟ الله رب العزت ورته وفرمایل :

نَعَمْ اِبْنُ آدَمَ تَصَدَّقَ صَدَقَةً بِيَمِيْنِهٖ يُخْفِيْهَا مِنْ شِمَالِهٖ .

(۱) وَفِيْ رِوَايَةٍ : لَمَّا خَلَقَ اللّٰهُ الْأَرْضَ جَعَلَتْ تَمِيْدُ وَتَكَفَّأُ فَأَرْسَاهَا بِالْجِبَالِ ..... رواه الترمذي الحديث ۳۳٦۹ ، واحمد ۳/ ۱۲۴ ، والتبريزي في المشكوة ۱۹۲۳ ، والمنذري في الترغيب ۲/ ۳۰ . المتجر الرابح ص ۱۳۹ .

(۲) رواه الترمذي ، مشكوة باب فضل الصدقة الفصل الثاني حديث ۳۵ .

او ، هغه د بني آدم هغه صدقه ده چې په خپل ښي لاس باندې داسې صدقه ورکړي چې د خپل چپ (ګس) لاس نه يې هم پټوي .

(يعنى داسې په پټې طريقې سره په ښي لاس صدقه ورکړي چې چَپ لاس هم د دينه خبر نه شي ).

**نوټ** : په پټه صدقې ورکولو ته د ټولو نه زيات سخت شى ځکه وويلې شو چې په دې سره د الله ﷻ رضا حاصليږي ، او د الله تعالى غضب پرې دفع کيږي ، د نفسِ اَمّاره مخالفت راځي ، ځکه هر سړې فطرتًا دا غواړي چې زه صدقه ورکړم نو ما دې خلق او ګوري ، زما تعريف دې وکړي ، او زه دې مشهور شم . اوس چې سړې دا په پټه ورکړي نو په دې سره د نفسِ امّاره او شيطان مخالفت راغى ، او د رِيا او ځان خودَنې نه هم بچ شو . (۱)

۴ . د مشکوة شريف حديث دى ، رسول الله ﷺ فرمايي : چې درې ( ۳ ) کسان داسې دي چې د هغوى سره الله ﷻ محبت کوي ، په دې درې کسانو کې يو کس هغه دى چې :

فَرَجُلٌ أَتَى قَوْمًا فَسَأَلَهُمْ بِاللهِ وَلَمْ يَسْأَلْهُمْ بِقَرَابَةٍ بَيْنَهُ وَبَيْنَهُمْ فَمَنَعُوْهُ فَتَخَلَّفَ رَجُلٌ بِأَعْقَابِهِمْ فَأَعْطَاهُ سِرًّا لَا يَعْلَمُ بِعَطِيَّتِهِ إِلَّا اللهُ وَالَّذِيْ أَعْطَاهُ . (۲)

هغه کس چې داسې يو فقير ته صدقه ورکړي کوم فقير چې يو قوم ته راشي او د الله ﷻ په نوم ورنه څه او غواړي ( يعنى دا فقير ورته ووايي چې زه تاسو ته د الله ﷻ په ذات قسَم درکوم چې د ما سره اِمداد وکړئ ) ، او دې فقير د دې خلقو نه د هغه حقِ قرابت په وجه څه او نه غوښته کوم چې دده او د قوم په مينځ کې وُ ( بلکه خالص د الله ﷻ په نوم يې ورنه او غوښت ) خو دې قوم دې فقير ته هيڅ ورنه کړه ، بيا د دې جَماعت يو کس د دې فقير پسې په پټه روان شي او ده ته يې داسې په پټه سره څه ( صدقه ) ورکړه چې دده په دې ورکړه باندې د

---

(۱) مظاهر حق ج۳ باب فضل الصدقة .

(۲) رواه احمد ۸۴/۵، ۱۶۳ ، ۱۷۶ ، والحاکم فى المستدرک ۱ /۲۵ ، ۴۱۶ ، ۲ /۱۱۳ ، والترمذي الحديث ۲۵۶۸ ، وابن خزيمة في صحيحه ۲۴۵۶ ، ۲۵۵۶ ، مشکوة باب فضل الصدقة الفصل الثاني حديث ۳۴ ، المتجر الرابح ص ۱۳۸ ثواب صدقة السرّ .

الله ﷻ او ددې فقير نه علاوه بل هيڅوک هم پوهه نشي (نو دغه په پټه صدقه ورکوونکې کس د الله ﷻ دير محبوب دی).

۵. حضرت ابن عباس رضی الله عنهما فرمايي:

صَدَقَةُ السِّرِّ فِي التَّطَوُّعِ تفضُلُ عَلَانِيَتِهَا بِسَبْعِيْنَ ضِعْفًا. (۱)

نفلي صدقه په پټه ورکول د ښکاره صدقې ورکولو نه يو په اويا (۷۰) چنده بهتره ده.

۶. ابن جعد رحمه الله وايي:

إِنَّ الصَّدَقَةَ لَتَدْفَعُ سَبْعِيْنَ بَابًا مِّنَ السُّوْءِ وَفَضْلُ سِرِّهَا عَلى عَلَانِيَتِهَا سَبْعِيْنَ ضِعْفًا. (۲)

بيشکه صدقه ورکول (په انسان باندې) د بدۍ او تکليفونو اويا (۷۰) دروازې بندوي، او د پټې صدقې ورکولو فضيلت په ښکاره صدقه ورکولو باندې يو په اويا چنده زيات دی.

## د صدقې په وجه مصيبتونه او مرضونه دفع کيږي

۱. رسول الله ﷺ فرمايي:

اَلصَّدَقَةُ تَسُدُّ سَبْعِيْنَ بَابًا مِّنَ السُّوْءِ. (۳)

صدقه (په انسان باندې) د بدۍ او تکليفونو اويا (۷۰) دروازې بندوي.

---

(۱) احياء العلوم، نزهة الناظرين ص ۲۰۲.

(۲) المتجر الرابح في ثواب العمل الصالح ص ۱۳۹ ثواب صدقة السر.

(۳) رواه الطبراني في المعجم ۴/۳۲۷، والمنذري في الترغيب ۲/۱۹، والهيثمي في المجمع ۳/۱۰۹. المتجر الرابح ص ۱۳۴ ثواب الصدقة وفضلها.

**فايده**: فَإِنْ قِيْلَ: كَيْفَ قَالَ عَلَيْهِ السَّلَامُ "اَلصَّدَقَةُ تَسُدُّ سَبْعِيْنَ بَابًا مِّنَ السُّوْءِ" وَنَحْنُ نَرَىٰ مَنْ يَتَصَدَّقُ ثُمَّ يُبْتَلىٰ؟ فَالْجَوَابُ: مِنْ وَجْهَيْنِ: اَلْأَوَّلُ: أَنَّهَا تَدْفَعُ الْبَلَاءَ حَالَ الصَّدَقَةِ. اَلثَّانِيْ: اَنَّهَا تَدْفَعُ بَلَاءَ الْعُقُوْبَةِ لَا بَلَاءَ الْمَثُوْبَةِ. نزهة المجالس ج۲ ص ۱۶.

۲ . نبي عليه السلام فرمايي : بَاكِرُوْا بِالصَّدَقَةِ فَإِنَّ الْبَلَاءَ لَايَتَخَطَّى الصَّدَقَةَ . (۱)

تاسو د صدقې په ورکولو کې تادي کوئ ( يعنی د مرګ او بيمارۍ نه مخکې مخکې صدقه ورکوئ ) ، ځکه بلا ( او مصيبتونه ) په صدقه سبقت نشي کولی ( يعنی بلاګانې او مصيبتونه په صدقه ورکولو نه زياتيږي ، بلکه دا صدقه ورته حايل شي او بلاګانې پرې دفع کيږي ) .

## واقعه : د صدقې په برکت د بچې حفاظت

علامه ابن جوزي رحمه الله په خپل کتاب "روضة المشتاق" کې يوه واقعه رانقل کړی ، رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي :

يو سړي او ښځې د ماسخوتن د ودۍ ( روټۍ ) خوړله ، کله چې دې ښځې نوړۍ خپلې خُلې ته راپورته کړه نو په دروازه کې يو فقير خوراک اوغوښته ، نو دې ښځې دا نوړۍ په خپله اونه خوړه ، بلکه فقير ته يې ور اُوليږله ، کله چې صبا شو ، نو دا خاوند يې پټي ته د کار د پاره لاړ ، د غرمې په وخت دې ښځې ورپسې روټۍ ورووړله ، نو په غيږ کې يې وړوکې بچې هم وُ ، په لاره کې يې دا ماشوم په يوځای کې کينول ، ددې دپاره چې د پيازو څه پاڼې رااُوشکوي چې خاوند يې د روټۍ سره اوخوري ، دا په دې راشوکولو کې مصروفه وه چې ناڅاپه يو ليوه راغی ، او دا ماشوم يې په خُله کې ونيوه او ورنه وې تختول . دې ښځې قبلې ته مخ کړو ، او دا دُعا يې اوغوښته :

اَللّٰهُمَّ إِنْ كُنْتَ تَعْلَمُ أَنِّيْ رَفَعْتُ اللُّقْمَةَ . وَأَنَا أَشْتَهِيْهَا فَهَتَفَ بِيْ سَائِلٌ عَلَى الْبَابِ فَآثَرْتُهُ بِهَا عَلَى نَفْسِيْ مِنْ أَجْلِكَ وَرَغْبَةً فِيْمَا لَدَيْكَ . وَقَدْ وَقَفْتُ بِبَابِكَ فَأَعِدْ عَلَيَّ وَلَدِيْ . (۲)

اې الله ! تاته ښه معلومه ده چې بيګاه ما کله د روټۍ خوړلو اِراده وکړه ، او نوړۍ مې خُلې ته راپورته کړه ، نو يو فقير په دروازه کې آواز وکړو ، اګر چې زما دې خوراک ته زړه هم

(۱) رواه البيهقي في الشعب مرفوعًا هكذا وموقوفا على النبي ﷺ ، البيهقي ۴ /۱۸۹ ، المتجر الرابح ص ۱۲۵ ثواب الصدقة وفضلها . وفي رواية : بَادِرُوْا بِالصَّدَقَةِ فَإِنَّ الْبَلَاءَ لَايَتَخَطَّاهَا . رواه رزين ، مشكوة باب الانفاق وكراهية الامساک الفصل الثالث حديث ۲۹ .

(۲) نزهة الناظرين الباب الرابع في فوائد الصدقة ص ۱۹۷ .وهكذا في تنبيه الغافلين ص ۱۵۰ باب ما تدفع الصدقة عن صاحبها .

کیده خو ما صرف ستا د رضا او ستا د خوشحالۍ دپاره هغه ته په ځان باندې ترجیح ورکړه ، نو اې الله ! زه دا دې او س ستا مخې ته ولاړه یم ته ما ته د هغې صدقې په برکت سره دا بچې راواپس کړې .

نو هغه لیوه واپس راوګرځیده ، بچې ورسره په خُله کې وُ ، کله چې دې ښځې ته رانزدې شو ، نو بچې یې هلته واپس پریخود ، او یو هاتفي آواز اوشو :

هٰذِهِ اللُّقْمَةُ بِتِلْكَ اللُّقْمَةِ .

دا نوړۍ د هغې نوړۍ په عوض کې ده .( یعنی کله چې تا هغه نوړۍ په صدقه کې ورکړې وه نو د هغې په برکت سره مو ستا دا بچې د لیوه د نوړۍ ګرځیدو نه محفوظ کړو ) .

۳ . رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي :

دَاوُوْا مَرْضَاكُمْ بِالصَّدَقَةِ . (۱)

تاسو دخپلو بیماریانو علاج په صدقې ورکولو سره کوئ .

(یعنی که صدقه ورکوئ نو الله رب العزت به درته د بیماریانو نه شفاء درکوي ) .

## واقعه :

مولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله د یو رئیس متعلق لیکلي چې کله به دې بیمار شو ، نو خپل موټر به یې د حکیم پسې ورولیږل ، هغه به یې راوست ، هغه به دې اوکته ، او نسخه به یې ورته ولیکله ، کله به چې حکیم لاړو ، نو ده به دا نسخه خپل یو خادِم ته ورکړه چې بازار ته لاړ شه ، او د دوايي په دُکان کې ددې قیمت معلوم کړه چې دا د څو روپو دوايي ده ، هغه به چې ددې قیمت معلوم کړو نو دې رئیس به هماغومره روپۍ په فقیرانو باندې تقسیم کړې ، او اوبه یې ویل چې:

" زما دوايي همدا ده " . د خدای شان دی چې څنګه به یې دا روپۍ صدقه کړې نو په هماغه وخت به روغ جوړ او صحت مند شو . (۲)

(۱) اخرجه البيهقي في السنن ۳ / ۳۸۲ .

(۲) خطبات حکیم الامت .

۴ . رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي: حَصِّنُوْا أَمْوَالَكُمْ بِالزَّكٰوةِ، وَدَاوُوْا مَرْضَاكُمْ بِالصَّدَقَةِ، وَاسْتَقْبَلُوْا أَنْوَاعَ الْبَلَايَا بِالدُّعَاءِ . (١)

تاسو د خپلو مالونو حفاظت په زکوة ورکولو سره وکړئ، او د خپلو مرضونو علاج په صدقې ورکولو سره وکړئ، او په دُعاګانو قِسما قسم بَلاګانې د ځان نه دفع کړئ.

## واقعه : د صدقې په وجه د خپې زخم ښه کيدل

امام بخاري رحمه الله ذکر کړي چې د مشهور محدث عبدالله بن مبارک رحمه الله نه چا پوښتنه وکړه: اې ابوعبدالرحمن! زما په ګونډۍ (زنګون) کې د اووه (٧) کالونه راپه ديخوا زخم دی، ما ددې هر قسمه علاج وکړو، او د ډيرو طبيبانو سره مې مشوره هم وکړه خو هيڅ فايده راته اونه شوه. عبدالله بن مبارک رحمه الله ورته ووېل:

لاړ شه او داسې يو ځای اوګوره چيرته چې خلقو ته د اُوبو ضرورت وي، هلته يو کوهی اُوکنه، ځکه زما دا اميد دی چې کله هلته اُوبه رااُوځي نو دلته به ستا وينه راوتل بند شي (او دَانه به دې ښه شي).

هغه کس همداسې وکړه او د الله ﷻ په فضل سره روغ جوړ شو. (٢)

## واقعه : د صدقې په برکت د مخ دانې ښه کيدل

امام بيهقي رحمه الله ذکر کړي چې زمونږ يو استاذ ؒ "امام ابوعبدالله حاکم رحمه الله" د هغه په مخ باندې هم ډيرې دَانې وې، هر قسمه علاج يې وکړو خو هيڅ فايده يې اونه کړه، په دې کې تقريبًا يو کال تير شو، يوه ورځ دې د امام ابوعثمان الصابوني رحمه الله په خدمت کې حاضر شو او هغه ته يې ووېل:

---

(١) اخرجه البيهقي في السنن ٣/ ٣٨٢، تنبيه الغافلين (٣٣٢).

(٢) وَعَنْ عَلِيِّ بْنِ الْحَسَنِ بن شَقِيْقٍ: قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ الْمُبَارَكِ وَسَأَلَهُ رَجُلٌ: يَا أَبَا عَبْدِ الرَّحْمن! قُرْحَةٌ خَرَجَتْ فِيْ رُكْبَتِيْ مُنْذُ سَبْعِ سِنِيْنَ وَقَدْ عَالَجْتُ بِأَنْوَاعِ الْعِلَاجِ وَسَأَلْتُ الْأَطِبَّاءَ فَلَمْ أَنْتَفِعْ بِهِ. قَالَ اذْهَبْ فَانْظُرْ مَوْضِعًا يَحْتَاجُ النَّاسُ فِيْهِ الْمَاءَ فَاحْفِرْ هُنَاكَ بِئْرًا. فَإِنِّيْ أَرْجُوْ أَنْ يَنْبُعَ هُنَاكَ عَيْنٌ وَيُمْسِكَ عَنْكَ الدَّمَ. فَفَعَلَ الرَّجُلُ فَبَرَأَ. المتجر الرابح في ثواب العمل الصالح ص ١٤٩.

تاسو زما د پاره د جُمعې په ورځ خاصه دُعا وکړئ چې الله ﷻ ما ته د دې بيمارۍ نه شِفاء راکړي . همدغه شان اوشوه ، ده ورته د جُمعې په ورځ په اخلاص دُعا وکړه او خلقو ورباندې آمين وويل :

کله چې بله د جُمعې ورځ راغله نو يوه ښځه راغله ،او يو کاغذ يې امام ابوعثمان رحمه الله ته راوليږل چې په هغې کې دې ښځې ليکلي وو .

تيره جُمعه چې کله زه کورته لاړم نو ماسخوتن مې د امام عبدالله حاکم د صحت د پاره ښه په اِخلاص دُعا وکړه ، کله چې اُوده شوم نو د نبي عليه السلام سره مې په خُوب کې ملاقات اوشو ، هغوی راته وفرمايل :

قُوْلِيْ لِأَبِيْ عَبْدِاللهِ يوسعُ الْمَاءَ عَلَى الْمُسْلِمِيْنَ .

ابوعبدالله حاکم ته ووايه چې په مسلمانانو باندې د اُوبو فراخي راوله . (د دې په برکت به الله ﷻ درله شِفاء درکړي ) .

امام بيهقي رحمه الله فرمايي چې ما دا کاغذ ابوعبدالله حاکم ته وَروليږل ، هغه چې دا اوکته نو متصل يې د خپل کور مخې ته د اُوبو سبيل جوړولو حکم وکړو ، کله چې سبيل جوړ شو نو هغه به يې د اُوبو نه تازه ډکول ، او مسلمانانو به د هغې نه اُوبه څکلې .

امام بيهقي رحمه الله وايي چې يوه جُمعه په مينځ کې نه وه تيره شوې چې په مخ باندې يې د شفاء آثار ښکاره شو ، او ډير زر يې ټول مخ د دَانو نه صفا شو ، او د مخکيني غوندې يې مخ بالکل صفا او بې داغه راووت .

دغه رنګې نورو ډيرو بزرګانو په بيماريانو او مشکلاتو کې دغه د صدقې ورکولو طريقه اختيار کړې چې په نتيجه کې الله رب العزت ورته شِفاء ورکړې او مشکلات يې ختم شوي (۱)

## د صدقې په وجه ګناهونه معاف کيږي

۱ . الله تعالی فرمايي :

﴿ خُذْ مِنْ أَمْوَالِهِمْ صَدَقَةً تُطَهِّرُهُمْ وَتُزَكِّيهِمْ بِهَا ﴾ . (۲)

(۱) صدقه کې برکات ۲۶۵ ، انتخاب از الترغيب والترهيب .

(۲) التوبة آيت ۱۰۳ .

ترجمه : اې پیغمبره ! ته د دوی د مالونو نه صدقه (او زكوة) واخله چې ته د دې صدقې په ذريعه دوی (د ګناهونونه) پاک او صفا کړې.

۲. د ترمذي شريف اُوږد حديث دی، حضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه فرمايي چې ماته رسول الله صلی الله عليه وسلم په يوه موقع وفرمايل:

اَلَا اَدُلُّکَ عَلٰی اَبْوَابِ الْخَيْرِ؟

آيا زه تاته د خير دروازې اونه ښايم؟ (په کومو دروازو سره چې انسان ته خير رسي).

ما ورته وويل: بَلٰی يَارَسُوْلَ اللهِ. هو، اې د الله ﷺ رسوله! (ضرور يې اوښايئ).

نو نبي عليه السلام راته وفرمايل:

اَلصَّوْمُ جُنَّةٌ، وَالصَّدَقَةُ تُطْفِئُ الْخَطِيْئَةَ كَمَا يُطْفِئُ الْمَاءُ النَّارَ. (۱)

روژه ډال ده (يعنی لکه څرنګ چې د ډال په ذريعه انسان د دُښمن د حملو نه ځان ساتي نو دغه شان د روژې په وجه هم انسان د شيطان د حملو نه محفوظ وي)، او صدقه ګناهونه داسې ختموي لکه څرنګ چې اُوبه اُور ختموي.

۳. په يو بل حديث کې دي، رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي:

اَلصَّدَقَةُ تُطْفِئُ الْخَطِيْئَةَ كَمَا يَذْهَبُ الْجَلِيْدُ عَلَى الصَّفَا. (۲)

صدقه ګناهونه داسې ختموي لکه باران چې د صفا او ښويه کاڼي نه ګرد ختموي.

## واقعه:

علماؤ يوه واقعه رانقل کړې چې منصور بن عمار رحمه الله يوه ورځ خلقو ته وعظ کولو نو د مجلس د خلقو نه يو کس راپاڅيده او څلور دراهم يې اوغوښته، منصور بن عمار رحمه الله ووېل:

(۱) رواه الترمذي في حديث، وقال حسن صحيح، الترمذي الحديث ۲٦١٦، ورواه ابن ماجه الحديث ۳۹۷۳، واحمد ٥/ ۲۳۰، والطبراني في المعجم ۱۸ / ۳٥۱.

(۲) رواه ابن حبان، ورواه الدارمي ۲ / ۳۱۸، واحمد ۳ / ۳۹۹، والحاكم ۴ / ۴۲۲، المتجر الرابح ص ۱۳٥ حديث ٥٦۴ ثواب الصدقة وفضلها، مكاشفة القلوب فضيلة الصدقة.

مَنْ أَعْطَاهُ أَرْبَعَةَ دَرَاهِمَ دَعَوْتُ لَهُ أَرْبَعَ دَعَوَاتٍ.

څوک چې ده ته څلور (۴) درهمه ورکړي نو زه به هغه ته څلور دُعاګانې وکړم.

په دې مجلس کې د يهودي يو غلام ناست وُ هغه راپاڅيد او ده ته يې څلور درهمه ورکړه، او بيا يې منصور رحمه الله ته ووېل: ما ته اوس څلور دُعاګانې وکړه:

۱. زه غلام يې يم، ما ته دُعا وکړه چې الله ﷻ ما آزاد کړي.

۲. زه فقير يم، ما ته دُعا وکړه چې الله ﷻ ما مالداره کړي.

۳. زما مالِک او سردار يهودي دی هغه ته د اِسلام راوړلو دُعا وکړه.

۴. زه ګناهګار يم، ما ته دُعا وکړه چې الله ﷻ زما ګناهونه معاف کړي. (دغه شان زما د مالک د ګناهونو معاف کولو د پاره هم دُعا وکړه).

منصور بن عمار دده د پاره څلور واړه دُعاګانې وکړی.

کله چې دا غلام خپل ځای ته واپس لاړ، نو خپل مالِک ورته پوښتنه وکړه چې څنګه ناوخته راغلی؟ ده ورته غونده قصه بيان کړه چې دغه شان د منصور بن عمار رحمه الله په مجلس کې د وعظ اوريدو د پاره ناست ووم، بيا يو فقير څلور درهمه اوغوښت، منصور ووېل چې چا ده ته څلور درهمه ورکړه زه به هغه ته څلور دُعاګانې وکړم، نو ما هغه فقير ته څلور درهمه ورکړه، د هغې په عوض کې منصور رحمه الله ما ته څلور دُعاګانې وکړی:

۱. يوه دُعا زما د آزاديدو وه. خپل مالک ورته ووېل: أَنْتَ حُرٌّ لِوَجْهِ اللهِ. ته د الله ﷻ د رضا د پاره آزاد يې.

۲. دويمه دُعا زما د مالدارۍ وه. نو خپل مالک ورته څلور زره (۴۰۰۰) درهمه ورکړه

۳. دريمه دُعا ستا د اِسلام راوړلو د پاره وه. نو مالک يې فورًا کلمه شهادت: أَشْهَدُ أَنْ لَّآ إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَّسُوْلُ اللهِ. ووېله، او په اسلام باندې مشرّف شو.

۴. څلورمه دُعا زما او ستا د مغفرت او بخښې د پاره وه. خپل مالک ورته ووېل: دا کار خو زما په قدرت کې نشته.

کله چې دا مالک يې د شپې اُوده شو نو په خوب کې ورته يو ويوونکې وايي:

أَنْتَ فَعَلْتَ مَا فِيْ قُدْرَتِکَ وَأَنَا أَفْعَلُ مَا فِيْ قُدْرَتِيْ . قَدْ غَفَرْتُ لَکَ وَلِلْعَبْدِ وَلِلْوَاعِظِ وَلِلْحَاضِرِيْنَ أَجْمَعِيْنَ . (۱)

څه چې ستا په قدرت کې وو هغه تا وکړه ، او څه چې زما په قدرت کې دي هغه به زه وکړم، نو ما تا ته ، ستا غلام ته ، وعظ کوونکي او ناستو ټولو حاضرينو ته بخښنه وکړه .

## د صدقې په وجه د جهنم د اُور او د قيامت د ورځې د سختۍ نه بچ کيدل

۱. د بخاري او مسلم شريف حديث دی ، رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي :

مَا مِنْكُمْ مِنْ أَحَدٍ إِلَّا سَيُكَلِّمُهُ اللهُ لَيْسَ بَيْنَهُ وَبَيْنَهُ تَرْجُمَانٌ فَيَنْظُرُ أَيْمَنَ مِنْهُ فَلَا يَرَى إِلَّا مَا قَدَّمَ . فَيَنْظُرُ أَشْأَمَ مِنْهُ فَلَا يَرَى إِلَّا مَا قَدَّمَ . وَيَنْظُرُ بَيْنَ يَدَيْهِ فَلَا يَرَى إِلَّا النَّارَ تِلْقَاءَ وَجْهِهِ فَاتَّقُوا النَّارَ وَلَوْ بِشِقِّ تَمْرَةٍ . (۲)

په تاسو کې د هر يو کس سره به الله تعالی براه راست داسې خبرې کوي چې دده او الله ﷻ په مينځ کې به څه واسطه او ترجمان نه وي ، کله چې دا کس خپل خي طرف ته اوګوري نو صرف هغه اعمال به ورته په نظر راشي کوم چې ده مخکې ليږلي وي ، کله چې شا ته اوګوري نو هم صرف هغه اعمال به ورته په نظر راشي کوم چې ده د ځان نه مخکې ليږلي وي ، کله چې دې خپلې مخې ته اوګوري نو د اُور نه علاوه بل هيڅ شی به اونه ويني . لهذا د جهنم د اُور نه ځان بچ کړئ اګر چې د قجورې د يوې حصې په صدقه کولو سره وي .

۲. په يو روايت کې داسې الفاظ دي نبي عليه السلام فرمايي :

مَنِ اسْتَطَاعَ مِنْكُمْ أَنْ يَسْتَتِرَ مِنَ النَّارِ وَلَوْ بِشِقِّ تَمْرَةٍ فَلْيَفْعَلْ . (۳)

په تاسو کې چې څوک ددې طاقت لري چې د جهنم د اُور نه ځان اوساتي اګر که دا د يوې قجورې په څه حصه صدقه کولو سره وي ، خو خپل ځان دې د اُور نه محفوظ کړي ( او د قجورې دا څه حصه دې صدقه کړي چې ددې په برکت د جهنم د اُور نه محفوظ شي ) .

(۱) نزهة المجالس ج۲ ص ٥ باب في فضل الصدقة وفعل المعروف .

(۲) رواه البخاري ۹/۱٦۲ ، ۱۸۱ ، واحمد ۴/۲٥٦ .

(۳) رواه البخاري ۹/۱٦۲ ، ۱۸۱ ، واحمد ۴/۲٥٦ ، المتجر الرابح في ثواب العمل الصالح ص۱۳۳ .

۳. رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي:

لِيَتَّقِ أَحَدُكُمْ وَجْهَهُ النَّارَ وَلَوْ بِشِقِّ تَمْرَةٍ. (۱)

په کار ده چې په تاسو کې (هر) يو کس خپل مخ د اُور نه اُوساتي اګر چې هغه د قجورې په يوه ټکړه (صدقه کولو) سره وي.

۴. په يو حديث کې ذکر دي، سردارِ دوجهان محمد رسول الله ﷺ فرمايي:

تَصَدَّقُوا فَإِنَّ الصَّدَقَةَ فِكَاكُكُمْ مِنَ النَّارِ. (۱)

صدقه کوئ ځکه صدقه تاسو د جهنم د اُور نه آزادوي.

۵. نبي علیه السلام فرمايي:

مَنْ أَطْعَمَ أَخَاهُ حَتَّى يُشْبِعَهُ، وَسَقَاهُ مِنَ الْمَاءِ حَتَّى يَرْوِيَهُ بَاعَدَهُ اللهُ مِنَ النَّارِ سَبْعَ خَنَادِقَ مَا بَيْنَ كُلِّ خَنْدَقَيْنِ مَسِيرَةُ خَمْسِ مِائَةِ عَامٍ. (۲)

چا چې خپل يو (مسلمان) ورور ته خوراک ورکړو تر دې چې هغه يې بنه موړ کړو، او په هغه يې اُوبه اُوڅکلې تر دې چې د هغه تنده يې ماته کړه نو الله تعالی به دې د جهنم د اُور نه اووه (۷) خندقه لرې کړي چې د هر دوه (۲) خندقونو په مينځ کې د پنځه سوه (۵۰۰) کاله په اندازه مسافت دی.

## انسان به د قيامت په ورځ د صدقې د سُوري لاندې وي

۱. رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي:

---

(۱) رواه احمد ۱ / ۳۸۸، والهيثمي في المجمع ۳ / ۱۰۵. المتجر الرابح في ثواب العمل الصالح ص ۱۳۴. په يوه موقع نبي کريم صلی الله علیه وسلم حضرت عائشې رضی الله عنها ته وفرمايل: يَا عَائِشَةُ! إِسْتَتِرِي مِنَ النَّارِ وَلَوْ بِشِقِّ تَمْرَةٍ فَإِنَّهَا تَسُدُّ مِنَ الْجَائِعِ مَسَدَّهَا مِنَ الشَّبْعَانِ. رواه احمد باسناد صحيح ۶/ ۷۹، والمنذري في الترغيب والترهيب ۲/ ۱

(۲) رواه البيهقي ۴ / ۱۸۹، المتجر الرابح ص ۱۳۵. وَفِي رِوَايَةٍ: عَنْ مَيْمُونَةَ بِنْتِ سَعْدٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا أَنَّهَا قَالَتْ: يَا رَسُولَ اللهِ أَفْتِنَا عَنِ الصَّدَقَةِ. فَقَالَ: إِنَّهَا حِجَابٌ مِنَ النَّارِ لِمَنِ احْتَسَبَهَا يَبْتَغِي بِهَا وَجْهَ اللهِ عَزَّ وَجَلَّ. قال في مجمع الزوائد (۳/ ۱۱۱) رواه الطبراني في الكبير، المسند (۵ / ۲۶۵)، المتجر الرابح ص ۱۳۶.

(۳) رواه الطبراني وأبو الشيخ والحاكم، وقال صحيح الاسناد، و رواه المنذري ۵/ ۶۵، والزبيدي في الاتحاف ۵/ ۲۳۳، والهيثمي في المجمع ۳ / ۱۳۰، والحاكم ۴ / ۱۲۹، المتجر الرابح ص ۱۳۶، مكاشفة القلوب باب فضيلة الصدقة.

ظِلُّ الْمُؤْمِنِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ صَدَقَتُهُ . (۱)

د قيامت په ورځ به د مومن سوري د هغه صدقه وي .

يعنی صدقه به د قيامت په ورځ د انسان د سَر د پاسه د تمبو په شان اُو دَرولې شي چې د هغې ورځې د سختې گرمۍ نه به يې محفوظ کوي .

۲ . رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي :

إِنَّ الصَّدَقَةَ لَتُطْفِئُ عَنْ أَهْلِهَا حَرَّ الْقُبُوْرِ . وَ إِنَّمَا يَسْتَظِلُّ الْمُؤْمِنُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فِيْ ظِلِّ صَدَقَتِهِ . (۲)

بيشکه صدقه د صدقه ورکوونکي نه د قبر گرمائش ختموي ، او مومن به د قيامت په ورځ د صدقې د سُوري لاندې وي .

## د صدقې په وجه جنت ته داخيدل

۱ . رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي :

إِنَّ اللهَ عَزَّ وَجَلَّ لَيُدْخِلُ بِاللُّقْمَةِ مِنَ الْخُبْزِ وَ قُبْصَةِ التَّمْرِ وَ مِثْلِهِ مِمَّا يَنْتَفِعُ بِهِ الْمِسْكِيْنُ ثَلَاثَةً الْجَنَّةَ : رَبَّ الْبَيْتِ الْآمِرِ بِهِ . وَالزَّوْجَةَ تُصْلِحُهُ . وَالْخَادِمَ الَّذِيْ يُنَاوِلُ الْمِسْكِيْنَ . (۳)

بيشکه الله ﷻ د خوراک په يوه نوړه ، د قجورې په څه لږه حصه يا ددې په شان د بل يو څيز په کوم چې مسکين فايده اخلي ددې شيانو په صدقه کولو سره الله ﷻ درې (۳)

(۱) رواه احمد ۵ / ۴۱۱ ، والهيثمي فی المجمع ۳ / ۱۱۰ ، والمنذري ۲ / ۱۶ ، وابن خزيمة فی الصحيح ۲۴۳۲ ، المتجرالرابح ص ۱۳۲ ثواب الصدقة وفضلها ./ په يو بل حديث کې ذکر دي : كُلُّ امْرِءٍ فِيْ ظِلِّ صَدَقَتِهِ حَتّٰى يُقْضٰى بَيْنَ النَّاسِ . رواه الهيثمي فی الموارد ۸۱۷ ، والسيوطي فی الدر ۲ / ۱۶ ، والعجلوني فی الکشف ۱ / ۵۱۱ ، المتجرالرابح ص ۱۳۲ . د قيامت په ورځ به هر سړي ( په هغه سخته گرمۍ کې ) د خپلې صدقې د سوري لاندې ولاړ وي تر دې چې د خلقو په مينځ کې فيصله وکړې شي .

(۲) رواه الطبراني فی الکبير ، المتجرالرابح فی ثواب العمل الصالح ص ۱۳۲ حديث ۵۲۵ .

(۳) رواه الطبراني فی الاوسط والحاکم ۴ / ۱۳۴ ، والسيوطي فی الدرّ ۱ / ۳۵۵ ، والمنذري فی الترغيب ۲ / ۴۰ . په کنزالعمال کې ددې حديث د ذکر کيدو نه روستو ورسره څه نوره اضافه هم شته ،چې نبي عليه السلام وفرمايل : اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ لَمْ يَنْسَ خَدَمَنَا . رواه الحاکم ۴/۱۳۴ ، الهندي فی الکنز ۱۶۱۶۷ المتجرالرابح ص ۱۳۴ ، ۱۳۲ .

کسان جنت ته داخلوي : يو د کور مالِک ، کوم چې د صدقې ورکولو حکم کوي . دويم هغه بي بي کومه چې دا خوراک تياروي . او دريم هغه خادم کوم چې دا خوراک مسکين ته ورکوي .

۲ . امام بخاري او امام مسلم رحمهما الله دنبي عليه السلام يو حديث رانقل کړی چې په هغې کې د جنت د اتو ( ۸ ) دروازو ذکر دی ، او په هغې دروازو کې يوه دروازه د '' بَابُ الصَّدَقَة '' هم ده ، چې صدقه ورکوونکي به په دې دروازه باندې جنت ته داخلېږي . رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي: وَمَنْ كَانَ مِنْ أَهْلِ الصَّدَقَةِ دُعِيَ مِنْ بَابِ الصَّدَقَةِ .

څوک چې صدقه ورکوي نو دې به د جنت د '' بَابُ الصَّدَقَة '' (يعنی د صدقې د دروازې) نه بللې شي (کومه چې به د صدقه ورکوونکو د پاره خاص وي ، او ده ته به وويلې شي : اې د الله ﷻ بنده ! ته په دې دروازه جنت ته داخل شه ) . (۱)

۳ . حديث کې راځي چې د قيامت په ورځ به بغير د حساب و کتاب او بغير د عذاب ورکولو نه څلور ( ۴ ) کسان د جنت دروازې ته راوستې شي ، په دې څلورو کسانو کې به يو هغه عالِم وي چې په خپل علم يې عمل کړې وي ، دويم به هغه حاجي وي چې بغير د فساد نه يې حج کړې وي ، دريم به هغه شهيد وي چې د الله ﷻ د رضا د پاره په جهاد کې شهيد شوې وي ، څلورم به هغه سخي وي چې حلال مال يې ګټلې وي او بيا يې د الله ﷻ په لاره کې بغير د رِياء نه خرچ کړې وي .

په دې څلورو واړو کې به هر يو کس دا کوشش کوي چې جنت ته اول زه داخل شم ، دوی به په خپل مينځ کې سره په جګړه وي ، نو الله ﷻ به حضرت جبريل عليه السلام راوليږي چې د دوی په مينځ کې فيصله وکړي .

حضرت جبريل عليه السلام به اول د شهيد نه پوښتنه وکړي : تا په دُنيا کې څه عمل کړی چې ته اول جنت ته د داخليدو اِراده لرې ؟ هغه به ورته ووايي :

(۱) متفق عليه ، مشکوة باب فضل الصدقة الفصل الاول حديث نمبر ۳ .

زه د الله ﷻ د رضا د پاره په جهاد کې شهيد شوې ووم . جبريل عليه السلام به پوښتنه ورنه وکړي : تا د شهادت ثواب د چا نه اوريدلې وُ ؟ دې به ورته ووايي : ما د عالِم نه اوريدلې وُ . جبريل ؑ به ورته ووايي : بيا خو د خپل أستاذ د اَدب لحاظ اُوساته ، د خپل أستاذ نه څنګه مخکې جنت ته داخليږې ؟

بيا به جبريل عليه السلام د حاجي او سخي نه هم همدغه شان پوښتنه وکړي ، هغوی به هم ورته همدغه شان جواب ورکړي .

( جبريل عليه السلام به هغوی ته هم دا جواب ورکړي چې کله تاسو د حج او سخاوت فضيلت د عالِم نه اوريدلې دی نو بيا خو دا عالِم ستاسو أستاذ دی ، او د أستاذ اَدب په کار دی ، نو حق دده جوړيږي چې دې اول جنت ته داخل شي ) .

بيا به عالِم د الله ﷻ د وړاندې عرض وکړي : اې الله ﷻ ! ما خو چې دا عِلم حاصل کړې وُ نو دا خو د سخي د سخاوت او دده د اِحسان په وجه سره ( چې ده به د ما سره اِمداد کولو نو ځکه مې عِلم حاصل کړې وُ ، لهذا که زما په ځای دا سخي اول جنت ته داخل شي نو دا به ښه وي ) .

الله رب العزت به اوفرمايي : دې عالِم ريښتيا وويل : اې رضوانه ! دجنت دروازه کلاوُ کړه ، ددې د پاره چې دا سخي اول جنت ته داخل شي ، او دا نور وروسته بيا روستو جنت ته داخل شي . (۱)

---

(۱) و روي أنّ النّبيَّ عليه السلام قال : إذا كان يومُ القيامة يؤتى باربعة نفرٍ عند بابِ الجنّة بغيرِ رؤيةِ الحساب والعذاب : الاول : العالمُ الّذي عمل بعلمه . والثاني : الحاج الّذي حجّ بغيرِ عمل الفساد . والثالث : الشّهيدُ الّذي قتل فى المعركة . والرابع : السّخيُّ الّذي اكتسبَ مالًا حلالًا وأنفقه في سبيل الله بغيرِ رياء . فينازع بعضُهم بعضًا لِدخولِ الجنّة أولًا . فيرسلُ اللهُ تعالى جبرائيلَ لِيَحكُمَ بينهم . فيسألُ أولًا الشّهيدَ . فيقول له : ما عملتَ فى الدّنيا وأنتَ تريدُ دخولَ الجنّة اَولًا ؟ فيقول : قتلتُ فى المعركة لرضى الله تعالى . فيقول : ممّن سمعتَ ثوابَ الشّهيدِ . فيقول : مِنَ العلمآءِ . فيقولُ : إحفَظِ الأدَبَ لاتتقدّم على مُعَلِّمِك . ثمّ يرفع رأسَه الى الحاج فيقول مثل ذلك . ثمّ الى السّخيّ فيقول مثل ذلك . ثمّ يقولُ العالمُ : إلهيْ مَا حَصَلْتُ العِلمَ إلّا بسخاوةِ السّخيِّ وَبِسَبَبِ إحْسَانِهِ . فيقولُ الله عزّ وجل صَدَقَ العَالِمُ يَا رِضْوَانُ . إفْتَحْ أبْوَابَ الجَنَّةِ حتّى يدخلَ السّخيُّ الجنّةَ وهؤلاء بَعْدَهُ . كذا في مشكوة الانوار ، درة الناصحين ص ۲۴ .

۴ . عمربن عبدالعزيز رحمه الله وايي :

اَلصَّلٰوةُ تبلغُکَ نِصفَ الطَّرِيْقِ ، وَالصَّوْمُ يبلغُکَ بَابَ المَلِکِ ، وَالصَّدَقَةُ تُدْخِلُکَ عَلَيْهِ . (۱)

لمونځ به تا نيمايي لارې پورې اُورسوي ، او روژه به دې د بادشاه ( الله ﷻ ) دروازې ته اُورسوي ، او صدقه به دې په بادشاه وَرداخل کړي ( او هغه ته به دې اُورسوي ) .

## صدقه الله ﷻ زياتوي

۱ . حضرت ابو هريرة رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل :

مَنْ تَصَدَّقَ بِعِدْلِ تمرَةٍ مِنْ كَسْبٍ طَيِّبٍ ـ وَلَا يَقْبَلُ اللهُ إِلَّا الطَّيِّبَ ـ فَإِنَّ اللهَ يَقْبَلُهَا بِيَمِيْنِهِ ، ثُمَّ يُرَبِّيْهَا لِصَاحِبِهَا كَمَا يُرَبِّيْ أَحَدُكُمْ مُهْرَهُ ، حَتَّى إِنَّ اللُّقْمَةَ لَتَصِيْرُ مِثْلَ أُحُدٍ ، وَتَصْدِيْقُ ذٰلِكَ فِيْ كِتَابِ اللهِ تَعَالٰى : ﴿ هُوَ يَقْبَلُ التَّوْبَةَ عَنْ عِبَادِهِ وَيَأْخُذُ الصَّدَقَاتِ (۲) ﴾ ، وَقَالَ تَعَالٰى : ﴿ يَمْحَقُ اللهُ الرِّبَا وَيُرْبِي الصَّدَقَاتِ (۳) ﴾ . (۴)

څوک چې د قجورې په مقدار ( په صورت يا قيمت کې ) د حلال مال نه صدقه ورکړي ، او ( په دې پوهه شئ چې ) الله تعالى صرف حلال مال قبلوي ، ځکه دغه صدقه الله تعالى په خپل لاس قبلوي ( يعنى د الله ﷻ په دربار کې کمالِ قبوليت ته رسي او د صدقه ورکوونکي نه ډير خوشحاليږي ) ، بيا الله تعالى دا صدقه د صدقه ورکوونکي د پاره داسې پالي ( او تربيت يې کوي ) لکه څرنګ چې په تاسو کې يو سړې د خپل اَس يا د خرورو کې بچې پالي ( يعنى الله ﷻ ددې صدقې ثواب ده د پاره مسلسل زياتوي ) تر دې پورې چې دا صدقه

(۱) المتجر الرابح في ثواب العمل الصالح ص ۱۳۶ ثواب الصدقة وفضلها ، نضرة النعيم ج٦ ص ۲۲۱٦ .

(۲) التوبة آيت ۱۰۴ .

(۳) البقرة آيت ۲۷٦ .

(۴) رواه البخاري ۲ / ۱۳۴ ، ۹ / ۱۵۴ ، واحمد ۲ / ۳۳۱ ، والبيهقي ۴ / ۱۷۷ . وَفِيْ رِوَايَةٍ لِابْنِ خُزَيْمَةَ : إِنَّ الْعَبْدَ إِذَا تَصَدَّقَ مِنْ طَيِّبٍ تَقَبَّلَهَا اللهُ مِنْهُ ، وَأَخَذَهَا بِيَمِيْنِهِ ، فَرَبَّاهَا كَمَا يُرَبِّيْ أَحَدُكُمْ فَلُوَّهُ حَتّٰى تَكُوْنَ مِثْلَ الْجَبَلِ . رواه احمد ۱۲ ۲٦۸ ، وابن خزيمة في صحيحه ۲۴۲٦ . المتجر الرابح ص ۱۳۳ .

(يا ددې ثواب) د غر په شان ډيره شي (نو د غه شان به الله ﷻ ددې صدقې ثواب هم زيات ورکړي ، او د قيامت په ورځ به يې په تله د ميزان کې دروند وګرځوي).

۲ . په يو بل حديث کې ذکر دي ، نبي کريم صلى الله عليه وسلم فرمايي :

إِنَّ اللهَ لَيُرَبِّي لِأَحَدِكُمُ التَّمْرَةَ وَاللُّقْمَةَ كَمَا يُرَبِّي أَحَدُكُمْ فَلُوَّهُ أَوْ فَصِيلَهُ حَتَّى تَكُونَ مِثْلَ أُحُدٍ. رواه الطبراني وابن حبان . (۱)

بيشکه الله تعالى ستاسو د صدقه شوې قجورو او نوړۍ داسې تربيت کوي لکه څرنګ چې په تاسو کې يو کس د خپل آس يا خرورکي بچي ، او د اوښې د بچي تربيت کوي (يعنى الله ﷻ دده دا صدقه دده د پاره همداسې مسلسل زياتوي) تر دې چې دا د أحد د غر هومره شي .

## د صدقې په برکت د ګناهونو نه توبه ګار کيدل

کله چې يو کس خالِصه د الله ﷻ د رضا او خوشحالۍ د پاره صدقه ورکړي نو دا بهر حال دده د پاره د ثواب ذريعه جوړيږي ، اګر که دده دانفلي صدقه په غلطۍ کې د يو ګناهګار لاس ته هم لاړه شي ، خو بيا به هم الله ﷻ دې صدقه ورکوونکي ته ددې اجر ورکوي ، او دده د اخلاص د برکته به الله ﷻ هغه صدقه اخيستونکې هم د ګناه نه منع کوي .

رسول الله ﷺ خپل امت ته د بني اسرائيلو يوه واقعه ذکر کړې ، کومه چې امام بخاري او امام مسلم رحمهما الله هم نقل کړې ، رسول الله ﷺ فرمايي :

---

(۱) رواه احمد ۲۵۱/۶ ، والهندي في الكنز ۱۶۰۲ ، والمنذري في الترغيب ۴/۲ . په يو بل روايت کې داسې الفاظ دي : إِنَّ الْعَبْدَ لَيَتَصَدَّقُ بِالْكِسْرَةِ تَرْبُو عِنْدَ اللهِ عَزَّ وَجَلَّ حَتَّى تَكُونَ مِثْلَ أُحُدٍ. رواه الهيثمي في المجمع ۱۱۰/۳ ، والمنذري في الترغيب ۴/۲ ، والهندي في الكنز ۱۵۹۳۱ ، ۱۶۱۲۴ . اَلْفَلُوُّ : بفتح الفاء وضم اللام وتشديد الواو وهو المهر كما جاء مفسّرًا عند الترمذي . وَالْفَصِيْلُ : ولد الناقة الى أن يفصل عن أمه . المعجم الرابع ص ۱۲۳ . وقيل : فَلُوَّهُ : بفتح الفاء وضم اللام وتشديد الواو وهو المهر لانه يفلي اي يفطم . وقيل : هو كل فطيم من ذات حافر . والجمع افلاء كعدو واعداء .

قَالَ رَجُلٌ لَأَتَصَدَّقَنَّ بِصَدَقَةٍ فَخَرَجَ بِصَدَقَتِهِ فَوَضَعَهَا فِي يَدِ سَارِقٍ فَأَصْبَحُوا يَتَحَدَّثُونَ تُصُدِّقَ اللَّيْلَةَ عَلَى سَارِقٍ . فَقَالَ : اَللّٰهُمَّ لَكَ الْحَمْدُ عَلَى سَارِقٍ . لَأَتَصَدَّقَنَّ بِصَدَقَةٍ فَخَرَجَ بِصَدَقَتِهِ فَوَضَعَهَا فِي يَدِ زَانِيَةٍ فَأَصْبَحُوا يَتَحَدَّثُونَ : تُصُدِّقَ اللَّيْلَةَ عَلَى زَانِيَةٍ . قَالَ : اَللّٰهُمَّ لَكَ الْحَمْدُ عَلَى زَانِيَةٍ لَأَتَصَدَّقَنَّ بِصَدَقَةٍ . فَخَرَجَ بِصَدَقَتِهِ فَوَضَعَهَا فِي يَدِ غَنِيٍّ فَأَصْبَحُوا يَتَحَدَّثُونَ : تُصُدِّقَ اللَّيْلَةَ عَلَى غَنِيٍّ . قَالَ : اَللّٰهُمَّ لَكَ الْحَمْدُ عَلَى سَارِقٍ وَزَانِيَةٍ وَغَنِيٍّ . فَأُتِيَ فَقِيلَ لَهُ : أَمَّا صَدَقَتُكَ عَلَى سَارِقٍ فَلَعَلَّهُ أَنْ يَسْتَعِفَّ عَنْ سَرِقَتِهِ . وَأَمَّا الزَّانِيَةُ فَلَعَلَّهَا أَنْ تَسْتَعِفَّ عَنْ زِنَاهَا . وَأَمَّا الْغَنِيُّ فَلَعَلَّهُ أَنْ يَعْتَبِرَ فَيُنْفِقَ مِمَّا أَعْطَاهُ اللهُ . رواه البخاري ومسلم . وَزَادَ فِيهِ : فَأُتِيَ فَقِيلَ لَهُ : أَمَّا صَدَقَتُكَ فَقَدْ قُبِلَتْ ثُمَّ ذَكَرَ بَقِيَّةَ الْحَدِيثِ . (۱)

يو ځل ( د بني اسرائيلو ) يو سړي په ځپل زړه کې ، يا خپل يو دوست ته وويل : چې زه به نن شپه د الله ﷻ په لاره کې څه مال خامخا خرچ کوم ، نو هغه ( دده قصد او ارادې مطابق ) څه مال اُوبښکلو ( چې يو مستحق ته يې ورکړي ) ، پس ده دا مال يو غَل ته ورکړو ( حالانکه ده ته دا معلومه نه وه چې ګني دا غَل دی ، او د خيرات مستحق نه دی ) . کله چې سهر شو نو خلقو ته د الهامِ خداوندي په وجه ، يا د غل د خپلې خُولې نه دا خبره معلومه شوه ، نو خلقو د تعجب د وجې خبرې شروع کړې چې : نن شپه يو غَل ته د صدقې مال ورکړې شوی دی .

( هر کله چې صدقه ورکوونکي ته هم حال معلوم شو نو ) هغه وويل : اې الله ﷻ ! تالره تعريف دی (۲) ( باوجود دده ) چې د صدقې مال يو غَل ته په لاس ورغی . بيا يې وويل : نن شپه به زه بيا صدقه ورکوم ( چې مستحِق ته حاصله شي ) ، نو هغه د صدقې په نيت سره بيا څه مال اُوبښکلو ، او ( دا ځل يې هم په غلط فهمۍ کې ) هغه مال يوې زِناکارې ښځې ته په لاس کې ورکړو .

---

(۱) رواه البخاري ۲ / ۱۳۷ ، ومسلم في الزكاة ۷۸ ، والنسائي ۵ / ۵۵ ، واحمد ۲ / ۳۲۲ ، والبيهقي ۴ / ۱۹۲ ، ۷ / ۳۴ ، مشكوة باب الانفاق وكراهية الامساك الفصل الثالث حديث نمبر ۱۸ .

(۲) دې صدقه ورکوونکي د الله ﷻ تعريف يا خو په طريقې د شکر اداء کړو : چې يا الله ! ستا شکر دی چې ما صدقه ورکړه اګر چې هغه غير مستحق ته په لاس ورغله ، او يا يې د تعجب په طور د خپل زړه د اطمينان د پاره د الله ﷻ تعريف اداء کړو .

کله چې سهر شو نو بيا خلقو خبرې شروع کړې چې نن شپه يوې زِناکارې ښځې ته د صدقې مال ورکړې شوی . نو هغه سړي وويل : اې الله ﷻ ! تا لره تعريف دی ( اګر که دا ځل ) د صدقې مال يوې زِناکارې ښځې ته په لاس ورغی . خو نن شپه به بيا صدقه ورکوم ، نو هغه بيا څه مال د صدقې په نيت اُوښکلو ، او ( دا ځل يې بيا په غلط فهمۍ کې ) دا مال د يو غني ( مالدار ) په لاس کې ورکړو ، کله چې سهر شو نو خلقو خبرې شروع کړې چې نن شپه يو مالداره ته د صدقې مال ورکړې شوی . نو هغه سړي وويل : اې الله ﷻ ! تا لره تعريف دی اګر که د صدقې مال غَل ، زانيې او غني سړي حاصل کړو .

کله چې دا سړې اُوده شو نو خُوب کې ده ته وويلې شو چې تا څومره صدقې ورکړې دي هغه ټولې قبولې شوې دي ، ځکه چې د صدقې کوم مال غَل ته ورکړې شوې دی ( هغه بې فائدې او د ثواب نه خالي نه دی ځکه ) ممکنه ده چې هغه دَ دې په وجه د غلا نه منع شي .

او د صدقې کوم مال چې زِناکارې ښځې ته ورکړې شوې دی ممکنه ده چې هغه دَ دې په وجه د زِنا نه منع شي .

او د صدقې کوم مال چې مالدار ته ورکړې شوی ممکنه ده چې هغه دَ دې په وجه عبرت حاصل کړي ، او الله تعالى چې هغه ته څه ورکړي دي هغه خرچ کړي .

**فايده** : نبي کريم صلى الله عليه وسلم د بني اسرائيلو دَ دې کس دا واقعه ځکه بيان کړه چې معلومه شي چې کله هم د الله تعالى د رضا په خاطر صدقه وزکړې شي نو هغه بهر حال د ثواب ذريعه ده ، ده ته به دَ دې ثواب ورکولې شي .

# صدقه افضل عمل دی

حضرت عمر رضي الله عنه فرمايي :

ذُكِرَ لِي أَنَّ الْأَعْمَالَ تَبَاهَى . فَتَقُوْلُ الصَّدَقَةُ : أَنَا أَفْضَلُكُمْ . (۱)

(۱) رواه ابن خزيمة في صحيحه والحاكم وقال صحيح على شرطهما ، الترغيب والترهيب ج۱ ( ۳۳ / ۶۰۷ ) ، المستطرف للابشهي ( ۱ / ۱۰ ) ، نضرة النعيم ج۶ ص ۲۵۲۸ الصدقه . وفي رواية : إِنَّ الْأَعْمَالَ تَبَاهَتْ . فَقَالَتِ الصَّدَقَةُ : أَنَا أَفْضَلُكُمْ . المستطرف للابشهي ، نضرة النعيم ج۶ ص ۲۵۲۸ الصدقه

ماته اُوخودې شو چې اَعمال په يو بل باندې فخر کوي ، صدقه وايي : زه په تاسو کې بهتريم.

## د صدقې ثواب څو څو چنده دی

۱ . د مشکوة شريف حديث دی ، په يوه موقع حضرت ابوذر رضی الله عنه د نبي عليه السلام نه پوښتنه وکړه :

يَا نَبِيَّ اللهِ! أَرَأَيْتَ الصَّدَقَةَ مَاذَا هِيَ ؟

اې د الله ﷻ رسوله ﷺ ! ماته اوښايئ چې صدقه څه شی دی ؟ ( يعنی د صدقې ثواب څومره دی ؟ )

رسول الله صلی الله عليه وسلم ورته وفرمايل :

أَضْعَافٌ مُضَاعَفَةٌ وَعِنْدَاللهِ الْمَزِيْدُ . (۱)

د صدقې ثواب څو څو چنده دی ، بلکه د الله تعالی په نزد ددې نه هم زيات دی .

**فايده** : د " أَضْعَافًا مُضَاعَفَةً " مقدار د احاديثو نه د لس (۱۰) چنده نه نيولې تر اووه سوه ( ۷۰۰ ) چنده پورې معلوميږي ، خو دا هم آخري حَد نه دی ځکه که الله تعالی په خپل خالص رحمت سره اوغواړي نو د صدقې ثواب د اووه سوه ( ۷۰۰ ) چنده نه هم زيات ورکوي. لکه الله رب العزت په خپله فرمايي :

﴿وَاللهُ يُضَاعِفُ لِمَنْ يَشَآءُ ...﴾ . (۲)

ترجمه : او الله تعالی چاته چې اوغواړي نو د هغه ثواب ( لاتعداده ) زياتوي . (۳)

بعضې علماء ددې حديث دا مطلب هم بيانوي چې الله ﷻ انسان ته په دُنيا کې هم ددې صدقې عِوَض څو څو چنده ورکوي ، لکه دا په معاشره کې ليدل شوې هم ده چې څوک هم په

---

(۱) رواه احمد ، مشکوة باب فضل الصدقة الفصل الثالث حديث نمبر ۳۹ .

(۲) البقرة آيت ۲۶۱ .

(۳) مظاهر حق شرح مشکوة .

اخلاص سره د الله ﷻ په لاره کې صدقه ورکوي نو الله ﷻ ددې عِوض په څو څو چنده ورکوي ، خو ددې د پاره اخلاص او يقين شرط دی . (۱)

۲ . يحيى بن معاذ فرمايي :

مَا أَعْرِفُ حَبَّةً تَزِنُ جِبَالَ الدُّنْيَا إِلَّا الْحَبَّةَ الَّتِيْ مِنَ الصَّدَقَةِ . (۲)

ما ته داسې دَانه نه ده معلومه چې هغه په وزن کې د دُنيا د غره هومره برابره وي مګر صرف هغه دَانه چې هغه صدقه کړې شي نو هغه د ثواب په اعتبار سره د الله ﷻ په نزد د دُنيا د غره نه هم په وزن کې درَنه ده .

## په اوو ( ۷ ) خصلتونو سره د صدقې اجر زياتيږي

فقيه ابو الليث ثمرقندي رحمه الله په "تنبيه الغافلين" کې ليکلي دي چې په اووه (۷) خصلتونو سره د صدقې ثواب زياتيږي :

۱ . صدقه ورکول د حلال مال نه . ځکه الله تعالى فرمايي :

﴿يَآ أَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا أَنْفِقُوْا مِنْ طَيِّبٰتِ مَا كَسَبْتُمْ﴾ . (۳)

ترجمه : اې مومنانو ! تاسو خرچ کړئ ( د الله ﷻ په لاره کې ) د هغه پاکيزه شيانو نه کوم چې تاسو ګټلي وي .

۲ . د لږ مال نه هم په بې تکلفۍ سره ورکول .

۳ . زريې ورکول ، ددې د پاره چې رانه پاتې نه شي .

۴ . د بُخل نه ځان صفا کول ، او د ښه او بهترين مال نه ورکړه کول . ځکه الله تعالى فرمايي : ﴿وَلَا تَيَمَّمُوا الْخَبِيْثَ مِنْهُ تُنْفِقُوْنَ وَلَسْتُمْ بِاٰخِذِيْهِ إِلَّآ أَنْ تُغْمِضُوْا فِيْهِ وَاعْلَمُوْٓا أَنَّ اللّٰهَ غَنِيٌّ حَمِيْدٌ﴾ . (۴)

---

(۱) معارف الحديث ج۴ ص ۳۲۰ .

(۲) المتجر الرابح في ثواب العمل الصالح ص ۱۳۶ ثواب الصدقة وفضلها .

(۳) البقرة آيت ۲۶۷ .

(۴) البقرة آيت ۲۶۷ .

ترجمه : او تاسو رَدي (بيکاره) شي ته اراده مه کوئ چې د هغې نه يې خرچ کړئ (يعنى بې کاره شى د الله ﷻ په لاره کې مه خرچ کوئ) حالانکه تاسو په خپله د هغې (رَدي شي) اخيستلو ته تيار نه يئ (چې څوک يې د يو واجب حق په بدله کې يا تحفه کې درکوي)، مګر که تاسو پرې سترګې پټې کړئ (او لحاظ يې وکړئ، او وايې خلى نو دا بيله خبره ده)، او پوهه شئ چې الله ﷻ بې نيازه (دى، هيچاته محتاج نه دى) او د تعريف لايق دى (نو د هغه په نامه داسې شى ورکوئ چې هغه هم ښه او د تعريف لائق وي).

٥. په پټه يې ورکړي. ددې د يَرې نه چې رِيا په کې رانشي.

٦. اِحسان ورباندې اونه کړي. ځکه په دې سره د صدقې اَجر باطليږي.

٧. چاته چې صدقه ورکوي هغه ته به ضرر نه رسوي، ځکه ضرر رسول ګناه ده او په دې سره هم د صدقې اجر باطليږي. الله تعالى فرمايي:

﴿يَآ أَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تُبْطِلُوْا صَدَقٰتِكُمْ بِالْمَنِّ وَالْاَذٰى ...﴾. (١)

ترجمه : اې مومنانو! (تاسو ثواب د) خپلې صدقې په زباتلو (يادګيرتې) او تکليف رسولو باندې مه ضايع کوئ. (٢)

## غريبو خپلوانو ته د صدقې ورکولو اَجر

نفلي صدقات انسان هر يو غريب رِشته دار ته ورکولې شي، ليکن فرضي زکوة اصولو او فروعو ته نشي ورکولى، دغه رنګې ښځه او خاوند يې په خپل مينځ کې يو بل ته نشي ورکولى. البته نفلي صدقات خپلوانو ته ورکولې شي، او ددې اَجر هم زيات دى، ځکه يو خو د صدقې اَجر شو، او دويم د صِله رحمى اَجر شو.

١. الله رب العزت فرمايي: ﴿ فَاٰتِ ذَا الْقُرْبٰى حَقَّهٗ وَالْمِسْكِيْنَ وَابْنَ السَّبِيْلِ ذٰلِكَ خَيْرٌ لِّلَّذِيْنَ يُرِيْدُوْنَ وَجْهَ اللّٰهِ وَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ ﴾. (٣)

---

(١) البقرة آيت ٢٦٤.

(٢) تنبيه الغافلين باب ٣٦ باب فضيلة الصدقة.

(٣) الروم آيت ٣٨. همدغه شان مضمون په سورة بقرة کې هم ذکر دى. الله تعالى فرمايي: ﴿وَاٰتَى الْمَالَ عَلٰى حُبِّهٖ ذَوِى الْقُرْبٰى وَالْيَتٰمٰى وَالْمَسٰكِيْنَ ...﴾. البقرة آيت ١٧٧.

ترجمه: پس ته خپل رِشته دار ته، مسکينانو ته، او مسافرو ته د هغوی حق ورکوه، همدا خبره د هغو خلقو د پاره ډیره غوره ده څوک چې د الله ﷻ رضا غواړي، او همدا خلق کامياب دي.

۲. بل ځای الله تبارک وتعالى فرمايي:

﴿قُلْ مَآ أَنفَقْتُم مِّنْ خَيْرٍ فَلِلْوَالِدَيْنِ وَالْأَقْرَبِينَ وَالْيَتَامَىٰ وَالْمَسَاكِينِ وَابْنِ السَّبِيلِ ۗ وَمَا تَفْعَلُوا مِنْ خَيْرٍ فَإِنَّ اللَّهَ بِهِ عَلِيمٌ﴾. (۱)

ترجمه: (اې پيغمبره!) ته ورته ووايه: تاسو چې کوم مال خرچ کوئ نو هغه د مور او پلار، خپلو خپلوانو، يتيمانو، او مسکينانو حق دی (دوی ته يې ورکوئ)، او تاسو چې کومه نيکي (او ښيګړه) کوئ نو بيشکه الله تعالى په هغې ښه پوهه دی.

۳. د ترمذي شريف حديث دی، رسول الله ﷺ فرمايي:

اَلصَّدَقَةُ عَلَى الْمِسْكِيْنِ صَدَقَةٌ وَعَلَى ذِي الرَّحِمِ ثِنْتَانِ: صَدَقَةٌ وَصِلَةٌ. (۲)

مسکين ته صدقه ورکول يوه صدقه ده (يعنې صرف د صدقې ثواب پرې حاصليږي) او خپلو خپلوانو ته صدقه ورکول د دوچند ثواب باعث دی: يو د صدقې ثواب، او دويم د صله رحمۍ ثواب (يعنې خپلوانو سره د حُسنِ سلوک ثواب).

۴. په احاديثو کې خو تر دې پورې راغلي چې که چيرته يو سړی په خپل اولاد او خپل ځان باندې خرچ کوي او نيت يې صحيح وي نو دا هم په صدقه کې حسابيږي.

د بخاري شريف حديث دی، نبي عليه السلام فرمايي:

---

(۱) البقرة آيت ۲۱۵.

(۲) رواه الترمذي وحسّنه والنسائي وابن خزيمة وابن حبان و الهيثمي ۳/ ۱۱۶ .الترغيب والترهيب ج۱ (۲/ ۶۲۰)، ورواه الحاكم وقال: صحيحُ الاسناد، إلا انّ ابنَ خزيمةَ قال: اَلصَّدَقَةُ عَلَى الْمِسْكِيْنِ صَدَقَةٌ وَعَلَى الْقَرِيْبِ صَدَقَتَانِ: صَدَقَةٌ وَصِلَةٌ. المتجر الرابح ص ۳۳۲ ثواب الصدقة على الزوج والاقارب ./ وفي رواية: أَفْضَلُ الصَّدَقَةِ اَلصَّدَقَةُ عَلَى ذِي الرَّحِمِ الْكَاشِحِ. رواه الطبراني وابن خزيمة والحاكم، وقال: صحيح على شرط مسلم. ورواه احمد ۳/ ۴۰۲، والهيثمي في المجمع ۳/ ۱۱۶، والحاكم ۱/ ۴۰۶، والمنذري ۲/ ۳۷، ۳/ ۱۴۱. اَلْكَاشِحُ: هو المضمر العداوة والمقاطعة في كشحه وهو خصره. المتجر الرابح ص ۳۳۲.

إِذَا أَنْفَقَ الرَّجُلُ عَلَى أَهْلِهِ نَفَقَةً وَهُوَ يَحْتَسِبُهَا كَانَتْ لَهُ صَدَقَةً . (۱)

کله چې يو سړی په خپل اَهل (يعنی ښځې او خپلوانو) باندې خرچ کوي او دا په دې کې د ثواب توقع لري نو دده دا خرچ به دده د پاره (مقبوله) صدقه وي.

**فايده** : په خپل اهل وعيال باندې خو هر سړی د خپل وَس مناسب خرچ کوي خو خلقو ته دا د ثواب کار نه معلومېږي، بلکه دا يو تاوان، مجبوري او د نفس تقاضا ګڼي، خو رسول الله صلی الله عليه وسلم خپل اُمت ته دا اُوخودله چې که چيرته يو انسان په خپل بال بچ باندې د ثواب په نيت او د الله ﷻ د رضا د پاره خرچ کوي نو په دې سره هم ده ته اَجر و ثواب ملاوېږي، او دا هم دده د پاره د آخرت ذخيره جوړېږي. (۲)

۵. په يو حديث کې ذکر دي، نبي عليه السلام فرمايي:

مَا أَطْعَمْتَ نَفْسَكَ فَهُوَ لَكَ صَدَقَةٌ ، وَمَا أَطْعَمْتَ زَوْجَكَ فَهُوَ لَكَ صَدَقَةٌ ، وَمَا أَطْعَمْتَ خَادِمَكَ فَهُوَ لَكَ صَدَقَةٌ . (۳)

تا چې په خپل ځان کوم خوراک وکړو نو داهم ستا د پاره صدقه ده، او تا چې په خپله بي بي کوم خوراک وکړو نو دا هم ستا د پاره صدقه ده، او تا چې په خپل خادِم کوم خوراک وکړو نو دا هم ستا د پاره صدقه ده. (يعنی په دې ټولو صورتونو کې به تاته د صدقې ثواب حاصلېږي).

## د صدقې ثواب هميشه باقي پاتې وي

د ترمذي شريف حديث دی، حضرت عائشه رضی الله عنها فرمايي:

اِنَّهُمْ ذَبَحُوا شَاةً . فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : مَا بَقِيَ مِنْهَا ؟ قَالَتْ : مَا بَقِيَ إِلَّا كَتِفُهَا .

---

(۱) رواه البخاري الايمان ۳۷، ومسلم . وَفِيْ رِوَايَةٍ : وَإِنَّكَ لَنْ تُنْفِقَ نَفَقَةً تَبْتَغِيْ بِهَا وَجْهَ اللهِ إِلَّا أُجِرْتَ عَلَيْهَا حَتَّى مَا تَجْعَلُ فِيْ فِيْ اِمْرَأَتِكَ . رواه البخاري الايمان ۳۷ .

(۲) معارف الحديث ج۳ ص ۳۳۳ .

(۳) قال في المجمع (۳/ ۱۱۹) رواه احمد ورجاله ثقات ، رواه احمد ۴/ ۱۳۱ ، والبيهقي ۴/ ۱۷۹ .

قَالَ : بَقِيَ كُلُّهَا غَيْرَ كَتِفِهَا . (۱)

يو ځل صحابه كرامو يا اهلِ بَيتو يوه ګډه ذبح كړه ، هركله چې د هغې غوښه تقسیم شوه نو نبي علیه السلام وفرمایل : د چیلۍ نه څه باقي پاتې شوي دي ؟

حضرت عائشې رضی الله عنها ورته وفرمایل : د اُولي (لیچي ، مټ) نه علاوه نور څه نه دي پاتې شوي (یعنی نوره ټوله غوښه تقسیم شوی ، صرف اُولې پاتې دی) .

نبي علیه السلام وفرمایل : د اُولي (لیچي) نه علاوه نوره ټوله باقي پاتې ده .

یعنی اصل کې غوښه هغه باقي ده کومه چې په فقیرانو تقسیم شوی ځکه د هغې ثواب زمونږ د پاره د الله ﷻ سره محفوظ دی ، او دا کومه حصه (اُولې) چې په کور کې پاتې دی نو دا خو فاني دی ، د خوراک نه روستو به ختم شي .

دې خبرې ته په دې آیتِ مبارکه کې هم اشاره ده ، الله تعالی فرمایي :

﴿ مَا عِنْدَكُمْ يَنْفَدُ وَمَا عِنْدَ اللهِ بَاقٍ ﴾ . (۲)

ترجمه : څه چې د تاسو سره دي هغه ټول فاني دي ، او څه چې د الله ﷻ سره دي هغه باقي پاتې کیدونکي دي .

## په صدقه کې بهترین او غوره مال ورکول

صدقه خو د انسان د پاره د قیامت ذخیره وي ، چې دا به په قبر او د قیامت په سخته ورځ کې د انسان په کار راځي ، لهذا د الله ﷻ په نوم داسې مال صدقه کول په کار دي چې هغه بهترین او غوره وي ، نو دا به د ډیر ثواب ذریعه وي .

۱. الله تعالی فرمایي :

﴿ لَنْ تَنَالُوا الْبِرَّ حَتّٰى تُنْفِقُوْا مِمَّا تُحِبُّوْنَ ﴾ . (۳)

---

(۱) رواه الترمذي وصححه ج۴ ص ۲۲۵ حدیث ۲۴۷۰ باب ۳۳ ، مشکوة باب فضل الصدقة الفصل الثاني حدیث ۳۱ .

(۲) النحل آیت ۹۶ .

(۳) آل عمران آیت ۹۲ .

ترجمه : تاسو به هيڅ کله نيکي حاصله نه کړې شئ تر څو پورې چې تاسو خرچ نه کړئ له هغه شي نه کوم چې تاسو خوښوئ . (يعنى تر څو پورې مو چې د ټولو نه غوره شى نه وي خيرات کړى تر هغې پورې به جنت ته داخل نه شى ) .

۲. بل ځاى الله رب العزت فرمايي :

﴿يَآ أَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْآ أَنْفِقُوْا مِنْ طَيِّبٰتِ مَا كَسَبْتُمْ وَمِمَّآ أَخْرَجْنَا لَكُمْ مِّنَ الْأَرْضِ وَلَا تَيَمَّمُوا الْخَبِيْثَ مِنْهُ تُنْفِقُوْنَ.. ﴾ . (۱)

ترجمه : اې مومنانو ! تاسو (د الله ﷻ په لاره کې ) د هغه پاکيزه مالونو نه خرچ کوئ کوم چې تاسو ګټلي دي ، او کوم چې ما تاسو د پاره د زمکې نه راټوکولي دي ، او تاسو د الله ﷻ په نوم د خراب مال د خرچ کولو قصد مه کوئ ..

# د حضرت ابو طلحة رضی الله عنه د سخاوت جذبه

حضرت انس رضى الله عنه فرمايي : چې حضرت ابوطلحه رضى الله عنه د مدينې په اَنصارو کې د کجورو د باغونو په اعتبار سره ډير مالدار وُ (يعنى د قجورو باغونه يې ډير وو ) ، او ده ته په خپل مال کې د ټولو نه ډير محبوب " بَيْرُحَا " نومې باغ وُ ، کوم چې د مسجدِنبوي ﷺ بالکل مخامخ وُ ، (او ډير قيمتي باغ وُ ) . نبي عليه السلام به اکثر دې باغ ته تشريف وړلو ، او د هغه ځاى اُوبه به يې (په شوق ) څکلى ، چې ډيرې ښې (يعنى خوږې ، حلالې او پاکې ) وى .

حضرت انس رضی الله عنه فرمايي چې کله دا آيت نازل شو :

﴿لَنْ تَنَالُوا الْبِرَّ حَتّٰى تُنْفِقُوْا مِمَّا تُحِبُّوْنَ ﴾ . (۲)

ترجمه : تاسو هرګز نيکى (يعنى جنت او اُوچت مقام ) ته تر هغه وخته پورې نه شى رسيدى تر څو پورې چې تاسو هغه څيز خرچ نه کړئ کوم چې ستاسو ډير خوښ وي .

(۱) البقرة آيت ۲۶۷ .

(۲) آل عمران آيت ۹۲ .

نو ابو طلحه رضي الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم په خدمت کې حاضر شو، او عرض يې وکړو: اې د الله جل جلاله رسوله صلی الله علیه وسلم! بيشکه الله تعالى فرمايي: ﴿لَنْ تَنَالُوا الْبِرَّ حَتَّى تُنْفِقُوا مِمَّا تُحِبُّونَ﴾ نو "بَيْرَحَا" باغ ماته په ټولو مالونو کې ډير خوښ دی (۱)، زه دا د الله تعالى د پاره صدقه کوم، او ددې آيت پيشِ نظر زه د الله جل جلاله نه د نيکۍ او ثواب اميد لرم، او اميد واريم چې دا به زما د پاره د آخرت ذخيره جوړه شي، پس اې د الله جل جلاله رسوله صلی الله علیه وسلم! تاسو دا قبول کړئ، او کوم ځاى چې تاسو مناسب ګڼئ هلته يې خرچ کړئ.

نبي عليه السلام ورته وفرمايل: بَخٍ بَخٍ. (۲) واه واه، دا باغ څومره د ګټې واله مال دی، او تا چې څه ويل هغه ما واوريده، زه مناسب دا ګڼم چې ته دا مال په خپلو محتاجو خپلوانو باندې صدقه کړې (چې د صدقې ثواب سره سره درته د صِله رَحمۍ ثواب هم حاصل شي). ابوطلحة رضي الله عنه وفرمايل: اې د الله جل جلاله رسوله صلی الله علیه وسلم! ستاسو د اِرشاد مطابق به عمل کوم نو ابو طلحة رضي الله عنه هغه باغ په خپلو خپلوانو او د تره په زامنو تقسيم کړو. (۳)

---

(۱) "بَيْرَحَا": حديقة نخل، وروي بكسر الباء "بِيْرَحَا" وفتحها "بَيْرَحَا". رياض الصالحين ج۱ باب الانفاق مما يحب ومن الجيد. / وقيل: بَيْرُحَاءَ بكسر الباء وفتحها وبالمد "بَيْرَحَآء" هي اسمٌ لحديقة نخل كانت لأبي طلحة رضى الله عنها. المتجر الرابح في ثواب العمل الصالح ص ۱۳۲.

(۲) بَخْ: بفتح الموحدة وسكون المعجمة. وقد تنون مع الثقيل والتخفيف بالكسر والرفع ويحذف التنوين. ومعناها تفخيم الأمر والإعجاب. ونظيرها في الهندية: واه واه. فتح الملهم شرح صحيح مسلم ج۵ ۶۰.

(۳) عَنْ أَنَسٍ رضي الله عنه قَالَ: كَانَ أَبُوطَلْحَةَ أَكْثَرَ الْأَنْصَارِ بِالْمَدِينَةِ مَالًا مِنْ نَخْلٍ، وَكَانَ أَحَبُّ أَمْوَالِهِ إِلَيْهِ بَيْرُحَاءَ، وَكَانَتْ مُسْتَقْبِلَةَ الْمَسْجِدِ، وَكَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدْخُلُهَا وَيَشْرَبُ مِنْ مَاءٍ فِيهَا طَيِّبٍ. قَالَ أَنَسٌ: فَلَمَّا نَزَلَتْ هٰذِهِ الْآيَةُ: ﴿لَنْ تَنَالُوا الْبِرَّ حَتَّى تُنْفِقُوا مِمَّا تُحِبُّونَ﴾ قَامَ أَبُوطَلْحَةَ إِلَى رَسُولِ اللهِ صلی الله علیه وسلم. فَقَالَ: يَارَسُولَ اللهِ! إِنَّ اللهَ تَعَالَى يَقُولُ: ﴿لَنْ تَنَالُوا الْبِرَّ حَتَّى تُنْفِقُوا مِمَّا تُحِبُّونَ﴾ وَإِنَّ أَحَبَّ مَالِي إِلَيَّ بَيْرُحَاءَ، وَإِنَّهَا صَدَقَةٌ لِلّٰهِ تَعَالَى. أَرْجُوا بِرَّهَا وَذُخْرَهَا عِنْدَ اللهِ فَضَعْهَا يَارَسُولَ اللهِ حَيْثُ أَرَاكَ اللهُ. فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صلی الله علیه وسلم: بَخٍ بَخٍ ذٰلِكَ مَالٌ رَابِحٌ. وَسَمِعْتُ مَاقُلْتَ وَإِنِّي أَرَى أَنْ تَجْعَلَهَا فِي الْأَقْرَبِينَ. فَقَالَ أَبُوطَلْحَةَ: أَفْعَلُ يَارَسُولَ اللهِ. فَقَسَمَهَا أَبُوطَلْحَةَ فِي أَقَارِبِهِ وَبَنِي عَمِّهِ. رواه مسلم في الزكاة ۴۲، والبخاري باب الزكاة على الاقارب ج۲ ص ۱۱۹ حديث ۱۴۶۱ وفي الوصايا ۶۱ وفي الاشربة ۱۹۹، مشكوة باب افضل الصدقة الفصل الثالث حديث ۱۷.

**فايده** : په بعضو رواياتو کې څه تفصيل شته چې حضرت ابو طلحة ﷜ د نبي عليه السلام د هدايت مطابق په خپلو خاصو خپلوانو : اُبيّ بن کعب ﷜، حسان بن ثابت ﷜، شداد بن اوس او په نبيط بن جابر باندې تقسيم کړو . او دا دومره قيمتي باغ وُ چې بيا روستو حضرت معاوية ﷜ د حضرت حسان بن ثابت ﷜ نه صرف د ده حصه باغ په يو لک درهمه واخيسته، نو غونډ باغ خو به ډير قيمتي وُ ، ليکن د حضرت ابو طلحة ﷜ په زړه کې د الله ﷻ محبت او دومره سخاوه چې دا ټول باغ يې صدقه کړو . (۱)

## د حضرت طلحه ﷜ د سخاوت نور واقعات

۱ . د حضرت طلحة ﷜ بي بي حضرت سعدی بنت عوف رضي الله عنها فرمايي چې يوه ورځ زه په حضرت طلحة ﷜ باندې راداخله شوم نو دې ډير خفه وُ ، ما ورنه پوښتنه وکړه چې ولې دومره خفه يې ؟ هغه راته ووئيل : د ماسره ډير مال جمع شوی چې د هغې په وجه پريشانه يم .

ما ورته ووئيل : مه خفه کيږه، خپل قوم او خپلوان راجمع کړه او په هغوی باندې دا مال تقسيم کړه . هغه ووئيل : ډيره ښه ده ، خپل غلام يې ولېږل ، ده خپلوان او قوم يې راجمع کړو، او په هغوی کې يې دا مال ټول تقسيم کړو .

ما د هغه خادم نه پوښتنه وکړه : چې دا څومره مال وُ چې ده تقسيم کړو ؟ هغه راته ووئيل: څلور لکه ( ۴۰۰۰۰۰ ) درهمه وو . (۲)

۲ . امام غزالي رحمه الله په احياء العلوم کې ذکر کړي چې حضرت ابو طلحة ﷜ ته يو دوست راغی او ده دروازه يې اُوټکوله ، کله چې دې ورله راووت ، پوښتنه يې ورنه وکړه :

(۱) معارف الحديث ج۴ ص ۳۳۷ .

(۲) وقالتْ سعدى بنت عوف : دخلتُ على طلحة فرأيتُ منه ثِقَلًا فقلتُ له : مَالَكَ ؟ فقال : اِجتَمَعَ عندي مالٌ وقد غمّني، فقلتُ و ما يغمّك ادعُ قومك ؟ فقال : يا غلام عليّ بقومي . فقسمه فيهم . فسألتُ الخادمَ كم كان ؟ قال : أربعمائة الف . اخرجه الحاكم ، احياء العلوم ج ۳ ص ۳۳۷ كتاب ذم البخل و ذم حب المال .

څنګه راغلی يې ؟ هغه ورته وويل : په ما باندې څلور سوه (۴۰۰) درهمه قرضه ده . دې کورته لاړو ، څلور سوه درهمه يې راواخيست او راغی دې کس ته يې ورکړه .

کله چې کورته راغی نو ژړل يې ، بي بي ورته وويل : چې کله درته درهم ورکول دومره ګران معلوميده نو بيا دې ولې ورکول ؟ ده ورته وويل : د درهمو پسې نه ژاړم ، بلکه ددې د وجې ژاړم چې ماته څنګه ددې کس حال تر اوسه معلوم نه ؤ چې دې آخر دې ته مجبوره شو چې زما دروازې ته راغی (بلکه په کار دا وه چې ما دده حالت دمخکې نه معلوم کړې وی او دده ضرورت مې پوره کړې وی ، او دې زما دروازې ته په راتلو نه وې مجبوره شوی) . (۱)

۳. حضرت حسن رحمه الله وايي چې حضرت ابو طلحة ﷜ خپله يو زمکه په حضرت عثمان ﷜ باندې په اووه لکه (۷۰۰۰۰) درهمه باندې خرڅه کړه ، کله چې دا درهم ده ته راغله نو سوچ يې وکړو چې که دا مال د ماسره تړوله شپه پاتې شي او په دې حالت کې ماله مرګ راشي نو زما به څه حالت وي ؟ نو د خپلو خادمينو په ذريعه يې تړوله شپه دا درهم د مدينې منورې په فقيرانو ، مسکينانو او کونډو باندې تقسيمولی ، تر دې پورې چې د سهر په وخت دده سره يو درهم هم باقي پاتې نه شو (۲)

۴. د حضرت طلحة ﷜ بي بي حضرت سعدی رضی الله عنها وايي چې حضرت طلحة ﷜ يوه ورځ يو لک درهم صدقه کړه ، بيا (دده دسادګۍ دا حالت ؤ چې) په دغه ورځ جُمات ته صرف ددې د وجې لا نه رو چې کپړې يې شليدلې وی هغه يې ځان له ګنډلی . (۳)

(ديته سخاوت وايي چې يو لک درهم يې نورو ته ورکړه او په ځان باندې يې هيڅ هم اونه لږول) .

---

(۱) وأتى رجل صديقًا له فدق عليه الباب فقال : مَاجَاءَ بِكَ ؟ قال : عليّ أربعمائة درهم دَين . فوزن أربعمائة درهم وأخرجها إليه . وعاد يبكي . فقالت امرأته : لم أعطيته إذ شقّ عليك ؟ فقال : إنّما أبكي لأنّي لم أتفقد حاله حتى احتاج الى مفاتحتي . احياء العلوم ج۳ ص ۳۳۷ کتاب ذم البخل و ذم حب المال .

(۲) اخرجه ابونعيم ، الترغيب والترهيب لليافعي ۸۸ .

(۳) اخرجه ابونعيم في الحلية ، الترغيب والترهيب لليافعي ۸۹ .

۵. يو کرت حضرت ابوطلحة رضی الله عنه ته يو اَعرابي راغی او څه يې ورنه او غوښته ، ده ورته وويل : ما د حضرت عثمان رضی الله عنه يوه زمکه په درې لکه (۳۰۰۰۰۰) درهمه اخيستی ، نو اوس ستا خوښه ده که دا زمکه اخلې ، او که دا زمکه په هغه باندې واپس خرڅه کړم او تاله نغدې روپۍ درکړم ؟ دې اعرابي فقير ورته وويل : زما نغدې روپۍ په کار دي ، نو حضرت ابوطلحة رضی الله عنه دا زمکه په حضرت عثمان رضی الله عنه خرڅه کړه او دې فقير ته يې نغدې روپۍ ورکړې . (۱)

## د حضرت ابوبکر صديق رضی الله عنه او حضرت عمر رضی الله عنه صدقه

۱. د ابوداؤد شريف حديث دی ، حضرت عمر رضی الله عنه فرمايي چې يو کرت نبي کريم صلی الله عليه وسلم مونږ ته د صدقې کولو حکم وکړو ، په دغه وخت کې د ما سره مال ډير ؤ ، ما د ځان سره وويل چې نن ورځ خو به زه د حضرت ابوبکر صديق رضی الله عنه نه مخکې کيږم ، نو خپل ټول نيم مال مې راواخيست ، او د رسول الله صلی الله عليه وسلم په خدمت کې مې پيش کړو ، نبي عليه السلام رانه پوښتنه وکړه :

مَا أَبْقَيْتَ لِأَهْلِكَ ؟ کور واله ته دې څومره مال پريښود ؟

ما ورته وويل : نيم مال مې پريښود .

د دې نه پس حضرت ابوبکر صديق رضی الله عنه خپل ټول مال د ځان سره راوړو ، او د نبي عليه السلام په خدمت کې يې پيش کړو ، پيغمبر عليه السلام د هغه نه پوښتنه وکړه :

مَا أَبْقَيْتَ لِأَهْلِكَ ؟ کور واله ته دې څومره مال پريښود ؟

هغه ورته وويل :

أَبْقَيْتُ لَهُمُ اللهَ وَرَسُوْلَهُ . ما خپل کور واله د پاره صرف الله جل جلاله او د هغه رسول پريښود .

حضرت عمر رضی الله عنه فرمايي چې ما حضرت ابوبکر صديق رضی الله عنه ته وويل :

(۱) احياء العلوم ج۳ ص ۲۳۷ کتاب ذم البخل و ذم حب المال .

لَا أُسَابِقُكَ إِلَى شَيْءٍ أَبَدًا .

زه به اوس آینده د تانه په هیڅ شي کې د مخکې کیدو مقابله او نه کرم . (۱)

۲ . حضرت ابوبکر صدیق ﷺ چې کله اسلام قبول کړو نو د څلویښتو زرو درهمو مالک ؤ ، خو ده دا ټول رقم د الله ﷻ په لاره کې خرچ کړه . (۲)

۳ . دغه رنګې ډیر غلامان یې د اخیستو نه روستو آزاد کړه په کومو کې چې د حضرت بلال ﷺ او عامر بن فصیره ﷺ په شان جلیل القدر صحابه کرام هم شامل دي . (۳)

۴ . حضرت ابوهریرة رضی الله عنه فرمایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم یو کرت ارشاد اوفرمایه چې " د هیچا مال ماته دومره فایده نه ده رارسولی څومره چې د حضرت ابوبکر صدیق ﷺ مال ماته نفع رارسولی ده " . دد ې خبرې په اوریدو سره حضرت ابوبکر صدیق ﷺ اوژړل ، او عرض یې وکړو : اې د الله ﷻ رسوله ﷺ ! زه او زما مال خو صرف ستاسو د پاره دی . (۴)

## د حضرت عثمان ﷺ صدقه

حضرت عثمان ﷺ ته الله ﷻ ډیر مال و دولت ورکړې ؤ ، خو د هغه په زړه کې د مال محبت نه ؤ ، هغه به په هره موقع خپل مال د الله ﷻ د رضا د پاره خرچ کولو .

(یو څو نمونې ستاسو د وړاندې پیش کوم) :

(۱) عَنْ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ ـ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ـ أَنَّهُ قَالَ : أَمَرَنَا رَسُوْلُ اللهِ ﷺ يَوْمًا أَنْ نَتَصَدَّقَ ، فَوَافَقَ ذٰلِكَ مَالًا عِنْدِيْ ، فَقُلْتُ : الْيَوْمَ أَسْبِقُ أَبَابَكْرٍ إِنْ سَبَقْتُهُ يَوْمًا . فَجِئْتُ بِنِصْفِ مَالِيْ . فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : مَا أَبْقَيْتَ لِأَهْلِكَ ؟ فَقُلْتُ : مِثْلَهُ . قَالَ : وَأَتَىٰ أَبُوْبَكْرٍ ـ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ـ بِكُلِّ مَا عِنْدَهُ . فَقَالَ لَهُ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : مَا أَبْقَيْتَ لِأَهْلِكَ ؟ قَالَ : أَبْقَيْتُ لَهُمُ اللهَ وَرَسُوْلَهُ . فَقُلْتُ : لَا أُسَابِقُكَ إِلَى شَيْءٍ أَبَدًا . اخرجه ابوداود ( ۱۶۷۸ ) ، وقال الالباني : حسن ( ۱ / ۳۱۵ ) ، والترمذي ( ۳۶۷۵ ) . نضرة النعيم ج۲ ص ۱۵۰۹ الجود .

(۲) الترغيب والترهيب للیافعي ۸۷ .

(۳) مكارم الاخلاق .

(۴) اسد الغابة ۳ / ۲۲۲ .

### ۱. د "بيرِ رومه" اخيستل او صدقه کول :

"بير رومه" يو کوهي ؤ ، او دا کوهي د يو يهودي ملکيت ؤ ، د غه وخت مسلمانانو ته د اُوبو ډير مشکلات وو ، دوی به د دې يهودي نه اُوبه په بيعه اخيستې .

کله چې حضرت عثمان ﷺ ته معلومه شوه چې مسلمانانو ته د اُوبو په حاصلولو کې ډير مشکلات دي نو دې يهودي ته ورغلو او ورته وې ويل : دا کوهي په ما باندې راخرڅ کړه ، هغه ورته وويل : زه خو په دې باندې ډيرې روپۍ ګټم ، دا نه خرڅوم .

کله چې حضرت عثمان ﷺ د يهودي جواب واوريده نو ورته وې ويل : ته نيم کوهي په ما راخرڅ کړه او قيمت را نه د پوره کوهي واخله .

( چونکه د اهلُ الله سره ډيره پوهه وي ، الله ﷻ ورته فِراست ورکړې وي ) .

يهودي چې د حضرت عثمان ﷺ خبره واوريده نو وې ويل : صحيح ده ، د کوهي نيم حق ستا شو خو قيمت پوره راکړه . حضرت عثمان ﷺ قيمت پوره ورکړو او نيم کوهي يې ورنه واخيست . يهودي ورته وويل : يوه ورځ به ستا نمبر وي ، ته اُوبه رااُوباسه ، او بله ورځ به زما نمبر وي ، زه به اُوبه رااُوباسم .

کله چې حضرت عثمان ﷺ يهودي ته روپۍ ورکړې نو عام اِعلان يې وکړو چې زما په نمبر کې دې مسلمانان او کافران ټول بغير د قيمت اداء کولو نه مفت اُوبه وړي .

کله چې خلقو ته په يوه ورځ مفت اُوبه ملاويدل شروع شو نو په دويمه ورځ بيا په بيعه اخيستو واله هيڅوک هم نه وو .

يهودي يو څو مياشتې پس راغی ، او حضرت عثمان ﷺ ته يې وويل : تاسو د مانه دا باقي کوهي هم واخلئ ( ځکه د ما نه خو هيڅوک هم په روپو باندې اُوبه نه اخلي ) .

نو حضرت عثمان ﷺ د ا باقي نيم کوهي هم واخيستلو او ټول يې د الله ﷻ د رضا د پاره وقف کړ . (۱)

---

(۱) وَاشْتَرَى عُثْمَانُ ﷺ بِئْرَ رُومَةَ بِعِشْرِيْنَ أَلْفًا وَسَلَبَهَا لِلْمُسْلِمِيْنَ . نزهة الناظرين فى الاخبار والآثار المرويّة عن الانبياء والصالحين ص ۲۰۰ .

### ۲ . د غزوه تبوکٔ په موقع سخاوت :

د غزوه تبوک په موقع باندې حضرت عثمان ﵁ د يوې مثالي قرباني ثبوت پيش کړې ؤ، ده درې سوه (۳۰۰) أوښان د سازو سامان سره ټول صدقه کړه ، او بيا يې زر (۱۰۰۰) اشرفۍ د نبي کريم صلى الله عليه وسلم په خدمت کې پيش کړی .

راوي وايي چې رسول الله ﷺ د حضرت عثمان ﵁ ددې سخاوت نه دومره خوشحاله ؤ، چې هغه اشرفۍ يې په لاس کې اَړولې راړولی ، او دايې فرمايل :

مَا ضَرَّ ابْنُ عَفَّانَ مَا فَعَلَ بَعْدَ هٰذَا .

د نن نه پس چې حضرت عثمان ﵁ څه کار هم کوي ده ته به هيڅ نقصان نه رسي . يعنی ددې صدقې د قبوليت په برکت به ده ته د کامِل خير توفيق نصيبه کيږي . (۱)

### ۳ . د قحط سالۍ په وخت د حضرت عثمان ﵁ سخاوت :

حضرت ابن عباس رضی الله عنهما فرمايي چې يو کال قحط سالي راغله ، د خوراک ذخيره ختمه شوه ، خلق د حضرت ابوبکر صديق ﵁ په خدمت کې حاضر شو ، او ددې ذکر يې ورته وکړو ، ده ورته وويل چې صبا به انشاء الله ستاسو دا تکليف ختم شي .

په صبا باندې د شام نه د حضرت عثمان ﵁ د سلو (۱۰۰) أوښانو قافله راورسيده چې سل واړه أوښان د غلې نه بار (ډک) وو . د مدينې منورې تاجران راجمع شو ، او ورته وې

(۱) مکارم الاخلاق . د ابن سعد د روايت مطابق په غزوه تبوک کې ديرش زره (۳۰۰۰۰) پياده صحابه ، او لس زره (۱۰۰۰۰) سواره شامل وو ، او حضرت عثمان ﵁ د غونډ فوج دريمه حصه اخراجات ځانله په خپله ذِمه اخيستي وو ، ګويا حضرت عثمان ﵁ د لس زره پياده فوج د پاره اسباب برابر کړي ؤ ، ددينه علاوه يې زر (۱۰۰۰) أوښان ، اويا (۷۰) اسونه او نور سامان ورکړي ؤ ، او ددې سره سره يې د رسول الله ﷺ په خدمت کې زر (۱۰۰۰) اشرفۍ پيش کړی ، چې نبي عليه السلام د ديرې خوشحالۍ نه په لاسونو مبارکو کې اړولې راړولی ، او دا يې فرمايل : مَا ضَرَّ عُثْمَانَ مَا عَمِلَ بَعْدَ هٰذَا الْيَوْمَ . د نن نه روستو د حضرت عثمان هيڅ کار ده ته ضرر نشي رسولی . خلفاء راشدين بن از شاه معين الدين ندوي ص ۱٦٢ ، بحواله مستدرک حاکم ج۳ . هکذا اخرجه احمد ، کذا فی البداية .

ويل چې دا غله په مونږ را اخرڅه کړه ، ځکه په مسلمانانو باندې تکليف دی ، مونږ به يې بازار ته د خرڅ د پاره ويسو ، ده ورته وويل : كَمْ تَرْبَحُوْنِيْ؟ تاسو به ماته ددې څومره ګټه راکړئ؟

تاجرانو ورته وويل : په څو چې تا په شام کې اخيستې د هغې برابر ګټه به درکړو ، ده ورته وويل : ددې غلې قيمت ددې نه زيات لږول شوې دی (يعنی ما ته ددې نه زياته نفع ملاويږي) نو تاسو ددې قيمت نور هم زيات کړئ .

تاجرانو ورته وويل : مونږ به تاته يو په ډبل ګټه درکړو ، خو حضرت عثمان رضی الله عنه وويل : نور هم زيادت وکړئ ، ځکه ددې قيمت ددې نه زيات لږول شوی .

تاجرانو همداسې ګټه زياتوله ، تر دې چې يو په څلور ګټه يې ورنه اوغوښته ، خو ده ورته وويل : چې ما ته ددينه زياته نفع ملاويږي کومه چې تاسو راکوئ .

آخر دې تاجرانو ورته وويل : اې عثمان ! تاته چا ددينه زيات قيمت لږولی ؟ حالانکه د مدينې منورې تاجران خو ټول دلته همدا مونږ يو ، د مونږ نه علاوه خو نور څوک نشته چې د تا نه دا غله په زيات قيمت واخلي .

حضرت عثمان رضی الله عنه ورته وفرمايل : ما ته الله جل جلاله يو په لس چنده ددې اجر مقرر کړی ، الله رب العزت فرمايي :

﴿مَنْ جَاءَ بِالْحَسَنَةِ فَلَهُ عَشْرُ أَمْثَالِهَا...﴾ . (۱)

ترجمه : څوک چې (د الله جل جلاله دربار ته) نيکي راوړي نو ده ته به ددې نيکۍ يو په لس چنده بدله ملاويږي .

حضرت عثمان رضی الله عنه تاجرانو ته وويل : ما ته خو الله جل جلاله ددې نفع يو په لس چنده راکوي نو آيا تاسو ددې نه زياته راکولې شئ ؟ تاجرانو وويل : نه .

نو حضرت عثمان رضی الله عنه وفرمايل : أُشْهِدُكُمْ أَنَّهَا صَدَقَةٌ لِلْمُسْلِمِيْنَ . زه تاسو ګواه کوم چې دا ټوله غله د مسلمانانو د پاره (زما د طرفه) صدقه ده . (۲)

---

(۱) الانعام آيت ۱۶۰ .

(۲) الترغيب لليافعي ۸۷ ، حضرت عثمان ذی النورين بحواله ازالة الخفاء .

( نو سل واره اوښان د غلې نه ډک يې په مسلمانانو باندې صدقه کړه ) .

حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمايي چې ما په همدغه شپه باندې رسول الله صلی الله عليه وسلم په خوب کې وليده چې په ښائسته برګ آس باندې سور دی ، د نور جامې يې اغوستې دي ، او په تادی باندې روان دی .

ابن عباس رضی الله عنهما فرمايي چې ما ورته ووېل : اې د الله ﷻ رسوله ﷺ ! زه ستاسو د ملاقات ډير شوقي يم ، ماته لږ رامتوجه شئ ( چې ستاسو په ملاقات مشرّف شم ) نبي عليه السلام وفرمايل :

يَا ابْنَ عَبَّاسٍ إِنَّ عُثْمَانَ تَصَدَّقَ بِصَدَقَةٍ وَ أَنَّ اللهَ قَبِلَهَا مِنْهُ وَ زوجهُ بِهَا عرُوْسًا فِي الْجَنَّةِ وَقَدْ دُعِيْنَا إِلى عرُوْسِهِ . (۱)

اې ابن عباس ! بيشکه حضرت عثمان رضي الله عنه ( سَل اُوښان د غلې ) صدقه کړي ، او الله تعالی دده صدقه قبوله کړې ، او دده په عوض کې يې په جنت کې دده واده مقرر کړی ، ( زه ځکه په تادی باندې يم چې ) مونږ د هغه واده ته غوښتې شوي يو .

**فايده** : سبحان الله . د قحط سالۍ په وخت کې د مسلمانانو سره د احسان کولو او د صدقې ورکولو څومره لوي اَجر دی چې الله رب العزت دده په عوض کې څومره لوي عزت ورکړو .

---

(۱) حضرت عثمان ذی النورين بحواله ازالة الخفاء . قَالَ ابْنُ عبّاسٍ رضی الله عنهما : وَقَعَ قحطٌ فِي عهدِ أبي بكرٍ . فقيل له إنّ النّاسَ في شدةٍ . فقال : إنّكم لاتمسُونَ حتّى يفرجَ عنكم . فلمّا كان آخر النّهار جاء عير عثمان من الشّام . فجاء التجار . وقالوا : إنّ النّاس في شدةٍ من القحط و قد قدم عليک مائة راحلة من البر فَبِعْنَا إيّاها . قال : كم تربحوني؟ قالوا : العشرة نجعلُ ربحها درهمين . قال : زَادُوْنِي أَكْثَرَ مِنْ ذلک . قالوا نربحک أربعة . قال زادوني . قالوا : نحنُ تجار المدينةِ فَمَنْ زَادَکَ ؟ قَالَ : إنّ الله زادني بِكُلِّ درهمٍ عشرة . قالَ اللهُ تعالى : ﴿مَنْ جَاءَ بِالْحَسَنَةِ فَلَهُ عَشْرُ أَمْثَالِهَا...﴾ أُشْهِدُكُمْ أَنَّهَا صَدَقَةٌ لِلْمُسْلِمِيْنَ . قَالَ ابْنُ عبّاسٍ : فَرَأَيْتُ النَّبِيَّ ﷺ تِلْكَ اللَّيْلَةَ فِي الْمَنَامِ عَلى برذون أبلق وعليه حلة حرير من نورٍ و هو مُسْتَعْجِلٌ . فقلتُ يا رسول الله ! إنّي مُشْتَاقٌ إِلَيْکَ . فَقَالَ : يَا ابْنَ عَبَّاسٍ إِنَّ عُثْمَانَ تَصَدَّقَ بِصَدَقَةٍ وَ انَّ اللهَ قَبِلَهَا مِنْهُ وَ زوجهُ بِهَا عرُوْسًا فِي الجنةِ وَقَدْ دُعِيْنَا إِلى عرُوْسِهِ . نزهة المجالس ج۲ ص ۱۴ باب فضل الصدقة وفعل المعروف ...

# د حضرت عائشې رضي الله عنها صدقه

۱. حضرت عروه بن زبير رحمه الله فرمايي:

رَأَيْتُ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا تُقَسِّمُ سَبْعِيْنَ أَلْفًا وَهِيَ تُرَقِّعُ ثَوْبَهَا.

وَرُوِيَ أَنَّهَا قَسَمَتْ فِيْ يَوْمٍ ثَمَانِيْنَ وَمِائَةَ أَلْفٍ بَيْنَ النَّاسِ. فَلَمَّا أَمْسَتْ قَالَتْ: يَا جَارِيَةُ عَلَيَّ فُطُوْرِيْ. فَجَاءَتْهَا بِخُبْزٍ وَزَيْتٍ. فَقَالَتْ لَهَا أُمُّ ذَرَّةَ: أَمَا اسْتَطَعْتِ فِيْمَا قَسَمْتِ الْيَوْمَ أَنْ تَشْتَرِيْ لَنَا بِدِرْهَمٍ لَحْمًا نُفْطِرُ عَلَيْهِ؟ فَقَالَتْ: لَوْ ذَكَّرْتِنِيْ لَفَعَلْتُ. (۱)

ما حضرت عايشه رضی الله عنها وليده چې اويا زره (۷۰۰۰۰) اشرفی يې صدقه کولې، حالانکه په دې وخت کې هم ددې د قميص په يو طرف کې پيوندونه لږېدلي وو.

په يو روايت کې راځي چې دې په يوه ورځ يو لک او اتيا زره (۱۸۰۰۰۰) درهمه د خلقو په مينځ کې تقسيم کړه، کله چې ماښام شو نو خپلې خادمې ته يې ووېل: زما روژه ماتې راوړه (چې روژه پرې ماته کړم)، نو هغې ورته يوه روټۍ او د زيتونو تيل راوړه. نو د حضرت عايشې رضي الله عنها خادمې "ام ذرّة" ورته ووېل:

تا خو دومره ډېر درهم تقسيم کړه، که چيرته تا په دې کې مونږ له په يو درهم غوښه اخيستې وی نو اوس به مونږ پرې افطار کړې وی؟ حضرت عايشې رضي الله عنها ورته ووېل: که چيرته تا مخکې ماته رايادة کړې وی نو ما به درله غوښه اخيستې وه (اوس خو ټول درهم ختم شو).

**فايده**: ديته اعلی درجه سخاوت وايي چې په خپله يې روژه هم وه، او دومره ډېر درهم يې صدقه کړه خو ځان له يې يو درهم هم پرې نه خود چې غوښه يې پرې اخيستې وی. او باوجود د دومره ډېرو درهمو او اَشرفو صدقه کولو يې بيا هم په خپلو جامو کې پيوندونه لږېدلي وو.

---

(۱) مختصر منهاج القاصدين (۲۰۳)، والاحياء ۳/۲۲۷). نضرة النعيم في مكارم اخلاق الرسول النبي الكريم صلى الله عليه وسلم ج٦ ص ۲۲۵۵. وهكذا في الترغيب والترهيب ج۳ ص ۳۳۱ كتاب ذم البخل وذم حب المال.

## ۲ . دخپل ځان په نسبت فقير ته ترجيح ورکول :

امام مالک رحمه الله نقل کړي چې حضرت عائشې رضی الله عنها ته يو مسکين راغی ، او سوال يې ورنه وکړو ، حالانکه د حضرت عائشې رضی الله عنه روژه وه او ددې په کور کې صرف يوه ډوډۍ (چپاتې) وه (او ددې نه علاوه ورسره بل هيڅ شی د خوراک نه ؤ).

دې خپلې وينځې ته وويل : أَعْطِيْهِ إِيَّاهُ. دا ډوډۍ دې فقير له ورکړه .

هغې ورته وويل : د تاسره خو ددينه علاوه بل داسې شی نشته چې ته په هغې روژه ماته کړې (صرف همدا يوه روټۍ ده ، نو دا څنګه دې فقير له ورکړم ؟ )

حضرت عائشې رضی الله عنها ورته بيا وفرمايل : أَعْطِيْهِ إِيَّاهُ. دا ډوډۍ دې فقير له ورکړه . نو دې وينځې مسکين ته دا ډوډۍ ورکړه .

کله چې ماښام شو نو يو کور واله يا يو سړي دې ته هديه راوليږله چې د چيلۍ پخ شوې غوښه او روټۍ وغيره وو . دا وينځه وايي چې زه حضرت عائشې رضی الله عنها راأوغوښتم او راته وې ويل :

كُلِيْ مِنْ هٰذَا ، هٰذَا خَيْرٌ مِنْ قُرْصِكِ . (۱)

دا خوره ، دا ستا د ککوړې (چپاتې روټۍ) نه ډير بهتر دی .

## ۳ . د صدقې سره سره فقير ته دُعا هم کول :

حضرت مولانا ادريس کاندهلوي رحمه الله ليکلي : چې حضرت عائشې رضی الله عنها ته به څوک فقير راغی او دُعاګانې کول به يې شروع کړه (لکه داعادت دعامو فقيرانو دی چې څه غواړي نو ورسره ورسره دُعاګانې هم کوي) .

(۱) رَوَى مَالِكٌ ـ رَحِمَهُ اللهُ تَعَالَى ـ عَنْ مَوْلَاةٍ لِعَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا أَنَّ مِسْكِيْنًا سَأَلَ عَائِشَةَ وَهِيَ صَائِمَةٌ وَلَيْسَ فِيْ بَيْتِهَا إِلَّا رَغِيْفٌ . فَقَالَتْ لِمَوْلَاةٍ لَهَا : أَعْطِيْهِ إِيَّاهُ . فَقَالَتْ : لَيْسَ لَكِ مَا تُفْطِرِيْنَ عَلَيْهِ . فَقَالَتْ : أَعْطِيْهِ إِيَّاهُ . فَفَعَلَتْ . فَلَمَّا أَمْسَيْنَا أَهْدَى لَهَا أَهْلُ بَيْتٍ أَوْ إِنْسَانٌ ـ مَا كَانَ يُهْدِيْ لَهَا ـ شَاةً وَكَفَنَهَا فَدَعَتْنِيْ عَائِشَةُ . فَقَالَتْ : كُلِيْ مِنْ هٰذَا . هٰذَا خَيْرٌ مِنْ قُرْصِكِ . اخرجه مالک فی الموطاء ، جامع الاصول لابن الاثير (۶/۴۵۲) ، نضرة النعيم ج۶ ص ۲۲۵۵ السخاء .

نو حضرت عائشي رضى الله عنها به هم دې فقير ته دُعاګاني کولې ، او بيا به يې ورته صدقه هم ورکړه .

چا ورته وويل : اې اُمّ المؤمنين ! دا څه وجه ده چې کله د تانه يو فقير څه غواړي او دُعاګانې درته کوي نو ته هم ورته اول دُعاګانې کوې او بيا ورته صدقه ورکړې ؟

دې ورته وويل : که زه ورته صدقه ورکړم او دُعا ورته اونه کړم نو د هغه احسان په ما باندې زيات شو ، ځکه دُعا د صدقې نه ډيره بهتره ده ، نو ځکه زه هم ورته اول دُعاګانې وکړم چې د هغه د دُعاګانو د احسان بدله پوره شي ، بيا د هغې نه روستو صدقه ورکړم ، دا د دې د پاره چې زما دا صدقه خالصه د الله ﷻ د رضا ذريعه وګرځي ، او د څه احسان په مقابله کې رانشي . (۱)

## د يو نابينا صحابي په خپل لاس صدقه ورکول

حضرت عثمان رحمه اللهؒ وايي چې د حضرت حارثه بن نعمان رضي الله عنه په آخيري عُمر کې نظر ختم شوې ؤ ، هغه داسې کار کړې ؤ چې د خپلې کمرې د لمانځه د ځاى نه يې يو رسۍ تر د دروازې پورې بوتلې وه ، کله به چې يو فقير بهر په دروازه کې آواز وکړو نو ده به په کمره کې د موجوده ټوکرۍ نه څه راواخيست ، رسۍ به يې اونيوه ، دروازې ته به راغى او فقير ته به يې په خپل لاس باندې صدقه ورکړه .

د کور خلقو ورته وويل : ته دومره تکليف مه کوه ، بلکه فقير ته به مونږ صدقه ورکوو .

ده ورته وويل : ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه اوريدلي دي چې فقير ته په خپل لاس باندې صدقه ورکول انسان د خراب مرګ نه محفوظ ساتي . (نو ځکه زه په خپل لاس فقير ته صدقه ورکوم) . (۲)

---

(۱) سيرة المصطفى صلى الله عليه وسلم لمولانا ادريس کاندهلوي رحمه الله .

(۲) اخرجه الطبراني .

# فقير او محتاج ته د خوراک او جامو ورکولو فضيلت

په قرآن کريم او احاديثو مبارکه وُ کې فقير او محتاج ته د خوراک او جامو ورکولو ډير اَجرونه او ثوابونه بيان شوي. الله تعالى فرمايي :

﴿ وَيُطْعِمُونَ الطَّعَامَ عَلَىٰ حُبِّهِ مِسْكِينًا وَيَتِيمًا وَأَسِيرًا . إِنَّمَا نُطْعِمُكُمْ لِوَجْهِ اللَّهِ لَا نُرِيدُ مِنكُمْ جَزَاءً وَلَا شُكُورًا . إِنَّا نَخَافُ مِن رَّبِّنَا يَوْمًا عَبُوسًا قَمْطَرِيرًا . فَوَقَاهُمُ اللَّهُ شَرَّ ذَٰلِكَ الْيَوْمِ وَلَقَّاهُمْ نَضْرَةً وَسُرُورًا ﴾ . (۱)

ترجمه : او دوی (يعنی نيکان خلق) د الله ﷻ په مينه کې په مسکين ، يتيم او قيدي باندې خوراک خوروي ، (او دا ورته وايي چې :) بيشکه مونږ په تاسو باندې صرف د الله ﷻ د رضا د پاره خوراک خوروو ، نه خو د تاسو نه څه (عملي) بَدله غواړو ، او نه (دې قولي) شکريه غواړو . بيشکه مونږ خو د خپل رب نه د هغې ورځې په باره کې ويريږو چې سخته او ترخه به وي ، پس الله تعالى به دوی د دغې ورځې د سختۍ نه بچ کړي ، او دوی ته به تازګي او خوشحالي ورکړي .

۲ . د ابوداؤ د شريف حديث دی ، رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي :

أَيُّمَا مُسْلِمٍ كَسَا مُسْلِمًا ثَوْبًا عَلَى عُرْيٍ كَسَاهُ اللهُ مِنْ خُضْرِ الْجَنَّةِ . وَأَيُّمَا مُسْلِمٍ أَطْعَمَ مُسْلِمًا عَلَى جُوعٍ أَطْعَمَهُ اللهُ مِنْ ثِمَارِ الْجَنَّةِ . وَأَيُّمَا مُسْلِمٍ سَقَى مُسْلِمًا عَلَى ظَمَإٍ سَقَاهُ اللهُ مِنَ الرَّحِيقِ الْمَخْتُومِ . رواه ابوداؤ والترمذي . (۲)

---

(۱) الدهر آيت ۸ تا ۱۱ .

(۲) رواه ابوداؤد الحديث ۱٦٨٢ باب فضل سقي الماء ، والتبريزي في المشكوة ۱۹۱۳ باب فضل الصدقة الفصل الثاني حديث ۲۵ ، والمنذري في الترغيب ۳ / ۱۱۷ ، والسيوطي في الجوامع ۹۴٦۹ ، ۹۴۸۸ . وَفِي رِوَايَةٍ : مَا مِنْ مُسْلِمٍ كَسَا مُسْلِمًا ثَوْبًا إِلَّا كَانَ فِي حِفْظِ اللهِ مَا دَامَ عَلَيْهِ مِنْهُ خِرْقَةٌ . رواه الترمذي وقال حديث حسن ، والحاكم ، وقال : صحيح الاسناد ، ولفظه : سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ : مَنْ كَسَا مُسْلِمًا لَمْ يَزَلْ فِي سِتْرِ اللهِ مَا دَامَ عَلَيْهِ مِنْهُ خَيْطٌ أَوْ سِلْكٌ . رواه الترمذي الحديث ۲۴۸۴ ، والمنذري في الترغيب ۳ / ۱۱٦ ، والزبيدي في الاتحاف ۳ / ۱۷۲ ، والهندي في الكنز ۲٦۰۷۳ ، المتجر الرابح في ثواب العمل الصالح ص ۱۴۲ .

کوم مسلمان چې يو بَربنډ مسلمان ته جامې ور واغوندي ( يعنى هغه ته کپړې د اغوستلو دپاره ورکړي ) نو الله تعالى به هغه ته د جنت شين لباس ور واغوندي . او کوم مسلمان چې په يو اُوږي مسلمان باندې خوراک اُوخوري نو الله تعالى به په هغه باندې دجنت ميوې اُوخوري . او کوم مسلمان چې په بل تږي مسلمان باندې اُوبه اوڅکوي نو الله تعالى به په ده باندې د جنت مُهر بَند شراب اوڅکوي .

**فايده** : د مُهر بندو شرابو دا مطلب دى چې الله تعالى به په ده د جنت داسې شراب اُوڅکوي چې ډير اعلى به وي ، او هغه به د سِيل او مُهر په ذريعه د تغير او تبديل نه محفوظ وي ، او صرف د همدې کس د پاره به خاص شوي وي ، لکه په قرآن کريم کې هم د دې شرابو تذکره شته ، الله تعالى فرمايي :

﴿ يُسْقَوْنَ مِنْ رَّحِيْقٍ مَّخْتُوْمٍ . خِتَامُهُ مِسْكٌ .. ﴾ . (۱)

ترجمه : په هغوى به مُهر لږولې شوي خالص ( پاکيزه ) شراب څکلولې شي چې د دې مُهر به د مشکو وي .

۳ . د ترمذي شريف حديث دى ، نبي عليه السلام فرمايي :

أَيُّمَا مُؤْمِنٍ أَطْعَمَ مُؤْمِنًا عَلَى جُوْعٍ أَطْعَمَهُ اللهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ مِنْ ثِمَارِ الْجَنَّةِ . وَأَيُّمَا مُؤْمِنٍ سَقَى مُؤْمِنًا عَلَى ظَمَإٍ سَقَاهُ اللهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ مِنَ الرَّحِيْقِ الْمَخْتُوْمِ . وَأَيُّمَا مُؤْمِنٍ كَسَا مُؤْمِنًا عَلَى عُرْيٍ كَسَاهُ اللهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ مِنْ حُلَلِ الْجَنَّةِ . (۲)

کوم مومن چې بل اُوږي مؤمن ته خوراک ورکړي نو الله تعالى به ده ته د قيامت په ورځ د جنت ميوې ورکړي . او کوم مؤمِن چې په يو تږي مومن باندې اُوبه اُوڅکلى نو الله تعالى به په ده باندې د قيامت په ورځ مُهر شده شراب اوڅکوي . او کوم مومن چې بربنډ مومن ته جامې ورواغوندي نو الله تعالى به ده ته د قيامت په ورځ د جنت لباس ورواغوندي .

۴ . د مسلم شريف حديث دى ، رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي :

(۱) المطففين آيت ۲۵ ، ۲۶ .

(۲) رواه ابوداؤد والترمذي واللفظ له الحديث ۲۴۴۹ ، المنذري في الترغيب ۳/۱۱۷ ، المتجر الرابح في ثواب العمل الصالح ص ۱۴۵ .

إِنَّ اللهَ عَزَّ وَجَلَّ يَقُوْلُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ يَا ابْنَ آدَمَ مَرِضْتُ فَلَمْ تَعُدْنِيْ ، قَالَ : يَا رَبِّ كَيْفَ أَعُوْدُكَ وَأَنْتَ رَبُّ الْعَالَمِيْنَ ؟ قَالَ : أَمَا عَلِمْتَ أَنَّ عَبْدِيْ فُلَانًا مَرِضَ فَلَمْ تَعُدْهُ ، أَمَا عَلِمْتَ أَنَّكَ لَوْ عُدْتَهُ لَوَجَدْتَنِيْ عِنْدَهُ . يَا ابْنَ آدَمَ إِسْتَطْعَمْتُكَ فَلَمْ تُطْعِمْنِيْ ، قَالَ : يَا رَبِّ وَكَيْفَ أُطْعِمُكَ وَأَنْتَ رَبُّ الْعَالَمِيْنَ ؟ قَالَ : أَمَا عَلِمْتَ أَنَّهُ إِسْتَطْعَمَكَ عَبْدِيْ فُلَانٌ فَلَمْ تُطْعِمْهُ ، أَمَا عَلِمْتَ أَنَّكَ لَوْ أَطْعَمْتَهُ لَوَجَدْتَ ذَلِكَ عِنْدِيْ ؟ يَا ابْنَ آدَمَ إِسْتَسْقَيْتُكَ فَلَمْ تَسْقِنِيْ ، قَالَ : يَا رَبِّ كَيْفَ أَسْقِيْكَ وَأَنْتَ رَبُّ الْعَالَمِيْنَ ؟ قَالَ : إِسْتَسْقَاكَ عَبْدِيْ فُلَانٌ فَلَمْ تَسْقِهِ ، أَمَا إِنَّكَ لَوْ سَقَيْتَهُ لَوَجَدْتَ ذَلِكَ عِنْدِيْ . (۱)

الله تعالى به د قيامت په ورځ (خپلو بنده ته) ووايي : اې د آدم ځويه ! زه بيمار شوې ووم تا زما بيمارپُرسي نه وه کړې (او زما پوښتنې له نه وې راغلی) ، دې به ورته ووايي : اې زما ربه ! ما څنګه ستا بيمارپُرسي کړې وې حالانکه ته خو ربّ العالمين يې ؟ (په تا خو بيماري نه راځي) ، الله ﷻ به ورته وفرمايي : آيا تا ته پته نه وه چې زما فلانی بنده بيمار دی حالانکه تا د هغه بيمارپُرسي نه وه کړې آيا تا ته دا معلومه نه وه که چيرته ته د هغه پوښتنې له ورغلې وې نو تا به زه هلته د هغه سره موندلې وی (يعنی زما رضا به تا ته حاصله شوې وه) .

(بيا به الله ﷻ دې بنده ته او فرمايي : ) اې د آدم ځويه ! ما د تا نه خوراک غوښتې وُ خو تا په ما خوراک نه وُ خوړلی . دې به ورته ووايي : اې زما ربه ! ما په تا باندې څنګه خوراک خوړلې وی ؟ حالانکه ته خو ربُ العالمين يې (ستا خوراک ته ضرورت نشته) . الله ﷻ به ورته وفرمايي : آيا تا ته دا معلومه نه وه چې زما فلاني بنده د تا نه خوراک غوښتې وُ خو تا خوراک نه وُ ورکړی ، آيا ته په دې پوهه نه وې که چيرته تا هغه ته خوراک ورکړې وی نو تا به د هغې اَجر د ما سره موندلې وی ؟ (يعنی ما به درته د هغې اجر او بدله درکړې وی) .

(۱) رواه مسلم فی البر ۴۳ جز ۴ ص ۱۹۹ حديث ۲۵۶۹ باب فضل عيادة المريض .

(الله ﷻ به بيا دې بنده ته وفرمايي) اې د آدم ځويه! ما د تانه اوبه غوښتې وې نو تا ماته اوبه هم نه وې راکړې، دې به ورته ووايي: اې زما ربه! ما په تا باندې څنګه اوبه څکلې وې حالانکه ته خو ربُ العالمين يې (تا ته د اوبو څکلو ضرورت نشته). الله ﷻ به ورته اوفرمايي: د تا نه زما فلاني بنده اوبه غوښتې وې خو تا په هغه اوبه نه وې څکلې، آيا تا ته معلومه نه وه که چيرته تا په هغه باندې اوبه څکلې وې نو نن به تا د ماسره (د هغې په عوض کې د شهدو او شودو په شکل) د هغې اجر موندلې وې.

## د جنت مستحق کيدل

۱. حضرت ابوهريرة ﷺ فرمايي: چې ما دنبي عليه السلام نه پوښتنه وکړه:

يَارَسُوْلَ اللهِ! أَخْبِرْنِيْ بِشَيْءٍ إِذَا عَمِلْتُهُ دَخَلْتُ الْجَنَّةَ.

اې د الله ﷻ رسوله ﷺ! ما ته داسې عمل اوښايه چې زه هغه اوکړم او جنت ته داخل شم

پيغمبر عليه السلام ورته وفرمايل:

أَطْعِمِ الطَّعَامَ وَأَفْشِ السَّلَامَ وَصِلِ الْأَرْحَامَ وَصَلِّ بِاللَّيْلِ وَالنَّاسُ نِيَامٌ تَدْخُلِ الْجَنَّةَ

بِسَلَامٍ. رواه احمد وابن حبان والحاكم وقال: صحيح الاسناد. (۱)

خلقو ته خوراک ورکوه، سلام خور کړه (يعنې په هر چا سلام اچوه)، صلي رحمي کوه، او کله چې خلق اوده وي ته دشپې لمونځ کوه نو ته به جنت ته په سلامتيا سره داخل شې.

۲. رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي:

مَنْ أَطْعَمَ مُؤْمِنًا حَتَّى يُشْبِعَهُ مِنْ سَغَبٍ أَدْخَلَهُ اللهُ بَابًا مِنْ أَبْوَابِ الْجَنَّةِ لَايَدْخُلُهُ إِلَّا مَنْ كَانَ مِثْلَهُ. (۲)

---

(۱) رواه احمد ۳ / ۳۲۵، ۳۳۴، والزبيدي فى الاتحاف ۴ / ۳۳۳، والهندي فى الكنز ۱۱۸۳۴. وفي رواية: إِنَّ فِي الْجَنَّةِ غُرَفًا يُرٰى ظَاهِرُهَا مِنْ بَاطِنِهَا وَبَاطِنُهَا مِنْ ظَاهِرِهَا أَعَدَّهَا اللهُ تَعَالٰى لِمَنْ أَطْعَمَ الطَّعَامَ وَأَفْشَى السَّلَامَ وَصَلَّى وَالنَّاسُ نِيَامٌ. رواه ابن حبان. رواه البيهقي ۴ / ۳۰۱، والحاكم ۱ /۸۰، ۳۷۰، والطبراني فى المعجم ۳ / ۳۴۲، والهيثمي فى المجمع ۲ / ۲۵۴، ۳/ ۱۹۲، ۱۰ / ۲۷۸.

(۲) رواه الهيثمي فى المجمع ۱ / ۱۳۱، والمنذري فى الترغيب ۲ /۶۷، والزبيدي فى الاتحاف ۵/ ۲۳۸، والهندي فى الكنز ۱۶۳۴۷. اَلسَّغَبُ: هُوَ الْجُوْعُ.

چاچې په يو مومن خوراک وکړو تر دې پورې چې دې يې د ولږې نه موړ کړو (يعنې د ده ولږه يې ختمه کړه) نو الله ﷻ به (د دې په عوض کې) دې د جنت په داسې دروازه باندې (جنت ته) داخل کړي چې په دې دروازه به بل هيڅوک نه داخليږي، البته که يو کس د ده په شان وي (يعنې هغه هم په يو مومن خوراک کړې وي، نو بيا به هغه هم په دې دروازه جنت ته داخليږي).

۳. په يوه موقعه رسول الله ﷺ د صحابه کرامو نه پوښتنه وکړه: (۱)

مَنْ أَصْبَحَ مِنْكُمُ الْيَوْمَ صَائِمًا؟ نن په تاسو کې د چا روژه ده؟

حضرت ابوبکر صديق رضی الله عنه جواب ورکړو: أَنَا. زما روژه ده.

رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل:

مَنْ أَطْعَمَ مِنْكُمُ الْيَوْمَ مِسْكِينًا؟ نن په تاسو کې چا په يو مسکين خوراک خوړلی؟

حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه وفرمايل: أَنَا. ما په مسکين خوراک خوړلی.

رسول الله صلی الله عليه وسلم بيا وفرمايل:

مَنْ تَبِعَ مِنْكُمُ الْيَوْمَ جَنَازَةً؟

نن په تاسو کې څوک د جنازې سره (د جنازې لمانځه يا قبرستان ته) تللی؟

حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه وفرمايل: أَنَا. زه (تللې يم).

نبي عليه السلام بيا پوښتنه وکړه:

مَنْ عَادَ مِنْكُمُ الْيَوْمَ مَرِيضًا؟ نن په تاسو کې څوک د مريض پوښتنې له تللی؟

حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه وفرمايل: زه (د مريض پوښتنې له تللې يم).

---

(۱) قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ أَصْبَحَ مِنْكُمُ الْيَوْمَ صَائِمًا؟ فَقَالَ أَبُوبَكْرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: أَنَا. فَقَالَ: مَنْ أَطْعَمَ مِنْكُمُ الْيَوْمَ مِسْكِينًا؟ فَقَالَ أَبُوبَكْرٍ: أَنَا. فَقَالَ: مَنْ تَبِعَ مِنْكُمُ الْيَوْمَ جَنَازَةً؟ فَقَالَ أَبُوبَكْرٍ: أَنَا. فَقَالَ: مَنْ عَادَ مِنْكُمُ الْيَوْمَ مَرِيضًا؟ قَالَ أَبُوبَكْرٍ: أَنَا. فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَا اجْتَمَعَتْ هٰذِهِ الْخِصَالُ قَطُّ فِيْ رَجُلٍ إِلَّا دَخَلَ الْجَنَّةَ. رواه ابن خزيمة وابن حبان. ورواه مسلم، والبخاري في الادب المفرد ۵۱۵، مشكوة باب فضل الصدقة الفصل الاول حديث ۳، ورواه المنذري في الترغيب ۲/ ۶۷، ۳/ ۳۱۸، ۳۱۹.

رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل :

مَا اجْتَمَعَتْ هٰذِهِ الْخِصَالُ قَطُّ فِيْ رَجُلٍ إِلَّا دَخَلَ الْجَنَّةَ .

په چا کې هم چې دا خبرې جمع شي هغه به ضرور جنت کې داخليږي .

( يعنى جنت ته به بغير د حساب و کتاب نه داخليږي ، يا دا مطلب چې دا سړې که اوغواړي نو د جنت د هرې دروازې نه داخليدې شي ،ځکه د مطلقِ جنت ته داخليدو د پاره خو صرف ايمان کافي دی ، نو چې په چا کې دا صفتونه جمع شي نو دا به بغير د حساب و کتاب نه جنت ته داخليږي . (١) )

۴ . د ترمذي شريف حديث دی ، رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي :

اُعْبُدُوْا الرَّحْمٰنَ وَاَطْعِمُوْا الطَّعَامَ وَاَفْشُوْا السَّلَامَ تَدْخُلُوْا الْجَنَّةَ بِسَلَامٍ . (٢)

تاسو د رحمان ذات عبادت کوئ ، په غريبانو باندې خوراک خوروَئ ، او سلام عام کړئ (يعنى په هر چا سلام اچوئ، يا دامطلب چې سلام ظاهروئ يعنى " السلامُ عليكم " په اوچت آواز سره وايئ ) نو جنت ته به په سلامتيا سره داخل شئ .

# په انسانانو او نورو حيواناتو باندې د اوبو څکلو اجر

١ . د ابوداؤد شريف حديث دی ، حضرت سعد بن عبادة رضي الله عنه فرمايي : چې ما رسول الله صلى الله عليه وسلم ته وفرمايل : يَارَسُوْلَ اللهِ ! إِنَّ أُمِّيْ مَاتَتْ فَأَيُّ الصَّدَقَةِ أَفْضَلُ ؟

اې د الله جل جلاله رسوله صلى الله عليه وسلم ! بيشکه زما مور ( امّ سعد رضى الله عنها ) وفات شوې ده نو د هغې د پاره بهترينه او فايده منده صدقه کومه ده ؟

---

(١) مظاهر حق شرح مشكوة ج٣ ص ٣٩١ .

(٢) رواه الترمذي وقال : حديث صحيح ، ورواه المنذري في الترغيب ٢ /٦٣ ، والتبريزي في المشكوة باب فضل الصدقة الفصل الثاني حديث ٢٠ ( ١٩٠٨ ) ، والهندي في الكنز ٣٣٢٨٥، ٤٣٢٩١ ، والالباني في السلسلة الصحيحة ٢ / ٥٥١ . المتجر الرابح ص ١٢٣./ وَفِيْ رِوَايَةٍ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : مَنْ أَطْعَمَ أَخَاهُ حَتَّى يُشْبِعَهُ ، وَسَقَاهُ مِنَ الْمَاءِ حَتَّى يُرْوِيَهُ بَاعَدَاللهُ مِنَ النَّارِ سَبْعَ خَنَادِقَ مَابَيْنَ كُلِّ خَنْدَقَيْنِ مَسِيْرَةَ خَمْسِ مِائَةِ عَامٍ . رواه الطبراني في الكبير وابو الشيخ ابن حبان في الثواب ، والحاكم والبيهقي ، وقال الحاكم صحيح الاسناد . الترغيب والترهيب ج١ ( ١٣/ ٦٦٥ ) .

نبي عليه السلام وفرمايل: اَلْمَاءُ . اُوبه بهترينه صدقه ده.

نو هغه يو کوهي اُوکنيسته، او د اُمّ سعد په نوم يې وقف کړو، او دايې وويل:

هٰذَا لِأُمِّ سَعْدٍ. دا کوهي (زما د مور) د اُمّ سعد د پاره صدقه دی. (۱)

**فايده** : اُوبو ته بهترينه صدقه ځکه ويل شوی چې دا هم د الله ﷻ په نعمتونو کې يو لوي نعمت دی، ځکه د اُوبو نه بغير د انساني ژوند بقاء ممکن نه ده، ييا خاصکر چې چيرته د اُوبو ډير ضرورت وي نو هلته کوهي کنيستل، يا د اُوبو تالاب وغيره جوړول صدقه جاريه ده چې تر څو پورې دا کوهي موجود وي او خلق ورنه فايده اخلي نو تر هغې پورې به دې انسان ته د دې اجر رسي.

## په تږي سپي باندې د اُوبو څکلو په وجه مغفرت:

۱. **د يو سړي مغفرت** : امام بخاري او امام مسلم رحمهما الله او نورو محدثينو د نبي کريم صلى الله عليه وسلم دا حديث مبارک رانقل کړی چې نبي عليه السلام فرمايي:

بَيْنَمَا رَجُلٌ يَمْشِيْ بِطَرِيْقٍ إِشْتَدَّ عَلَيْهِ الْعَطَشُ فَوَجَدَ بِئْرًا فَنَزَلَ فِيْهَا فَشَرِبَ ثُمَّ خَرَجَ فَإِذَا كَلْبٌ يَلْهَثُ وَيَأْكُلُ الثَّرَى مِنَ الْعَطَشِ فَقَالَ الرَّجُلُ: لَقَدْ بَلَغَ هٰذَا الْكَلْبَ مِنَ الْعَطَشِ مِثْلُ الَّذِيْ كَانَ بَلَغَ مِنِّيْ فَنَزَلَ فِي الْبِئْرِ فَمَلَأَ خُفَّهُ مَاءً ثُمَّ أَمْسَكَهُ بِفِيْهِ حَتّٰى رَقِيَ فَسَقَى الْكَلْبَ . فَشَكَرَ اللهُ لَهُ . فَغَفَرَلَهُ. قَالُوْا يَارَسُوْلَ اللهِ ! وَإِنَّ لَنَا فِيْ هٰذِهِ الْبَهَائِمِ لَأَجْرًا ؟ فَقَالَ: فِيْ كُلِّ كَبِدٍ رَطْبَةٍ أَجْرٌ . (۲)

---

(۱) رواه ابوداؤد الحديث ۲۱۷، والترمذي الحديث ۱۱۲، والنسائي ۱/ ۱۱۵، وابن ماجه الحديث ۶۰۷، واحمد (۶۳)، و رواه ابن خزيمه في صحيحه ۱۲۹۲، والهندي في الكنز ۴۳۱۸۹، والبخاري في التاريخ ۱/ ۳۳۲. / وَفِيْ رِوَايَةٍ: عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: أَنَّهُ أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: يَارَسُوْلَ اللهِ إِنَّ أُمِّيْ تُوُفِّيَتْ وَلَمْ تُوْصِ أَفَيَنْفَعُهَا أَنْ أَتَصَدَّقَ عَنْهَا؟ قَالَ: نَعَمْ وَعَلَيْكَ بِالْمَاءِ. قال في مجمع الزوائد للهيثمي (۳/ ۱۳۸) رواه الطبراني في الاوسط ورجاله رجال الصحيح، رواه المنذري في الترغيب ۲/ ۷۳، والبيهقي في المجمع ۳/ ۱۳۸، المتجر الرابح ص ۱۴۸.

(۲) اخرجه البخاري في المساقاة باب فضل سقي الماء ۲۳۶۳ وفي الادب باب رحمة الناس والبهائم ۶۰۰۹، ومسلم باب فضل سقي البهائم المحترمة واطعامها ۵۸۱۳، وابوداؤد في الجهاد باب ما يؤمر به من القيام على الدواب والبهائم ۲۵۵۰. وهكذا في المتجر الرابح في ثواب العمل الصالح ص ۱۴۷.

یو کس په لاره روان ؤ ( په مکه معظمه کې (۱) ) ، سخت تږی شو ، نو په لاره کې یې یو کوهي اُولید ، دې کوهي ته ورښکته شو ، اُوبه یې اُوڅکلې . کله چې پاس را اُوخَت ، نو یو سپی یې ولید چې هغه هم دیر تږی شوی ؤ ، او د تندې نه یې ژبه راویستی وه ، او د دیرې تندې د وجې یې لمده خټه څټله . نو دې سړي دځان سره وویل : چې څنګه زه تږی شوی وم ، دغه شان دې هم سخت تږی شوی ، نو دوباره کوهي ته ورښکته شو ، او خپله موزه یې د اُوبو نه ډکه کړه ، په خُله کې یې ونیوه ، بَره رااُوخت او په دې سپي یې اُوبه اوڅکلې .

نبي ﷺ فرمائي: فَشَكَرَ اللهُ تَعَالَى لَهُ . فَغَفَرَ لَهُ . الله تعالی دده دا عمل قبول کړ ، او ده ته یې د همدې عمل په وجه بخښنه وکړه .

صحابه کرامو پوښتنه وکړه : ای د الله ﷺ رسوله ! آیا زمونږ د پاره ددې چارپیانو سره اِحسان کولو او په دوی اُوبه څکلو کې هم اجر شته ؟

نبي علیه السلام وفرمایل : د هر لوند جګر (ژوندي ) شي سره احسان کولو کې اجر دی .

**۲. د بدکارې ښځې مغفرت :**

رسول الله صلی الله علیه وسلم یو کرت صحابه کرامو ته وفرمایل : چې یوې بَدکارې ښځې ته صرف ددې د وجې مغفرت وکړې شو چې هغه یوه ورځ په داسې یو سپي تیره شوه چې د کوهي په غاړه ولاړ ؤ ، د تندې د وجې نه یې خپله ژبه راویستلې وه ، قریبه وه چې تندې هلاک کړې وی .

( نو ددې ښځې په دې سپي باندې رحم راغی ، چونکه په دې کوهي باندې څه رسی او بو که نه وه چې اُوبه یې پرې راویستې وی ) نو دې ښځې خپله د څرمنې موزه راوویسته ،او په خپل زروکي (پړوني ) پورې یې اُوتړله ، او دې سپي له یې په کې اُوبه راوویستی (او په هغه یې اوڅکلې ) .نو دې بَدکارې ښځې ته صرف ددې کار په وجه مغفرت وکړې شو .

صحابه کرامو عرض وکړو : آیا د چارپیانو سره په اِحسان کولو کې هم زمونږ د پاره ثواب شته ؟ پیغمبر علیه السلام ورته وفرمایل :

---

(۱) وفي رواية للدار قطني في الموطآت: يمشي بطريق مكة . كما في فتح الباري ۵/۴۱ . تكملة فتح الملهم ج۴ ص ۲۴۰ باب فضل سقي البهائم المحترمة واطعامها .

فِيْ كُلِّ ذَاتِ كَبِدٍ رَطْبَةٍ أَجْرٌ (۱)

آو، د هر لوند جګر واله (يعنی هر جاندار) سره په اِحسان کولو کې اجر شته (که هغه انسانان وي او که حيوانات).

البته مُوذِي ځناور (د کوم د وژلو حکم چې راغلی لکه مار، لړم وغيره نو هغه) ددې حکم نه مستثنی دي. (۲)

## د قيامت په ورځ سفارش کول

څوک چې په يو کس باندې د الله ﷻ د رضا د پاره اُوبه اُوڅکي، نو دغه کس به د قيامت په ورځ ددې څکوونکي کس سفارش کوي. او جنت ته به يې د ځان سره داخل کړي. ددې په باره کې درته د رسول الله صلى الله عليه وسلم يو څو احاديث ذکر کوم:

۱. نبي عليه الصلوة والسلام په يوه موقع وفرمايل:

إِنَّ رَجُلًا مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ يُشْرِفُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عَلَى أَهْلِ النَّارِ. فَيُنَادِيْهِ رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ النَّارِ فَيَقُوْلُ: يَا فُلَانُ! هَلْ تَعْرِفُنِيْ؟ فَيَقُوْلُ: لَا وَاللهِ مَا أَعْرِفُكَ. مَنْ أَنْتَ؟ فَيَقُوْلُ: أَنَا الَّذِيْ مَرَرْتَ بِيْ فِي الدُّنْيَا فَاسْتَسْقَيْتَنِيْ شَرْبَةً مِنْ مَاءٍ فَسَقَيْتُكَ. قَالَ: عَرَفْتُ. قَالَ: فَاشْفَعْ لِيْ بِهَا عِنْدَ رَبِّكَ. قَالَ: فَيَسْأَلُ اللهَ تَعَالَى جَلَّ ذِكْرُهُ فَيَقُوْلُ: إِنِّيْ أَشْرَفْتُ عَلَى النَّارِ فَنَادَانِيْ رَجُلٌ مِنْ أَهْلِهَا فَقَالَ: هَلْ تَعْرِفُنِيْ؟ قُلْتُ: لَا وَاللهِ مَا أَعْرِفُكَ مَنْ أَنْتَ؟ قَالَ: أَنَا الَّذِيْ مَرَرْتَ بِيْ فِي الدُّنْيَا فَاسْتَسْقَيْتَنِيْ شَرْبَةً مِنْ مَاءٍ فَسَقَيْتُكَ فَاشْفَعْ لِيْ عِنْدَ رَبِّكَ. فَشَفِّعْنِيْ فِيْهِ. فَيَأْمُرُ بِهِ فَيُخْرِجُ مِنَ النَّارِ. (۳)

---

(۱) عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ رضي الله عنه قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: غُفِرَ لِامْرَأَةٍ مُوْمِسَةٍ مَرَّتْ بِكَلْبٍ عَلَى رَأْسِ رَكِيٍّ يَلْهَثُ كَادَ يَقْتُلُهُ الْعَطَشُ فَنَزَعَتْ خُفَّهَا فَأَوْثَقَتْهُ بِخِمَارِهَا فَنَزَعَتْ لَهُ مِنَ الْمَاءِ. فَغُفِرَ لَهَا بِذٰلِكَ. قِيْلَ: إِنَّ لَنَا فِي الْبَهَائِمِ أَجْرًا؟ قَالَ: فِيْ كُلِّ ذَاتِ كَبِدٍ رَطْبَةٍ أَجْرٌ. رواه البخاري ج ۴ ص ۱۳۰ حديث ۳۳۲۱، و مسلم، مشکوة باب فضل الصدقة الفصل الاول حديث ۱۴.

(۲) مظاهر حق شرح مشکوة ج۳ ص ۳۹۹.

(۳) رواه المنذري في الترغيب ۲/ ۶۹، والزبيدي في الاتحاف ۱۰/ ۴۹۶، المتجر الرابح في ثواب العمل الصالح ص ۱۴۸.

د قيامت په ورځ به يو جنتي سړی جهنميانو ته سَر ورپورته کړي (او په هغوی به نظر واچوي)، نو د جهنم والو نه به يو کس ده ته آواز وکړي: اې فلانکيه! آيا ته ما پيژنې ؟

جنتي به ورته ووايي: نه، په الله ﷻ قسَم، زه تا نه پيژنم، ته څوک يې ؟

هغه به ورته ووايي: زه هغه کس يم چې ته په دُنيا کې يوه ورځ په ما تيريدی، تا د مانه د څکلو د پاره اُوبه اوغوښتې، نو ما په تا اُوبه څکلې وې. جنتي به ورته ووايي: ما اوس اوپيژندې. جهنمي به ورته ووايي: ته د هغې په عوض کې اوس زما سفارش وکړه.

جنتي به د الله تعالی نه سوال وکړي چې يا الله! ما په جهنميانو باندې نظر واچولو، نو په هغوی کې يو کس ماته آواز وکړو، او راته وې ويل: چې آيا ته ما پيژنې؟ ما ورته وويل: نه، قسَم په الله که زه تا پيژنم، ته څوک يې؟ هغه راته وويل: زه هغه کس يم چې په دُنيا کې ته په ما باندې تيريدی، تا د مانه د څکلو اُوبه اوغوښتې، ما اُوبه درباندې څکلې وې، اوس هغه وايي چې ته خپل رب ته زما سفارش وکړه.

نو اې الله ﷻ! دده په باره کې زما سفارش قبول کړه. الله رب العزت به دده سفارش قبول کړي. بيا به دا جنتي کس دغه جهنمي د جهنم د اُور نه راأوباسي.

۲. رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي:

إِنَّ رَجُلَيْنِ سَلَكَا مَفَازَةً أَحَدُهُمَا عَابِدٌ وَالآخَرُ بِهِ رَهَقٌ. فَعَطَشَ الْعَابِدُ حَتَّى سَقَطَ فَجَعَلَ صَاحِبُهُ يَنْظُرُ إِلَيْهِ وَهُوَ صَرِيعٌ. فَقَالَ: وَاللهِ إِنْ مَاتَ هٰذَا الْعَبْدُ الصَّالِحُ عَطَشًا وَمَعِيَ مَاءٌ لَاأُصِيبُ مِنَ اللهِ خَيْرًا أَبَدًا، وَلَئِنْ سَقَيْتُهُ مَائِيْ لَأَمُوْتَنَّ. فَتَوَكَّلَ عَلَى اللهِ (وَسَقَاهُ) وَعَزَمَ فَرَشَّ عَلَيْهِ مِنْ مَائِهِ وَسَقَاهُ فَضْلَهُ. فَقَامَ فَقَطَعَ الْمَفَازَةَ. فَيُوْقَفُ الَّذِيْ بِهِ رَهَقٌ لِلْحِسَابِ فَيُؤْمَرُ بِهِ إِلَى النَّارِ فَتَسُوْقُهُ الْمَلَائِكَةُ فَيَرَى الْعَابِدَ فَيَقُوْلُ: يَا فُلَانُ! أَمَا تَعْرِفُنِيْ؟ فَيَقُوْلُ: وَمَنْ أَنْتَ؟ فَيَقُوْلُ: أَنَا فُلَانُ الَّذِيْ آثَرْتُكَ عَلَى نَفْسِيْ يَوْمَ الْمَفَازَةِ. فَيَقُوْلُ: بَلَى أَعْرِفُكَ. فَيَقُوْلُ لِلْمَلَائِكَةِ: قِفُوْا. فَيَقِفُوْنَ فَيَجِيْءُ حَتَّى يَقِفَ فَيَدْعُو رَبَّهُ عَزَّ وَجَلَّ فَيَقُوْلُ: يَارَبِّ! قَدْ عَرَفْتَ

يَدَهُ وَكَيْفَ آثَرَنِيْ عَلَى نَفْسِهِ . يَا رَبِّ هَبْهُ لِيْ . فَيَقُوْلُ : هُوَ لَكَ . فَيَجِيْءُ فَيَأْخُذُ بِيَدِ أَخِيْهِ فَيُدْخِلُهُ الْجَنَّةَ . (۱)

دوه ( ۲ ) کسان په ځنګل کې روان وو، يو عبادت ګزار وُ ، او بل بَدعمله وُ ، په عابد باندې تَنده ولګېده او د ډيرې تندې د وجې نه په زمکه رااُوغورځيد ، خپل ملګري ته يې کته، او دې بې هوشه په زمکه پروت وُ ، دې بدکار کس ( ځان سره ) ووېل : قسَم په الله، که چيرته دا نيک انسان د تندې د لاسه مړ شو او د ما سره دا دی اُوبه شته نو زه به هيڅ کله د الله ﷻ د طرفه خير اونه مومم ، او که چيرته زه په ده باندې خپلې اُوبه څکم نو زه ( په دې دَشته کې ) پخپله د تندې د لاسه مړ کيږم .

نو ده په الله ﷻ باندې توکّل وکړو ، او عزم يې وکړو ( چې خپل ضرورت به قربان کړم خو ده ته به اُوبه ورکړم ) . نو ده خپلې اُوبه په هغه باندې څه چَړکاوُ کړې او نورې يې ورباندې اُوڅکلې . په دې سره هغه عابد نيغ راپاڅيد او خپل سفر يې جاري اوساتلو او هغه دَشتې نه وُوتل . نبي عليه السلام فرمايي چې کله دا بدکاره بنده ( د قيامت په ورځ ) د حساب د پاره اُودرولې شي او د جهنم حکم پرې اوشي نو فرښتې به دې جهنم طرفته روان کړي ، دې به دا عابد اوويني او ورته اوبه وايي : اې فلانيه ! آيا ته ما نه پيژنې ؟ عابد به ورته ووايي : ته څوک يې ؟ هغه به ورته ووايي : زه هغه فلانې کس يم چې د ځنګل ( يعنې د سفر ) په ورځ ( په دَشته کې ) ما تا ته په خپل ځان باندې ترجيح درکړې وه . عابد به ورته ووايي : آو ، ما اوپيژندې . بيا به فرښتو ته ووايي : اُودريږئ . هغوی به اُودريږي . دې به راشي او د الله ﷻ نه به دُعا اوغواړي ، او دا به ووايي :

اې زما ربه ! تا ته پته ده چې ده د ما سره اِحسان کړی او ما ته يې په خپل ځان باندې ترجيح راکړې وه ، نو اې زما ربه ! دې ما ته راکړې ، الله ﷻ به ورته اوفرمايي : دې ما تا له درکړو ، لهذا دا عابد به راشي او دا خپل بَدکار ورور به د لاس نه اونيسي او جنت ته به يې داخل کړي

---

(۱) رواه الهيثمي في المجمع ۳/ ۱۳۲ ، والطبراني في الاوسط ورواه البيهقي في الشعب ، الترغيب والترهيب ج۱ ۲۵/ ۶۷۰، المتجر الرابح في ثواب العمل الصالح ص ۱۲۸ ثواب من سقى آدميا او بهيمة او حفر بئرا . قَوْلُهُ : " يَوْمَ رَهَقٍ " أيْ اِرْتِكَاب للمعاصي وغشيان للمحارم .

# فصل يا ميوه داره اُونه په ښه نيت کرل هم صدقه ده

که چيرته يو کس څه فصل اُوکري، يا يوه ميوه داره اُونه اُوکري او ددينه انسانان، مرغان يا حيوانات خوراک کوي تر دې پورې چې ددېنه څوک غلا هم وکړي نو دا ټول ددې کرونکي د پاره صدقه ده.

۱. د بخاري او مسلم شريف حديث دی، رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي:

مَا مِنْ مُسْلِمٍ يَغْرِسُ غَرْسًا أَوْ يَزْرَعُ زَرْعًا فَيَأْكُلُ مِنْهُ طَيْرٌ أَوْ إِنْسَانٌ إِلَّا كَانَ لَهُ بِهِ صَدَقَةٌ. (۱)

کوم مسلمان چې يوه اُونه اوکري يا فصل اُوکري، او بيا انسانان، مرغی او څاروي (د مالِک د رضا نه بغير) ددې نه څه خوري نو دا (نقصان) هم د مالِک د پاره صدقه ده.

۲. د مسلم شريف په روايت کې څه نوره اضافه هم شته، نبي کريم ﷺ فرمايي:

مَا مِنْ مُسْلِمٍ يَغْرِسُ غَرْسًا إِلَّا كَانَ مَا أُكِلَ مِنْهُ لَهُ صَدَقَةٌ. وَمَا سُرِقَ مِنْهُ لَهُ صَدَقَةٌ. وَلَا يَرْزَؤُهُ (أَيْ يَنْقُصُهُ) أَحَدٌ إِلَّا كَانَ لَهُ صَدَقَةٌ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ. (۲)

کوم مسلمان چې يوه اُونه اُوکري نو ددينه چې څه هم اوخوړې شي هغه ددهٔ د پاره صدقه ده، څه چې ددينه غلا شي هغه هم دده د پاره صدقه ده (۳)، او ددينه چې يو کس څه هم کموي (او نقصان پکې راولي) نو دا هم دده د پاره د قيامت دورځې پورې صدقه ده.

---

(۱) رواه البخاري في المزارعة ۲۰۸، ومسلم في المساقاة ۱۲؛ والترمذي الحديث ۱۳۸۲، واحمد ۳/۲۲۹، ۲۴۳.

(۲) رواه مسلم في المساقاة ۷، والمنذري ۳/۳۷۵. وَفِي رِوَايَةٍ: فَلَا يَغْرِسُ مُسْلِمٌ غَرْسًا وَلَا يَزْرَعُ زَرْعًا فَيَأْكُلُ مِنْهُ إِنْسَانٌ وَلَا دَابَّةٌ وَلَا طَيْرٌ إِلَّا كَانَ لَهُ صَدَقَةٌ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ. رواه مسلم في المساقاة ۱۰، والمنذري في الترغيب ۳/۳۷۵.

(۳) **يو اعتراض او دهغې جواب**: اعتراض: په دې موقع يو اعتراض پيداکيږي چې د اعمالو ثواب خو په نيت باندې موقوف دی، نو چې کله د يو سړي د اُونې يا فصل نه غلا اوشوه نو په دې کې خو ددهٔ د ثواب نيت نشته، نو بيا ده ته د صدقې ثواب څنګه حاصليږي؟

جواب: شاه عبدالعزيز محدث دهلوي رحمه الله ددې جواب دا کړی چې کله يو زميندار يا بل کس څه اُونه يا فصل کري نو دده اصلي مقصود ددينه "بغير د تخصيص نه د مطلق انسان او حيوان د ژوند ضرورت پوره کول او بقاء ده" اوس چې ددې اُونې يا فصل نه انسانان يا حيوانات خوراک کوي اګر چې په غلا يې ورنه کوي خو ددې سړه ددې انسان د اِجمالي نيت تعلق راغی، او د حصول ثواب د پاره همدا اِجمالي نيت هم کافي دی. دا څانله خبره ده چې څوک ددينه غلا وکړي هغه ته به ددې سزا ملاويږي، خو دې مالک ته به ددې اِجمالي نيت په وجه د صدقې ثواب حاصليږي. مظاهر حق شرح مشکوة ج ۲ باب فضل الصدقة الفصل الاول في ضمن حديث ۱۳.

# صدقه د مرګ نه مخکې په کار ده

انسان ته په کار دي چې صدقه او خيرات د مرګ نه مخکې په خپل ژوند کې په خپل لاس ورکړي ، ځکه بهترينه صدقه هم هماغه ده کومه چې انسان په خپل ژوند کې د تندرستۍ په حالت کې ورکړي .

او که په خپل ژوند يې ورنه کړي نو بيا به په ده باندې وخت تير وي د افسوس او ندامت لاسونه به مروړي خو هيڅ شی به په ګوتو نه ورځي .

الله رب العزت فرمايي :

﴿وَأَنْفِقُوا مِنْ مَا رَزَقْنٰكُم مِنْ قَبْلِ أَنْ يَأْتِيَ أَحَدَكُمُ الْمَوْتُ فَيَقُوْلَ رَبِّ لَوْلَآ أَخَّرْتَنِيْ إِلَىٰ أَجَلٍ قَرِيْبٍ فَأَصَّدَّقَ وَأَكُنْ مِنَ الصَّالِحِيْنَ . وَلَنْ يُؤَخِّرَ اللهُ نَفْسًا إِذَا جَاءَ أَجَلُهَا وَاللهُ خَبِيْرٌ بِمَا تَعْمَلُوْنَ﴾ . (۱)

ترجمه : ( اې مومنانو ! ) مونږ چې درته څه درکړي دي د هغې نه ( په حقوقِ واجبه او خيرات کې ) خرچ کوئ ، د دې نه وړاندې چې په تاسو کې يو چاته مرګ راشي او هغه بيا ( د آرزو او آرمان په ډول ) دا وايي : اې زما ربه ! تا ولې ما ته يو څو ورځې نور مهلت رانه کړو چې ما خيرات کړې وی ، او زه د نيکانو خلقو نه شمار شوې وی ، ( خو دده دا آرمان به فايده مند ځکه نه وي چې ) او الله تعالى هيڅ کله يو چاته مُهلت نه ورکوي کله چې دده نيټه راشي ، او الله تعالى خبر دار دی د هغه کارونو نه چې تاسو يې کوی .

## اَفضله صدقه :

۱ . د بخاري شريف حديث دی ، حضرت ابوهريرة رضي الله عنه فرمايي چې يو کس د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه پوښتنه وکړه :

أَيُّ الصَّدَقَةِ أَعْظَمُ أَجْرًا ؟ اې د الله جل جلاله رسوله صلى الله عليه وسلم ! د ثواب په اِعتبار سره کومه صدقه لويه او اَفضله ده ؟

نبي عليه السلام ورته وفرمايل :

(۱) المنافقون آيت ۱۰ ، ۱۱ .

أَنْ تَصَدَّقَ وَأَنْتَ صَحِيحٌ شَحِيحٌ . تَخْشَى الْفَقْرَ وَتَأْمَلُ الْغِنٰى . وَلَاتُمْهِلْ حَتّٰى إِذَا بَلَغَتِ الْحُلْقُومَ قُلْتَ لِفُلَانٍ كَذَا . وَلِفُلَانٍ كَذَا . وَقَدْ كَانَ لِفُلَانٍ . (۱)

افضله صدقه هغه ده چې ته صدقه په داسې حال کې ورکړې چې ته تندرست او صحیح يې ، د مال جمع کولو حرص لرې ، د فقر نه ویرېږې ، او د دولت حاصلولو امید لرې ، او (په صدقه او خیرات کې) دومره تاخیر مه کوه چې کله ستا ساه مرۍ ته راورسي (یعنی قریب الموت شې) نو بیا وایې : دومره مال د فلاني دپاره دی ، او دومره د فلاني دپاره دی . حالانکه دا مال اوس په خپله د فلاني ګرځيدلې وي (یعنی اوس په دې آخري وخت کې خو ددې مال سره د وارثانو حق متعلق شوی او په خپله د هغوی ګرځيدلی دی) .

۲ . د ابوداؤد شریف حدیث دی ، نبي علیه السلام فرمایي :

لَأَنْ يَتَصَدَّقَ الْمَرْءُ فِي حَيَاتِهِ بِدِرْهَمٍ خَيْرٌ لَهُ مِنْ أَنْ يَتَصَدَّقَ بِمِائَةٍ عِنْدَ مَوْتِهِ . (۲)

څوک چې په خپل ژوند کې یو درهم صدقه کړي دا دده دپاره د مرګ په وخت د سلو (۱۰۰) درهمو صدقه کولو نه ډیر بهتر دی .

یعنی چې په خپل ژوند کې یو درهم صدقه کړي نو دا دده دپاره د هغه سلو (۱۰۰) درهمو صدقه کولو نه ډیر بهتر دی کوم چې سړی د مرګ په وخت صدقه کوي .

۳ . د ترمذي شریف حدیث دی ، رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي :

مَثَلُ الَّذِي يَتَصَدَّقُ عِنْدَ مَوْتِهِ . أَوْ يُعْتِقُ كَالَّذِي يُهْدِي إِذَا شَبِعَ . (۳)

څوک چې د مرګ په وخت صدقه ورکوي ، یا غلام آزادوي نو د هغه مثال د هغه سړي په شان دی چې دې بل کس ته هاغه وخت هدیه (یعنی خوراک) ورلیږي کله چې دده خیټه ډکه شوې وي (او موړ شوې وي) .

(۱) متفق علیه ، مشکوة باب الانفاق وکراهیة الامساک الفصل الاول حدیث ۹ . وفي روایة : وَتَأْمَلُ الْبَقَاءَ . مسلم باب بیان انّ افضل الصدقة صدقة الصحیح الشحیح ۲۳۵۸ / ۹۳ .

(۲) رواه ابوداؤد ، مشکوة باب الانفاق وکراهیة الامساک الفصل الثاني حدیث ۱۲ .

(۳) رواه احمد والنسائي والدارمي والترمذي وصححه ، مشکوة باب الانفاق وکراهیة الامساک الفصل الثاني حدیث ۱۳ .

نو چې څنګه د خيتې ډکيدو نه روستو پاتې شوې خوراک بل ته صدقه کول په دې کې ثواب کم دی نو دغه شان د مرګ په وخت صدقه ورکولو کې هم ثواب کم دی په نسبت د هغې چې په خپل ژوند او د روغ صحت په حالت کې يې ورکړي.

**تنبيه** : په انسانانو کې عامه کمزوري داده چې کله دوی صحت مند وي او د مرګ آثار يې نه وي ليدلي نو دوی بُخل کوي، صدقه نه ورکوي، ځکه شيطان ورته په زړه کې دا وَسوسې وراچوي چې په دې صدقې سره به دې مال کم شي او بيا به د نورو محتاج شی، خو چې کله ورته مرګ رامخې ته شي نو بيا ورته صدقه رایاده شي. نبي عليه السلام فرمايي چې دا طريقه صحيح نه ده، بلکه د الله ﷻ په نزد محبوبه او مقبوله صدقه هغه ده کومه چې انسان په خپل ژوند کې د تندرستی په حالت کې ورکړي. او کومه صدقه چې دې د مرګ په وخت کوي، يا دده د مرګ نه روستو يې دده پسې وارِثان دده د مال نه کوي نو ددې ثواب اګر چې ده ته رسي خو ثواب يې د هغې صدقې په نسبت کم وي کومه چې ده په خپل ژوند کې د صحت په حالت کړې وي.

## د مرګ نه روستو هم په کار راتلونکي اعمال

کله چې يو کس ژوندې وي نو دې په خپله نيک اَعمال کوي او د آخرت د پاره ذخيره تياروي، خو ليکن چې کله دې وفات شي نو بيا خو دنيکو اعمالو دا سلسله ختمه شي.

البته يو څو اعمال داسې دي چې د هغې ثواب انسان ته د مرګ نه پس هم رسي

۱. نبي کريم ﷺ فرمايي:

إِذَا مَاتَ ابْنُ آدَمَ انْقَطَعَ عَمَلُهُ إِلَّا مِنْ ثَلَاثٍ: صَدَقَةٍ جَارِيَةٍ، أَوْ عِلْمٍ يُنْتَفَعُ بِهِ، أَوْ وَلَدٍ صَالِحٍ يَدْعُوْ لَهُ. (۱)

کله چې يو انسان مړ شي نو د عمل د ثواب سلسله دده نه منقطِع شي، مګر د درې (۳) شيانو د ثواب سلسله بيا هم باقي وي (يعنی دده د مرګ نه روستو هم دده پسې د هغې ثواب

وررسي) : اول صدقه جاريه ، دويم هغه عِلم چې د هغې نه نفعه حاصلولې شي ، او دريم هغه نيک اولاد چې ده ته دُعاګانې کوي .

۲. په يو بل حديث کې څه نور تفصيل هم ذکر دی ، نبي کريم ﷺ فرمايي :

إِنَّ مِمَّا يَلْحَقُ الْمُؤْمِنَ مِنْ عَمَلِهِ وَحَسَنَاتِهِ بَعْدَ مَوْتِهِ عِلْمًا عَلَّمَهُ وَنَشَرَهُ ، وَوَلَدًا صَالِحًا تَرَكَهُ أَوْ مُصْحَفًا وَرَّثَهُ ، أَوْ مَسْجِدًا بَنَاهُ ، أَوْ بَيْتًا لِابْنِ السَّبِيلِ بَنَاهُ ، أَوْ نَهْرًا أَجْرَاهُ ، أَوْ صَدَقَةً أَخْرَجَهَا مِنْ مَالِهِ فِي صِحَّتِهِ وَحَيَاتِهِ تَلْحَقُهُ مِنْ بَعْدِ مَوْتِهِ . (۱)

بيشکه مؤمن ته چې د مرګ نه پس هم د کوم عمل يا د نيکيو ثواب رسيږي ، په هغې کې

اول : هغه عِلم دی چې دې يې زده کړي او بيا يې نورو ته هم اورسوي ،

دويم : هغه نيک اولاد دی چې ده د خپل ځان نه روستو پريښې وي ( او هغه دده دپاره دُعاګانې کوي ) ،

دريم : هغه قرآن مجيد دی چې ده د وارثانو دپاره پريښې وي ( او هغوی په دې کې تلاوت کوي ) ،

څلورم : هغه جُمات ( مسجد ) دی چې ده په خپل ژوند کې جوړ کړې وي ،

پنځم : هغه کور دی چې د مسافرو دپاره يې جوړ کړې وي ،

شپږم : هغه نهر دی چې ده جاري کړې وي (يعنی ده کِنستې وي ) ،

اووم : هغه صدقه ( جاريه ) ده چې ده د تندرستۍ په حالت کې په خپل ژوند کې د خپل مال نه ويستې وي . نو ددې شيانو اَجر او ثواب به انسان ته د مرګ نه پس هم رسيږي .

**د حديث تشريح** : په دې حديث کې نبي عليه السلام دهغه شيانو تذکره وکړه چې د هغې ثواب انسان ته د مرګ نه پس هم رسي . ددې څه لږ وضاحت ستاسو د وړاندې بيانوم :

په دې کې اول هغه علم دی چې په خپله يې زده کړي او بيا يې نورو ته اُوښايي . يعنی يو چاته قرآن مجيد په ناظره اوښايي ، يا يې ورته حفظ کړي ، يا يو عالِم جوړ کړي ، يا يو ديني کتاب وليکي ، يا چاته د لمانځه يا بل عبادت طريقه ورزده کړي ، نو چې تر څوپورې دده د

(۱) رواه ابن ماجه باسناد حسن الحديث ۲۴۲ ، المقدمة باب ۲۰ ، والبيهقي و رواه ابن خزيمة في صحيحه ۲۴۹۰ ، الترغيب والترهيب ج ۱ ص ۵۵ الترغيب في العلم وطلبه وتعلمه وتعليمه (۱ /۱۹۶) ، مشكوة ص ۳۶ كتاب العلم الفصل الثالث .

شاګردانو دا سلسله تر قيامته پورې جاري وي نو تر هغې وخته پورې به دې انسان ته ددې ثواب رسيږي ، يا تر څو پورې چې دده د ديني کتاب نه خلق فايده اخلي ، يا کومو خلقو ته چې ده لمونځونه يا نور عبادات خودلي وي او هغوى داعبادات کوي نو په دې ټولو صورتونو کې به دې انسان ته د مرګ نه پس هم ددې اعمالو ثواب رسي .

په حديث کې دويم شى نيک اولاد ذکر شو ، يعنى کله چې د يو سړي اولاد نيک وي نو هغوى به ددۀ د مرګ نه پس د ده د پاره دُعاګانې کوي نو ددې اجر هم دې انسان ته رسي ، بيا خاصکر چې کله مور او پلار د بچي تربيت په اسلامي طريقې سره وکړي يعنى عالم يا حافظ يا نيک بنده ورنه جوړ کړي نو اوس چې دا بچي کوم نيک اعمال کوي په دې کې به خامخا د والدينو حصه وي ، ځکه دده د نيک جوړيدو ذريعه همدا مور او پلار ګرځيدلي .

په حديث کې دريم شى هغه قرآن مجيد دى چې ده د وارثانو د پاره پريښې وي ، يعنى دې کس د خپل ځان د پاره قرآن مجيد هديه کړې ؤ ، خو چې کله دې وفات شو نو دا قرآن مجيد دده وارثانو ته پاتې شو ، اوس هغوى په کې تلاوت کوي نو دې انسان ته هم ددې اجر رسيږي . دغه شان که يو کس يو عالم له ، يا يوې مدرسې له څه کتابونه واخلي نو تر څو پورې چې ددې کتابونو نه فايده اخيستلې شي نو تر هغه وخته پورې به دې انسان ته برابر ثواب رسيږي .

په حديث کې څلورم شى جُمات جوړول ذکر شوي ، او پنځم شى مسافرخانه جوړول ذکر شوي . نو تر څو پورې چې په دې جُمات کې خلق لمونځونه او تلاوتونه کوي ، يا په دې مسافرخانه کې مسافر قيام کوي نو تر هغې وخته پورې به دې جوړوونکي ته هم اجر و ثواب رسيږي .

په حديث کې شپږم شى نهر جاري کول ذکر شو . يعنى يو نهر په يوه علاقه راولي ، نو تر څو پورې چې ددې نهر نه انسانان او حيوانات فايده اخلي نو تر هغې وخته پورې به دې انسان ته ثواب رسيږي اګر که دې وفات شوې وي .

همدغه شان حکم د کوهي کنيستلو يا تالاب جوړولو هم دى چې تر څو ددې د اوبو نه خلق فايده اخلي نو ده ته به ددې اجر و ثواب رسي .

په حدیث کې اووم شی هغه صدقه جاریه ذکر ده کومه چې ده په خپل ژوند کې د صحت په حالت کې د خپل مال نه ورکړي وي . نو ددې ثواب به هم انسان ته د مرګ نه پس هم رسي ، په دې کې د بعضې شیانو تذکره مخکې اوشوه ، لکه یو دیني مدرسه جوړه کړي ، جمات جوړ کړي ، د قبرستان د پاره زمکه وقف کړي ، مسافرخانه جوړه کړي ، یا بل داسې د خیر کار وکړي چې د هغې نه خلق مسلسل نفع اخلي نو ددې ټولو شیانو ثواب به انسان ته د مرګ نه پس هم رسي .

## د مرګ نه پس هم انسان ته د صدقې ثواب رسي

دا مسئله د ډیرو احادیثو نه ثابته ده او په دې باندې د ائمه حق اِجماع هم ده چې لکه څرنګ چې یو انسان په خپل ژوند باندې څه صدقه د الله ﷻ د رضا د پاره ورکړي نو ده ته ددې اَجر و ثواب رسي ، دغه شان که د یو مسلمان والدین یا نور څوک خپلوان وفات شوي وي او دې د هغوی پسې د صدقې ، اِستغفار یا نورو نیکو اَعمالو ثواب رسول غواړي نو د احادیثو په رَڼا کې د هغوی پسې ددې ثواب الله ﷻ رسوي .

او دا د الله ﷻ یو لوي فضل هم دی چې انسان ته یې داسې اَعمال خودلي چې د وفات شوو کسانو سره د هغوی د مرګ نه روستو هم احسان کولې شي ، او هغوی ته د صدقو او نورو نیکو اعمالو د ثوابونو تحفې لیږلې شي .

۱. د بخاري شریف حدیث دی ، حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما فرمایي چې د حضرت سعد بن عبادة ﷛ مور په داسې حالت کې وفات شوه چې حضرت سعد ﷛ په خپله موجود نه وُ (بلکه د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره یوې غزا ته تللې وُ ، کله چې واپس راغی) نو رسول الله ﷺ ته یې وویل :

يَارَسُوْلَ اللهِ ! إِنَّ أُمِّيْ تُوُفِّيَتْ وَأَنَا غَائِبٌ عَنْهَا أَيَنْفَعُهَا شَيْءٌ إِنْ تَصَدَّقْتُ بِهِ عَنْهَا ؟

اې د الله ﷻ رسوله ﷺ ! زما په عدمِ موجودګۍ کې زما مور وفات شوې ده پس که چیرته زه د هغې د طرفه صدقه وکړم نو آیا دا به هغې ته نفع اورسوي ؟ (او هغې ته به ددې ثواب اورسي ؟)[۱]

پيغمبر عليه السلام ورته وفرمايل: نَعَمْ. آو، (هغې ته ددې نفع او ثواب رسي).
نو ده وويل: بيشکه زه تاسو ګواه جوړوم چې ما خپل باغ "مِخرَاف" د خپلې مور د پاره صدقه کړو. (۱)

۲. همدغه شان يوه بله واقعه امام بخاري او امام مسلم رحمهما الله هم رانقل کړې، حضرت عائشه رضي الله عنها فرمايي: چې يو کس د نبي عليه السلام په خدمت کې حاضر شو، او وې ويل: بيشکه زما مور ناڅاپه وفات شوې، او زما دا ګمان دی چې که چيرته هغې د مرګ نه مخکې څه خبرې کولې شوې نو ضرور به يې صدقه کړې وه

فَهَلْ لَهَا أَجْرٌ إِنْ تَصَدَّقْتُ عَنْهَا؟

نو اوس که چيرته زه د هغې د طرفه صدقه وکړم نو آيا ددې ثواب به هغې ته اورسي؟
رسول الله صلی الله عليه وسلم ورته وفرمايل:
نَعَمْ. هو (ددې ثواب هغې پسې رسي). (۲)

۳. حضرت ابوهريرة ﷺ فرمايي چې رسول الله صلی الله عليه وسلم ته يو کس راغی او ورته وې ويل: إِنَّ أَبِي مَاتَ وَتَرَكَ مَالًا وَلَمْ يُوْصِ فَهَلْ يُكَفِّرُ عَنْهُ إِنْ تَصَدَّقْتُ عَنْهُ؟
بيشکه زما پلار وفات شوی او په ترکه کې يې څه مال هم پريخی خو (د صدقې وغيره) څه وصيت يې نه دی کړی، نو که چيرته زه د هغه د طرفه صدقه وکړم نو آيا زما دا صدقه به د هغه د پاره د ګناهونو کفاره، او د مغفرت سبب اوګرځي؟

نبي عليه السلام ورته وفرمايل: نَعَمْ. هو (د الله ﷻ نه اميد شته چې دا صدقه به د هغه د ګناهونو د مغفرت او د هغه د نجات ذريعه وګرځي). (۳)

---

(۱) عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ ﷺ أَنَّ سَعْدَ بْنَ عُبَادَةَ ﷺ تُوُفِّيَتْ أُمُّهُ وَهُوَ غَائِبٌ عَنْهَا فَقَالَ: يَا رَسُوْلَ اللهِ! إِنَّ أُمِّيْ تُوُفِّيَتْ وَأَنَا غَائِبٌ عَنْهَا أَيَنْفَعُهَا شَيْءٌ إِنْ تَصَدَّقْتُ بِهِ عَنْهَا؟ قَالَ: نَعَمْ. قَالَ: فَإِنِّيْ أُشْهِدُكَ أَنَّ حَائِطِيَ الْمِخْرَافَ صَدَقَةٌ عَلَيْهَا. رواه البخاري ج۴ ص۷ حديث ۲۷۵۶ باب إذا قال أرضي أو بستاني صدقة لله.. وحديث ۲۷۶۲، معارف الحديث ج۴ ص۳۲۸.
(۲) عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ: إِنَّ رَجُلًا قَالَ لِلنَّبِيِّ ﷺ: إِنَّ أُمِّيْ أُفْتُلِتَتْ نَفْسُهَا وَأَظُنُّهَا لَوْ تَكَلَّمَتْ تَصَدَّقَتْ، فَهَلْ لَهَا أَجْرٌ إِنْ تَصَدَّقْتُ عَنْهَا؟ قَالَ: نَعَمْ. رواه البخاري ج۲ ص۱۰۲ حديث ۱۳۸۸، ومسلم ۵۱ (۱۰۰۴).
(۳) رواه ابن جرير في تهذيب الآثار، معارف الحديث ج۴ ص۳۲۸.

# مال هم يو اِمتحان دی

قدرمنو ! انسان ته په کار دي چې ده ته الله ﷻ کوم مال و دولت ورکړی ، دا په دې کې مالي او فرضي حقوق خو لازمي اداء کړي ، او ددينه علاوه نور نفلي صدقات هم موقع په موقع ورکړي . ځکه لکه څرنګ چې په يو غريب باندې غُربت يو امتحان دی چې دا په دې باندې صبر کوي او که نه؟ نو دغه شان په مالدار باندې دا مالداري هم يو اِمتحان دی چې دا په دې کې مالي حقوق اداء کوي او که نه ؟

الله ﷻ خو داسې هم کولې شي چې ددې مالدار نه مال واپس واخلي غريب يې کړي او دا غريب مالدار کړي .

رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي :

إِنَّ لِلّٰهِ عِبَادًا يَخُصُّهُمْ بِالنِّعَمِ لِمَنَافِعِ الْعِبَادِ فَمَنْ بَخِلَ بِتِلْكَ الْمَنَافِعِ عَلَى الْعِبَادِ نَقَلَهَا اللّٰهُ عَنْهُ وَحَوَّلَهَا إِلٰى غَيْرِهِ . (۱)

بيشکه د الله ﷻ څه بندګان دي چې هغوی ته نعمتونه خاص ددې دپاره ورکوي چې بندګانو ته پرې نفع اورسوي ، اوس چې څوک په دغه منافعو باندې بُخل کوي او نورو بندګانو ته ددې نعمتونو نه فايده نه وررسوي نو الله ﷻ ده نه دا نعمتونه واخلي او بل کس ته يې ورکړي (نو بيا هغه کس نورو خلقو ته ددې نعمتونو په ذريعه فايده رسوي) .

ددې په باره کې درته يو دوه واقعې د عبرت د پاره نقل کوم :

## واقعه : دولت مند فقير ، او فقير دولت مند جوړ ول

شهاب الدين محمد بن احمد الشبهي رحمه الله ليکلي چې يو مالدار سړی د خپلې بي بي سره ناست وُ ، يو ځای يې دوده خوړه ، او خوراک هم ډير بهترين وُ ، په دې دوران کې يو فقير بهر آواز وکړو ، په دې سړي باندې د فقير راتګ سخت بَد ولږيده ، بهر ور اُووت ، فقير يې سخت اُورټل او په ډيره بې عزتۍ سره يې رُخصت کړو .

---

(۱) احياء العلوم ج ۳ ص ۳۲۷ .

د خدای شان گوره چې څه وخت روستو دا سړي ډير زيات غريب شو ، ټول نعمتونه ورنه الله ﷻ واخيست ، تر دې چې کورني حالات يې هم دې اندازې ته ورسيده چې د ډيرو جګړو په وجه يې آخر خپلې ښځې ته طلاق هم ورکړو .

د عِدت تيريدلو نه روستو دې ښځې د بل خاوند سره نکاح وکړه چې هغه هم ډير مالدار سړې ؤ ، يو ورځ دا ښځه او دا نوې خاوند دواړه يو ځای ډوډۍ ته ناست وو ، چې په دې کې فقير بهر په دروازه کې آواز وکړو ، او خوراک يې او غوښتو ، خاوند ورته وويل : چې ورشه او فقير ته دا بهترين خوراک ورکړه ، دې ښځې هم خپل خاوند ته وويل : په کار ده چې مونږ دې فقير ته څه خوراک ورکړو ، ځکه هسې نه چې دې خفه شي او د الله ﷻ غضب نازل شی. خاوند ورته وويل : ډيره ښه ده . کله چې دې ښځې فقير ته خوراک وې وړو ، او واپس راغله ، نو ډيره حيرانه او خفه وه ، خاوند ورنه پوښتنه وکړه : چې ولې دومره حيرانه او خفه يې ؟ دې ورته وويل : نن خو ما يو عجيبه منظر وليده ، هغه دا چې يو ورځ زه د مخکيني خاوند سره په روټۍ ناسته ووم ، په دې کې يو فقير بهر په دروازه کې آواز وکړو ، نو زما دا خاوند وَراووَت ، هغه يې ډير بې عزته کړو او ډير د ذلت په حالت کې يې رخصت کړو ، الله ﷻ په هغه باندې داسې غُربت راوست چې هغه ټول نعمتونه يې ورنه واخيست ، تر دې چې ماته يې هم طلاق راکړو . او دومره اندازه يې ذليل کړو چې اوس زه ذادې بهر اُووتم نو دا هماغه زما اولنې خاوند ؤ چې سوال يې کولو .

د دې ښځې دويم خاوند وويل : زه تا ته د دې نه هم زياته عجيبه خبره بيان کړم ، هغه دا چې د هغه دروازې ته کوم فقير درغلې ؤ نو زه هماغه فقير يم ، خو هغه مالدار کس د الله ﷻ د نعمتونو شکريه ادا نه کړه ، د مال فرضي او واجبي حقوق يې نه ادا کول ، نو د هغې په وجه الله رب العزت د هغه نه ټول مال واخيست ، فقير يې کړو ، او زه الله ﷻ مالدار کړم . (۱)

(۱) المستطرف في كل فن مستظرف ، اصلاحي خطبات ج۵ ص ۲۱۱ ، اشرف الحکايات ص ۷۷ . همدا واقعه علامه ابن خلکان په خپل تاريخ کې هم ذکر کړی : ذكر ابن خلكان في تاريخه أنّ رجلًا كان يَأْكُلُ دَجاجةً مع زوجته فجاء سائلٌ فردّه خائبًا . ثم بعد مدة ذَهَبَ مالُه وطلّق زوجته . فتَزَوَّجَتْ غيره . فبينما هُمَا ذات ليلة يأكلانِ دجاجة إذ جاءهما سائلٌ فقال لها : اِدْفَعِيْ إليه الدّجاجة . فدفعتْها إليه فإذا هُوَ زوجُها الاوّل . فأَخْبَرَتْ زوجَها الثاني فقال : واللهِ أنا السّائلُ الاولُ الّذي ردّني خائبًا . نزهة المجالس ج ۱ ص ۲۸۱ .

**فايده** : ددې واقعې نه دا عبرت حاصليږي چې كه يو انسان ته الله ﷻ مال و دولت وركړي ، نو دا دې د الله ﷻ ددې نعمت شكريه اداء كړي ، مالي حقوق دې ادا كوي ، د فقيرانو ، مسكينانو ، كونډو او يتيمانو سره دې احسان كوي . او د الله ﷻ د نافرمانۍ او تكبّر نه دې ځان ساتي ، ځكه كوم رب چې انسان ته مال و دولت وركوي هماغه رب دا هم كولې شي چې دده نه واپس دا ټول نعمتونه واخلي او واپس يې فقير كړي .

## د جُذامي ، گنجي او ړوند واقعه :

نبي كريم صلى الله عليه وسلم فرمايي چې په بني اسرائيلو كې درې ( ۳ ) كسان وو ، يو جُذامي ( يعنى غوښه رژيدونكې بيمارۍ واله ) ، دويم گنجي ، او دريم ړوند . الله ﷻ دوى آزمايل اوغوښتل ، نو يوه فرښته يې ورته ( په انساني شكل كې ) راوليږله ، دا فرښته اول دې جُذامي له راغله او ورته وې ويل : ستا څه خوښ دي ؟ ده ورته وويل : زما ښائسته او روغ بدن خوښ دى چې دا مرض رانه لرې شي ( ځكه خلق ددې نه نفرت كوي ) ، نو فرښتې خپل لاس دده په بدن راښكود چې په دې سره دده وجود مكمل صحيح شو ، بيا ورته فرښتې وويل: ستا كوم مال خوښ دى ؟ جُذامي وويل : زما اوښان خوښ دي . نو ده ته يې يوه بلاربه اُوښه وركړه ( او ورته وې ويل چې الله ﷻ دې په دې كې تاله بركت واچوي ) .

ددې نه پس فرښته گنجي له راغله او ورته وې ويل : ستا څه شى دير خوښ دى ؟ ده ورته وويل : زما روغ سَر خوښ دى چې دا گنجې توب د مانه لرې شي ( ځكه خلق ددينه نفرت كوي ) ، ملائكې ورله په سَر باندې لاس راښكود چې په دې سره دده سَر مكمل صحيح شو او گنجې توب يې ختم شو . بيا فرښتې ورنه پوښتنه وكړه : ستا كوم مال دير خوښ دى ؟ هغه ورته وويل : غواگانې ،نو فرښتې ورله يوه بلاربه غوا وركړه ( او د بركت دُعا يې ورته وكړه )

بيا دا فرښته ړوند ته راغله او ورته وې ويل : ته څه غواړې ؟ ده ورته وويل: روغې سترگې ، چې هرڅوك پرې وينم . دې فرښتې ورله په سترگو لاس راښكود چې په دې سره يې سترگې بينا شوى . بيا يې ترې پوښتنه وكړه : ستا كوم قِسم مال دير خوښ دى ؟ ده ورته وويل : چيلۍ . نو يوه بلاربه چيلۍ يې ورته وركړه . ( او د بركت دُعا يې ورته وكړه ) .

دا درې (۳) واړه په لږه زمانه کې دومره مالدار شو چې یو ته د اُوښانو لوي کنډک جوړ شو ، بل ته د غواګانو لوي کنډک جوړ شو او بل ته د چیلو لویه رَمه جوړه شوه (چې د ډیر والي د لاسه یې غونډ ځنګل نیولي وُ ) .

بیا دا فرښته د الله ﷻ په حُکم سره (په انساني شکل کې ) اول دې جُذامي ته راغله او ورته وې ویل :

زه یو مسافِر مسکین یم ، د سفر سامان راسره ختم شوی ، نن زما د خدای نه بغیر بله څه وسیله نشته او تا ته مې طمع ده ، زه د هغه الله ﷻ په نوم د تا نه یو اُوښ غواړم کوم الله ﷻ چې تا له ښکلې صفا څرمن او روغ بدن درکړې دی (یو اُوښ راله راکړه ) چې زه پرې سور شم او خپل کورته اورسم .

جُذامي ورته وویل : لږې شه ، په ما نور هم ډیر حقونه دي ، تا له څه نه شم درکولی .

فرښتې ورته وویل : شاید زه خو تا پیژنم ، آیا ته جُذامي نه وی چې خلقو به درنه کرکه کوله ؟ آیا ته غریب نه وی چې بیا درله الله ﷻ ډیر مال درکړو ؟

هغه ورته وویل : دا ته څه وایې ؟ دا مال خو ماته د پلار نیکه نه په میراث کې راپاتې دی. فرښتې ورته وویل : که ته دروغ وایې نو الله ﷻ دې تا بیا په زوړ حالت کړي .

ددې نه پس فرښته ګنجي له راغله او د هغه نه یې هم همدغسې سوال وکړو ، هغه ورته هم همدغسې جواب ورکړو . فرښتې ورته وویل : که ته دروغجن یې نو تا دې الله ﷻ بیا په هماغه زاړه حالت کړي .

فرښته بیا ړاند له راغله او ورته وې ویل : چې زه مسافر یم ، هیڅ راسره نشته ، نن زما بغیر د خدای نه او ستا نه بله هیڅ آسره نشته ، زه د هغه الله ﷻ په نوم کوم چې تا له نظر درکړی د تا نه یوه چیلۍ غواړم چې د هغې په مدد سره زه خپل سفر پوره کړم .

هغه ورته وویل : بیشکه زه ړوند ووم (خو الله ﷻ په خپل رحمت سره ما ته نظر راکړو ) او س چې ستا څومره چیلۍ خوښې وي د ځان سره یې بوځه ، قسَم په الله چې هیڅ شی د تا نه منع نه دی .

فرښتې ورته وویل : ته خپل مال د ځان سره سَنبال کړه ، زما مال ته هیڅ ضرورت نشته ، بلکه صرف په تاسو درې ( ۳ ) واړو باندې امتحان کول وو ، هغه اوشو ، الله پاک د تانه راضي شو او د هغوی دواړو نه ناراضه شو . (۱)

**فایده** : فکر او سوچ په کار دی چې د ناشکرۍ د وجې نه د هغوی دواړو نه ټول نعمتونه واپس واخیستل شو او واپس په هماغه زاړه حالت باندې شو ، او دې دریم کس ته د شکر په وجه دا نعمتونه هم په ځای پاتې شو ، الله پاک هم ورنه راضي شو او په دُنیا او آخرت کې هم کامیابه شو .

## د انسان نه دا هر څه پاتې دي

قدرمنو ! که انسان سوچ وکړي نو دا دُنیا فاني ده دده نه دا مال و دولت او دا هر څه پاتې دي ، کامیاب انسان هغه دی چې دې په کې د ځان د پاره د آخرت ذخیره تیاره کړي .

## واقعه :

د دُنیا د فاني کیدو باره کې درته په آخره کې یوه واقعه بیانوم ، کومه چې علامه تقي الدین الشافعي رحمه الله په خپل کتاب " نزهة الناظرین ... " کې او نورو علماؤ هم رانقل کړې چې : حضرت عیسی علیه السلام یوه ورځ سفر کولو ، نو یو کس ورسره ملګرې شو هغه ورته وویل :

یَانَبِيَّ اللهِ أَكُوْنُ مَعَكَ . اې د الله ﷺ پیغمبره ! زه به هم د تاسره په سفر کې ملګرې یم .

( ده ورته وویل : صحیح ده ) دواړه روان شو ، کله چې د نهر یوې غاړې ته ورسیده نو دواړه کیناسته ، د دواړو سره درې ( ۳ ) ډوډۍ ( روټۍ ) وې ، دواړو دوه ( ۲ ) ډوډۍ اُوخوړې ، یوه پاتې شوه ، بیا حضرت عیسی علیه السلام نهر ته لاړو ، اُوبه یې اُوڅکلې ، چې راغی نو دریمه ډوډۍ نه وه ، د ملګري نه یې پوښتنه وکړه :

أَيْنَ الرَّغِيْفُ ؟ هغه دریمه ډوډۍ څه شوه ؟

---

(۱) د جنت کالے حصه اول ص ۳۲ .

ده ورته وويل : لَا أَدْرِيْ . ماته پته نشته . چې هغه څه شوه .

دواړه په سفر روان شو ، په لاره کې يې يوه هوسۍ وليده چې د هغې سره دوه (٢) بچي هم وو ، حضرت عيسی عليه السلام هغه يو بچي ته اِشاره وکړه نو هغه راغی ، هغه يې ذبحه کړو ، وريت يې کړو ، او دواړو اُوخوړو ، بيا حضرت عيسی عليه السلام د هوسۍ دې بچي ته وويل :

قُمْ بِإِذْنِ اللهِ عَزَّ وَجَلَّ . د الله ﷻ په حکم پاڅه .

د هوسۍ بچی پاڅيده ، او روان شو . بيا حضرت عيسی عليه السلام دې سفر ملګري ته وويل :

أَسْأَلُکَ بِالَّذِيْ أَرَاکَ هٰذِهِ الْآيَةَ مَنْ أَخَذَ الرَّغِيْفَ ؟

زه تا نه د هغه الله ﷻ په واسطه پوښتنه کوم چا چې تاته دا معجزه او نښه دراُوخوده چې هغه دريمه ډوډۍ چا واخيسته ؟

هغه ورته وويل : لَا أَدْرِيْ . ماته پته نشته .

دوی دواړه بيا په سفر روان شو ، تر دې چې يو دَشتې (ځنګل) ته ورسيده ، هلته حضرت عيسی عليه السلام څه خاورې راجمع کړې ، او ورته وې ويل :

كُنْ ذَهَبًا بِإِذْنِ اللهِ عَزَّ وَجَلَّ . د الله ﷻ په حکم سره سره زَر شئ .

نو د هغې خاورو نه سره زَر جوړ شو ، بيا حضرت عيسی عليه السلام دا په درې ( ٣ ) حصو تقسيم کړه ، او دې د سفر ملګري ته يې وويل : دا يوه حصه سره زَر ستا شو ، دا دويمه حصه زما شو ، او دا دريمه حصه دهغه چا شو چا چې هغه دريمه ډوډۍ اخيستې وي .

دې کس وويل : هغه خو ما اخيستې وه . نو حضرت عيسی عليه السلام ورته وويل :

فَكُلُّهُ لَکَ . دا ټول ستا شو .

بيا حضرت عيسی عليه السلام دده نه جدا شو . دا سړی دې سرو زَرو ته ناست وُ ، په دې لاره دوه (٢) کسان تيريده ، کله چې دوی ددې کس سره دا سره زَر وليده ، نو دده د قتلولو اِراده

يې وکړه ، ده ورته وويل : ماته څه مه وايئ ،دا به په خپل مينځ کې تقسيم کړو ، هغوی ورسره دا اومنله .

بيا يې خپل مينځ کې وويل : چې يو کس به بازار ته وليږو چې خوراک راوړي ، او وې خورو ، او دا دوه کسان به دلته ددې سروزَرو د حفاظت د پاره ناست وي ، بيا به يې سره تقسيم کړو . کله چې هغه يو کس بازار ته لاړو ، خوراک يې واخيست ، د ځان سره يې سوچ وکړو چې په دې خوراک به زهر واچوم چې دا دواړه پرې مړه شي او دا ټول سره زَر به ماته پاتې شي ، نو ده په دې خوراک کې زهر واچول . دلته دې دوه (۲) کسانو مشوره وکړه چې کله د بازار نه دا کس خوراک راوړي نو د مخې سره به يې قتل کړو ، او دده حصه سره زَر به هم مونږ ته پاتې شي .

کله چې د بازار نه هغه کس خوراک راوړو نو دوی دواړو ورباندې حمله وکړه او هغه يې قتل کړو ، بيا يې خپل مينځ کې يو بل ته وويل : راځه چې اول دا خوراک وکړو نو بيا به دا سره زَر سره تقسيم کړو ، کله چې دوی خوراک وکړو نو په هغې کې خو زهر ګډ شوي وُ ، نو د مخې سره دواړه پرې مړه شو . درې (۳) واړه کسان مړه پراته وو ، او سره زَر هم هماغه شان باقي پاتې وو .

حضرت عيسی عليه السلام او دده څه ملګري دوباره په دې لاره تيريده نو وې ليده چې سره زَر هم هماغه شان پراته دي او درې (۳) کسان مړه هم ورسره پراته دي ، نو خپلو ملګرو ته يې وويل :

هٰذِهِ الدُّنْيَا فَاحْذَرُوْهَا .

دا د دُنيا اَنجام دی (څنګه يې دا درې واړه مړه کړه او په خپله باقي پاتې ده) تاسو ددې د محبت او اَنجام نه وويريږئ . (۱)

بهر حال خبره مې دا کوله چې د هر چانه دا مال و دولت پاتې دی خو په دې کې کامياب انسان هغه دی چې دا په دې مال کې د ځان دپاره د آخرت توخه تياره کړي .

---

(۱) نزهة الناظرين في الاخبار والآثار المروية عن الانبياء والصالحين ص ۴۹۳ . وهكذا في التبر المسبوك للامام الغزالي رحمه الله

د مسلم شريف حديث دی ، رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي :

يَقُوْلُ الْعَبْدُ مَالِيْ مَالِيْ ، وَإِنَّمَا لَهُ مِنْ مَالِهِ ثَلَاثٌ : مَا اَكَلَ فَأَفْنٰى ، أَوْ لَبِسَ فَأَبْلٰى ، أَوْ أَعْطٰى فَاقْتَنٰى ، مَا سِوٰى ذٰلِكَ فَهُوَ ذَاهِبٌ وَتَارِكُهُ لِلنَّاسِ . (۱)

بنده وايي چې دا زما مال دی ، دا زما مال دی ، حالانکه د ده مال صرف درې (۳) شيان دي : ۱. هغه چې وې خوړو او ختم يې کړ ، ۲. يا هغه چې وايې غوست او زوړ يې کړو ، ۳. او يا هغه چې د الله ﷻ په لاره کې يې چا فقير او حاجتمند له ورکړو او د خپل ځان د پاره يې د قيامت ذخيره جوړه کړه . او د دينه علاوه چې څه دي نو دې ورنه تلونکې دی ، او نورو ته يې پريږدي (يعنی د دې باقي مال نه دې لاړ ، او دا يې وارثانو ته پاتې شو ) .

خلاصه دا چې دا دُنيا فاني او آخر ختميدونکې ده ، کامياب انسان هغه دی چې دې دا مال و دولت او ژوند غنيمت وګڼي ، د مال فرضي حقوق اداء کړي ، او ورسره ورسره د نفلي صدقاتو او نور د خير په کارونو کې خپل مال ولږوي ، څکه حضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنه خو تر دې پورې فرمايي :

أُمِرْنَا بِالصَّدَقَةِ كُنَّا نُحَامِلُ فَنَتَصَدَّقُ . (۲)

کله به چې مونږ ته د صدقې ورکولو حکم اوشو نو مونږ به په مزدوری په خپله شا باندې بوج وړلو ، او بيا به مو د هغې مزدوری نه صدقه ورکوله .

**دُعا** : الله تبارک وتعالی دې مونږ ته هم د صدقې ورکولو توفيق راکړي چې د فقيرانو ، مسکينانو ، کنډو ، يتيمانو او عاجزو سره مدد وکړو ، د هغوی ضرورتونه پوره کړو . او الله ﷻ دې مونږ ټولو ته د نبي کريم ﷺ او صحابه کرامو په نقشِ قدم باندې د تللو توفيق رانصيبه کړي .

آمِيْن يَارَبَّ الْعَالَمِيْن .

وَاٰخِرُ دَعْوَانَا أَنِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ

---

(۱) رواه مسلم ج۴ ص۲۲۷۳ حديث ۲۹۵۹ کتاب الزهد والرّقائق ، الترغيب والترهيب ج۱ (۵۹۳/۱۱) .

(۲) وفي رواية : كُنَّا نُحَامِلُ عَلٰى ظُهُوْرِنَا . مسلم ج۱ ص۳۲۷ .

# د صدقې متعلق فقهي مسايل

د صدقې په باره کې درته يو څو ضروري فقهي مسايل ذکر کوم :

## د نفلي صدقې حکم

نفلي صدقه په عامو حالاتو کې په انسان باندې لازم نه ده ، بلکه مستحب ده . (۱)
البته په خاصو حالاتو کې په انسان باندې لازم ده . (۲)

---

(۱) اعلم أنّ الصدقة تستحب بفاضل عن كفاية من يمونه ... شامي زكريا ۳/۳۰۸ باب المصرف ، مطلب الافضل على ان ينوى بالصدقة جميع المسلمين . فتاوى محموديه ج۱۴ ص ۳۵۸ .

(۲) علماء ليکي چې د انسان غاړه صرف په دې نه خلاصيږي چې دې خالصه فرضي زکوة ورکړي او نور ګني دده په ذمه هيڅ حقوق نشته ، بلکه د زکوة اداء کولو نه روستو هم په خاصو حالاتو کې د انسان په ذمه د ضرورتمند و امداد کول لازمي دي . البته صرف دومره خبره ده چې د زکوة د پاره يو خاص قانون دی چې د هغې مطابق زکوة ورکول په هر حالت کې فرض او ضروري دي ، او دا نور مالي حقوق په انسان باندې په خاصو حالاتو کې فرض دي ، يعنی که چيرته ضرورت وُ نو په ده امداد کول فرض دي ، او که ضرورت نه وُ نو په ده هم فرض نه دي . معارف القرآن البقره في ضمن آيت ۱۷۷ .

رسول الله صلى الله عليه وسلم هم همدا خبره بيان کړې . او په دليل کې يې د قرآن مجيد آيت ذکر کړی ، نبي ﷺ فرمايي :

إِنَّ فِي الْمَالِ لَحَقًّا سِوَى الزَّكٰوةِ ثُمَّ تَلَا : ﴿لَيْسَ الْبِرَّ أَنْ تُوَلُّوا وُجُوهَكُمْ قِبَلَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ وَلٰكِنَّ الْبِرَّ مَنْ اٰمَنَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَالْمَلٰٓئِكَةِ وَالْكِتٰبِ وَالنَّبِيّٖنَ وَاٰتَى الْمَالَ عَلٰى حُبِّهٖ ذَوِي الْقُرْبٰى وَالْيَتٰمٰى وَالْمَسٰكِيْنَ وَابْنَ السَّبِيْلِ وَالسَّآئِلِيْنَ وَفِي الرِّقَابِ وَأَقَامَ الصَّلٰوةَ وَاٰتَى الزَّكٰوةَ ...﴾ البقرة ايت ۱۷۷ . اخرجه الترمذي ، وابن ماجه ، والدارمي ، مشكوة باب فضل الصدقة حديث ۲۶ كتاب الزكوة .

بيشکه په مال کې د زکوة نه علاوه هم ( د الله ﷻ ) حق شته ، بيا نبي عليه السلام دا آيتِ مبارکه تلاوت کړو ، الله تعالى فرمايي :

ترجمه : نيکي صرف دا نه ده چې تاسو خپل مخونه مشرق او مغرب طرف ته وګرځوئ بلکه ( لويه او ) اصل نيکي خو داده چې څوک ايمان راوړي په الله تعالى ، په ورځ د آخرت ، په فرښتو ، په کتابونو او پيغمبرانو باندې ، او ورکوي مال د الله تعالى په محبت کې خپلو ( حاجتمندو ) خپلوانو ته ، يتيمانو ته ، مسکينانو ته ، مسافرو ، او ( محتاجو ) سوال کوونکو ته ، او د غلامانو په خلاصولو کې ، او د لمونځ پابندي کوي او زکوة ورکوي ...

**فايده** په دې آيت کې د نيکۍ په کارونو کې د ايمان نه روستو د يتيمانو ، مسکينانو ، مسافرو او نورو حاجتمندو طبقو سره د مالي امداد ذکر دی ....... ( نور تفصيل په راتلونکې صفحه لاندې حاشيه کې اوګوره )

# غني ته د نفلي صدقې ورکولو حکم

څوک چې مالدار (صاحب د نصاب) وي نو که چيرته ده ته نفلي صدقه ورکړې شي نو دا صدقه نه ده بلکه دا هِبه ګرځي، په دې باندې د صدقې ثواب نه ملاويږي، البته هبه ګرځي.

دغه رنګې که په غني کس باندې د صدقې خوراک وکړې شي نو دا صدقه نه ده او نه د صدقې ثواب پرې حاصليږي، بلکه دا هبه وګرځيده. (۱)

البته علماء ليکي چې د نفلي صدقې په دعوت کې غني شريکيدې شي. (۲)

---

او بيا وريسې د لمانځه او زکوة حکم دی. معلومه شوه چې دا دلته د حاجتمندو د ضرورت پوره کولو کوم ذکر دی دا د فرضي زکوة نه علاوه دی، ځکه د فرضي زکوة تذکره خو مستقلا ذکر ده، او د ضرورتمندو مالي امداد کولو ذکر مستقلا دی.

امام قرطبي رحمه الله ددې پاس حديث ذکر کولو نه روستو فرمايي: چې ددې حديث باره کې اګر چې د بعضو علماؤ اقوال شته (چې بعضې ورته ضعيف وايي) خو د آيت نه پخپله هم د حديث د مضمون تاييد کيږي، دې وايي

قلتُ والحديث وإن كان فيه مقالٌ فقد دلّ على صحته معنى ما في الآية نفسها من قوله تعالى: ﴿وَأَقَامَ الصَّلَوٰةَ وَآتَى الزَّكَوٰةَ﴾. فذكر الزكوة مع الصلوة. وذلك دليل على أنّ المراد بقوله: ﴿وَآتَى الْمَالَ عَلَىٰ حُبِّهِ﴾ ليس الزكاة المفروضة فإنّ ذلك كان يكون تكرارًا. والله اعلم. واتّفق العلماء على أنّه إذا نزلت بالمسلمين حاجة بعد اداء الزكوة فإنه يجب صرف المال اليها. قال مالك رحمه الله يجب على النّاس فداء أسراهم وإن استغرق ذلك أموالهم. وهذا اجماع ايضًا. وهو يقوّي ما اخترناه. والموفق الإله. تفسير قرطبي ج۲ ص ۲۳۷ البقرة آيت ۱۷۷.

امام غزالي رحمه الله په احياء العلوم کې ذکر کړي چې د بعضې تابعينو مذهب دا دی چې په مال کې د زکوة نه علاوه نور حقوق شته، لکه دا مذهب د نخعي، شعبي، عطاء او مجاهد رحمهم الله دی.

د امام شعبي رحمه الله نه چا پوښتنه وکړه چې په مال کې د زکوة نه علاوه څه بل حق شته؟ هغه ورته وويل: آو. او بيا يې د قرآن مجيد دا آيت تلاوت کړو: ﴿وَآتَى الْمَالَ عَلَىٰ حُبِّهِ ذَوِي الْقُرْبَىٰ....﴾

ددې وجې نه د جمهورو علماؤ او ائمه اربعهؤ دا مذهب دی چې په مال کې بَحيثيتِ مال د زکوة نه علاوه بل شی واجب نه دی، خو دنورو حيثياتو د وجې، يا په خاصو موقعو او خاصو حالاتو کې په ده باندې بيا هم وجوب شته، لکه د خپلې بي بي او دورو بچو نفقه، يا چې يو کس د وَلږې يا تندې د وجې مر کيږي د هغه مدد کول.

(۱) لان الصدقة على الغنيّ هبة. الدر المختار كتاب الهبة ۵/ ۶۹۸ ط سعيد، كفايت المفتي ج ۴ ص ۳۲۲ صدقات نافله.

(۲) لان الصدقة على الغنيّ هبة. شامي ج۲ ص ۳۵۵ مطلب في الحوائج الاصلية طبع ايچ ايم سعيد، آپ کے مسائل اور ان کا حل ج۵ ص ۲۲۱.

## په صدقه کې فقيرانو ته نغدې روپۍ ورکول بهتر دي

که چيرته يو سړی په صدقه کې نغدې روپۍ ورکوي، يا تيار پوخ شوی خوراک ورکوي، يا بل شی ورکوي نو دا ټول جائز دي، البته نغدې روپۍ ورکول بهتر دي، ځکه په دې روپو سره فقير هر قسمه حاجت پوره کولی شي. (۱)

## د حرام کاروبار واله کس د هديې حکم

که چيرته د يو کس ټول کاروبار د حرامو وي او د حلالو هيڅ کاروبار يې نه وي نو بيا دده هديه قبلول، يا دده خوراک کول جائز نه دي. البته که هغه ووايي چې دا مې حلال مال پيدا کړی، يا مې د چا نه قرض راخيستی نو بيا خير دی.

او که اکثره کاروبار يې د حلالو وُ نو بيا دده هديه قبلول جائز دي. (۲)

## د حرام مال نه د صدقې ورکولو حکم

صدقه د حلال مال نه په کار ده ځکه د حرام مال نه صدقه کول الله ﷻ نه قبلوي. د مشکوة شريف حديث دی نبي عليه السلام فرمايي:

إِنَّ اللهَ طَيِّبٌ لَايَقْبَلُ إِلَّا طَيِّبًا. (۳)

الله تعالى پاک دی او صرف پاک شی قبلوي.

---

(۱) ودفعُ القيمة اى الدّراهم أفضل من دفعِ العين على المذهب المفتى به.... وفى الشامية: لانّ العلة فى أفضليّة القيمة كونها أعون على دفع حاجة الفقير لاحتمال أنّه يحتاج غير الحنطة ... شامي ج۲ ص ۳٦٦، آپ کے مسايل اور ان کا حل ج۵ ص ۲۲۲.

(۲) اهدى الى رجل شيئًا او أضافه ان كان غالب ماله من الحلال فلا بأس. إلا أن يعلم بانه حرام. فأن كان الغالب هو الحرام ينبغي لايقبل الهدية ولايأكل الطعام. إلا آن يخبره بانّه حلال ورثته او استقرضه من رجل. كذا فى الينابيع، عالمكيري ج۵ ص ۳۴۲ الباب الثاني فى الهدايا والضيافات، آپ کے مسايل اور ان کاحل ج ۵ ص ۲۲۵.

(۳) مشکوة ص ۲۴۱ كتاب البيوع باب الكسب وطلب الحلال الفصل الاول، وباب فضل الصدقة ص ۱٦۸، مسلم ج۲ ص۷۰۳ حديث ۱۰۱۵، آپ کے مسائل اور ان کا حل ج۵ ص ۲۰۱.

علماء ليکي چې د حرام مال نه د صدقې ورکولو داسې مثال دی لکه يو سړی د ګندګۍ نه د که ټوکری يو بادشاه ته په هديه کې پيش کوي، نو په دې سره خو بادشاه نه خوشحاليږي بلکه اُلټه پرې خفه کيږي.

علماؤ خو تر دې پورې ليکلي چې حرام مال د ثواب په نيت ورکول ډير زيات خطرناک دي. (يعنی که چيرته يو کس دا حرام مال ځانته حلال اوګڼي او د صدقې په وخت د ثواب نيت وکړي نو په دې سره انسان کافر کيږي). (۱)

## زکوة نه اداء کول او صدقه ورکول

که چيرته د يو سړي په ذِمه فرضي زکوة پاتې وي او دې نفلي صدقه ورکوي نو اګر چې د صدقې ثواب ورته ملاويږي، خو فرض پريښودل او مستحب اداء کول بې عقلي ده، ځکه د فرضو پريښودل ګناه کبيره ده. (۲)

## اول قرض اداء کول او بيا صدقه ورکول

که چيرته په سړي باندې قرض وي نو ده ته په کار دي چې اول دا قرض اداء کړي او بيا نفلي صدقه ورکوي، ځکه د قرض اداء کول فرض دي او نفلي صدقه مستحب ده، اګرچې ده ته په دې صدقه ورکولو ثواب ملاويږي خو بيا هم اول د قرض اداء کول ضروري دي. (۳)

## پيشه وَر يا نشه يي خلقو ته صدقه ورکول

بعضې خلق صاحبِ نصاب يعنی مالدار وي، په صحت باندې ښه روغ وي، ضرورتمند نه وي خو سوال کول يې هسې عادت ګرځيدلې وي، يا پودريان او چرسيان وي سوال کوي

---

(۱) انّما يكفر إذا تصدّق بالحرام القطعي اى مع رجاء الثواب النّاشي عن استحلاله كما مرّ فافهم. الدر المختار مع رد المحتار نعمانيه ج۲ ص ۲٦ مطلب فی التصدق من المال الحرام كتاب الزكوة، بذل المجهود ۳۷ / ۱ باب فرض الوضوء طبع مكتبه رشيديه سهارنپور، بحر ۱۲۲ / ۵ كتاب السير باب احكام المرتدين، فتاوى محموديه ج۱۴ ص ۳٦۰.

(۲) اعلم أنّ ترکَ الفرضِ والواجب ولو مرّة بلا عذر كبيرة. شرح فقه اكبر ص ٦۸ طبع مجتبائي دهلي، فتاوى محموديه ج ۱۴ ص ۳۵۹.

(۳) اَلفرضُ أفضلُ من النّفل بسبعين درجة. مرقات ۳۳۵ / ۳ باب الافلاس والانظار الفصل الاول طبع بمبی، فتاوى محموديه ج۱۴ ص ۳۵۹..

نو داسې خلقو ته صدقه ورکول نه دي په کار ، بلکه ددې په ځای ضرورت مندو ته صدقه ورکول په کار دي . (۱)

د داسې خلقو دپاره سوال کول ناجائز دي . (۲)

او داسې خلقو ته زکوة يا صدقه واجبه ورکولو سره زکوة او صدقاتِ واجبه هم نه اداء کيږي . (۳)

## په صدقه کې فقير ته زړې جامې ورکول

اگر چې فقير ته په صدقه کې ښه شی او نوې جامې ورکول په کار دي ځکه د نوو جامو ورکولو ثواب زيات دی خو بيا هم که چېرته د فقير ضرورت وربانديې پوره کيده نو زړې جامې هم ورکولې شی . (۴)

(۱) ولا يحلّ أن يسأل شيئًا من القوت (مَن له قوت يومه) بالفعل او بالقوّة كالصحيح المكتسب . وفى الشامية ويأثم معطيه ... قال الاكمل فى المشارق : وأمّا الدّفع الى مثل هذا السائل عالمًا بحاله فحكمه فى القياس الاثم به . لانه إعانة على الحرام لكنّه يجعل هبة وبالهبة للغني او لمن لايكون محتاجا اليه لايكون إثما . اى لانّ الصدقة على الغني هبة كما انّ الهبة للفقير صدقة . شامي ج۲ ص ۳۵۵ مطلب فى الحوائج الاصلية ، آپ کے مسائل اور ان کا حل ج۵ ص ۲۲۰ .

(۲) ولا يحلّ له أن يسأل شيئًا من القوت مَن له قوت يومه . النهرالفائق ۱/۴۶۹ باب المصرف ، اللدرمع الشامي ۲/۳۵۴ باب المصرف ، تبيين الحقائق ۱/۳۰۵ باب المصرف ، فتاوى محموديه ج۱۴ ص ۳۶۱ .

(۳) ولا الى غنيّ يملك قدر نصاب فارغ عن حاجته الاصليّة من أيّ مال كان . شامي نعمانيه ج۲ ص ۶۴ باب المصرف ، النهر الفائق ج۱ ص ۴۶۴ باب المصرف ، تبيين الحقائق ۱/۳۰۲ باب المصرف ، فتاوى محموديه ج۱۴ ص ۳۶۱ .

(۴) فتاوى محموديه ج۱۴ ص ۳۶۳ .

# د صدقې په باره کې نور بهترين واقعات :

د صدقې په باره کې درته يو څو نور بهترين واقعات نقل کوم ، مقررين حضرات د دينه هم اِستفاده کولې شي .

## د صدقې په وجه د نيکۍ تله درنيدل

رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي :

تَعَبَّدَ عَابِدٌ مِنْ بَنِيْ إِسْرَائِيْلَ فِيْ صَوْمَعَتِهِ سِتِّيْنَ عَامًا وَأُمْطِرَتِ الْأَرْضُ فَاخْضَرَّتْ (وَأَشْرَفَ) الرَّاهِبُ مِنْ صَوْمَعَتِهِ فَقَالَ : لَوْ نَزَلْتُ فَذَكَرْتُ فَازْدَدْتُ خَيْرًا . فَنَزَلَ وَمَعَهُ رَغِيْفٌ أَوْ رَغِيْفَانِ فَبَيْنَمَا هُوَ فِي الْأَرْضِ لَقِيَتْهُ امْرَأَةٌ فَلَمْ يَزَلْ يُكَلِّمُهَا وَتُكَلِّمُهُ حَتّٰى غَشِيَهَا . ثُمَّ أُغْمِيَ عَلَيْهِ فَنَزَلَ الْغَدِيْرَ يَسْتَحِمُّ فَجَاءَ سَائِلٌ (فَأَوْمَأَ) إِلَيْهِ أَنْ يَأْخُذَ الرَّغِيْفَيْنِ . ثُمَّ مَاتَ . فَوُزِنَتْ عِبَادَةُ سِتِّيْنَ سَنَةً بِتِلْكَ الزَّنْيَةِ فَرَجَحَتِ الزَّنْيَةُ بِحَسَنَاتِهِ . ثُمَّ وُضِعَ الرَّغِيْفُ أَوِ الرَّغِيْفَانِ مَعَ حَسَنَاتِهِ فَرَجَحَتْ حَسَنَاتُهُ . فَغُفِرَلَهُ . (۱)

د بني اسرائيلو يو عابِد عبادت کولو ، هغه په خپله ګرجه کې شپيته (۶۰) کاله عبادت وکړو ، (يو ځل) په زمکه باران اوشو ، هغه شنه شوه (هر طرف ته شينکې را اُوټو کيده)، دا راهب د خپلې ګرجې نه راووت ، او وې ويل : که چيرته زه (د ګرجې نه) لاندې کوز شم، او

---

(۱) رواه ابن حبان في صحيه ج۲ ص ۱۰۲ حديث ۳۷۸ ، و رواه السيوطي في الدر ۱ / ۳۵۵ ، والمنذري في الترغيب ۲۳/۲ (۵۰ / ۶۱۵) ، والهندي في الكنز ۱۶۱۷۳ ، المتجر الرابح في ثواب العمل الصالح ص ۱۴۵ ثواب اطعام الطعام لوجه الله ، وهكذا في تنبيه الغافلين ص ۱۵۰ باب ما تدفع الصدقة عن صاحبها . ورواه البيهقي عن ابن مسعود موقوفا عليه . ولفظه : عَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ رَاهِبًا عَبَدَاللهَ فِيْ صَوْمَعَتِهِ سِتِّيْنَ سَنَةً . فَجَاءَتِ امْرَأَةٌ فَنَزَلَتْ إِلٰى جَنْبِهِ . فَنَزَلَ إِلَيْهَا فَوَاقَعَهَا سِتَّ لَيَالٍ . ثُمَّ سُقِطَ فِيْ يَدِهِ فَهَرَبَ . فَأَتَى مَسْجِدًا فَآوٰى فِيْهِ ثَلَاثًا لَا يَطْعَمُ شَيْئًا فَأُتِيَ بِرَغِيْفٍ فَكَسَرَهُ فَأَعْطٰى رَجُلًا عَنْ يَمِيْنِهِ نِصْفَهُ وَأَعْطٰى آخَرَ عَنْ يَسَارِهِ نِصْفَهُ . فَبَعَثَ اللهُ إِلَيْهِ مَلَكَ الْمَوْتِ فَقَبَضَ رُوْحَهُ . فَوُضِعَتِ السِّتُّوْنَ فِيْ كَفَّةٍ وَوُضِعَتِ السِّتَّةُ فِي الْكَفَّةِ . فَرَجَحَتْ يَعْنِي السِّتَّةُ . ثُمَّ وُضِعَ الرَّغِيْفُ فَرَجَحَ يَعْنِيْ رَجَحَ الرَّغِيْفُ السِّتَّةَ . رواه البيهقي في الشعب موقوفا بهذا اللفظ ، المتجر الرابح في ثواب العمل الصالح ص ۱۳۷ ثواب صدقة المقل

د الله ﷻ عبادت وکړم نو ماته به نور هم خير ملاو شي ، پس هغه لاندې راکوز شو ، او د هغه سره يو يا دوه چَپاتي (يعنی ډوډۍ) هم وې ، دغه وخت چې ده په زمکه دالله ﷻ ذکر کولو نو ده له يوه ښځه راغله ، ده به د هغې سره خبرې کولې ، او هغې به دده سره خبرې کولې، تر دې چې (نفس يې بې قابو شو ، او د) هغې سره يې زِنا وکړه ، بيا په ده باندې بې هوشي راغله ، غُسل خانې ته لاړو ، او غسل يې وکړو ، ده ته يو سائِل راغی (خوراک يې ورنه اوغوښت) ، ده هغه سائل ته اِشاره وکړه چې دواړه چپاتي (ډوډۍ) واخله ، بيا هغه راهب وفات شو ، دده د شپيتو کالو عبادت د زِنا په بدله کې تول کړې شو نو زِنا يې په نيکيو باندې درَنه شوه ، بيا هغه يو يا دوه چپاتي (کوم چې ده سائل ته ورکړي وو هغه) د ده د نيکيو سره يو ځای تول کړې شو نو په دې سره دده نيکۍ درنې شوې ، نو ده ته مغفرت وکړې شو .

## د صدقې مثال

نبي عليه السلام فرمايي :

وَ اٰمُرُكُمْ بِالصَّدَقَةِ وَمَثَلُ ذٰلِكَ كَمَثَلِ رَجُلٍ اَسَرَهُ الْعَدُوُّ فَاَوْثَقُوْا يَدَهُ إِلٰى عُنُقِهِ وَقَرَّبُوْهُ لِيَضْرِبُوْا عُنُقَهُ فَجَعَلَ يَقُوْلُ : هَلْ لَكُمْ اَنْ اَفْدِيَ نَفْسِيْ مِنْكُمْ وَجَعَلَ يُعْطِي الْقَلِيْلَ وَالْكَثِيْرَ حَتّٰى فَدٰى نَفْسَهُ . (۱)

## د صدقې په وجه مغفرت

فقيه ابوالليث ثمرقندي رحمه الله په "تنبيه الغافلين" کې يوه واقعه رانقل کړې ، دې وايي چې ما د خپل پلار نه اوريدلي چې : د حضرت عيسی عليه السلام په زمانه کې يو سړې وُ ، خلقو به ورته د ډير بُخل د وجې نه ملعون ويلو ، يوه ورځ ده ته يو کس راغی او ورته وې ويل:

(۱) رواه الترمذي وصححه ، وابن خزيمة ج۳ ص ۱۹۵ حديث ۱۸۹۵ ، وابن حبان والحاكم في المستدرك ۱ / ۲۲۱ . (فيه الحديث ۱۵۳۴) وقال : صحيح على شرطهما . ورواه المنذري في الترغيب ۲ / ۳۹۷ . المتجر الرابح في ثواب العمل الصالح ص ۱۳۵ ثواب الصدقة وفضلها .

يَا مَلْعُوْنُ ! أَعْطِنِيْ شَيْئًا مِّنَ السِّلَاحِ أَسْتَعِيْنُ بِهٖ فِيْ غَزْوِيْ وَتَنْجُوْ بِهٖ مِنَ النَّارِ

اې ملعونه ! ماته څه اسلحه راکړه زه به په جهاد کې ددينه مدد واخلم ، او ته به ددې (صدقې) په وجه د جهنم د اُور نه نجات اومومې .

دې ملعون ورنه مخ واړول ، او هيڅ يې ورنه کړه . هغه سړې همدغه شان نامراده واپس لاړ ، معلون په زړه کې پښيمانه شو ، بيا يې ورپسې آواز وکړو ، او خپله توره يې ورکړه .

دا سړې ورنه روان شو ، په لاره کې ورله حضرت عيسى عليه السلام په مخه ورغى چې ورسره يو عابِد هم وُ کوم چې اويا (۷۰) کاله د الله ﷻ عبادت کړې وُ ، حضرت عيسى ؑ ددې کس نه پوښتنه وکړه :

مِنْ أَيْنَ جِئْتُمْ بِهٰذَا السَّيْفِ ؟ دا توره دې د کوم ځاى نه راوړه ؟

ده ورته ووېل : د ملعون نه مې راوړه . حضرت عيسى ؑ د ملعون په دې صدقه باندې ډير خوشحاله شو . ملعون په خپله دروازه کې ناست وُ ، کله چې عيسى ؑ او دا عابد دواړه په دې لاره تيريدل ، نو ملعون په زړه کې ځان سره ووېل : ورپاڅيږم چې د حضرت عيسى ؑ او ددې عابد مخ اوګورم . کله چې دې راپاڅيدو ، او ددوى دواړو مخ ته يې اوکته ، نو په دې وخت کې دې عابِد حضرت عيسى عليه السلام ته ووېل :

زه خو ددې ملعون نه تختم ، هسې نه چې دده د سپيره توب په وجه زه په اُور کې او سوزم . الله رب العزت حضرت عيسى عليه السلام ته وحې وکړه :

قُلْ لِعَبْدِيْ هٰذَا الْمُذْنِبِ إِنِّيْ قَدْ غَفَرْتُ لَهٗ بِصَدَقَتِهٖ بِالسَّيْفِ وَبِحُبِّهٖ إِيَّاكَ . وَقُلْ لِلْعَابِدِ إِنَّهٗ رَفِيْقُكَ فِي الْجَنَّةِ .

زما دې ګناهګار بنده ته ووايه چې ما ده ته د تورې د صدقه کولو ، او د تاسره د محبت کولو په وجه مغفرت وکړو . او دې عابد ته ووايه چې دا ملعون به په جنت کې ستا ملګرې وي .

عابد چې کله دا خبره واوريده ، نو وې ويل :

وَاللهِ مَا أُرِيْدُ الْجَنَّةَ مَعَهٗ . وَلَا أُرِيْدُ رَفِيْقًا مِثْلَهٗ .

قسم په الله ، زه خو جنت ته د ده سره يو ځای تلل نه غواړم ، او نه د غه شان د جنت ملګري غواړم.

الله رب العزت حضرت عيسى عليه السلام ته وحي راوليږله چې دې عابد ته ووايه :

إِنَّكَ لَمْ تَرْضَ بِقَضَائِيْ وَحَقَرْتَ عَبْدِيْ فَإِنِّيْ قَدْ جَعَلْتُكَ مَلْعُوْنًا مِنْ أَهْلِ النَّارِ . وَ بَدَّلْت مَنَازِلَكَ فِي الْجَنَّةِ مَعَ الَّذِيْ لَهُ فِي النَّارِ . وَأَعْطَيْتُ مَنَازِلَكَ فِي الْجَنَّةِ لِعَبْدِيْ . وَمَنَازِلَهُ فِي النَّارِ لَكَ . (۱)

بيشکه ته زما په قضا ( او فيصله ) باندې راضي نه شوی ، او زما د بنده سپکاوی دې وکړو ، لهذا ته مې اوس ملعون او د جهنميانو نه اوګرځولی ، او خپلې درجې دې د جهنم په درجو بدلې کړی ، او ستا د جنت درجې مې خپل دې بنده ( ملعون ) له ورکړی ، او د هغه د دوزخ واله ځای مې ستا د پاره مقرر کړو .

## د صدقې په وجه عذاب دفع کيدل

ابو الليث ثمرقندي رحمه الله په خپل سَند سره يوه واقعه رانقل کړی ، چې حضرت عيسى عليه السلام په يو کلي تيريده ، په دې کلي کې يو ډُهوبي وُ ( کوم به چې جامې وينځلی او رنګ کولی به يې ) ، د دې کلي خلقو حضرت عيسى عليه السلام ته شکايت وکړو ، چې دا ډُهوبي زمونږ جامې اُوشلوي او بيا يې د ځان سره حِصارې کړي وي ، نو ته د الله جل جلاله نه دا دُعا اوغواړه چې الله جل جلاله دې دوباره د خپلو جامو د پَنډ سره نه راواپس کوي ( بلکه هملته يې تباه کړي ) ، حضرت عيسى عليه السلام دا دُعا وکړه :

اَللّٰهُمَّ لَا تردّهُ بِرزمَتِهِ . اې الله ! ته دا ډُهوبي د خپل پنډ سره روغ مه راواپس کوی .

کله چې دا ډُهوبي د مخکې په شان د جامو د پنډ سره غره ته لاړو ، په پنډ کې ورسره درې دوډۍ ( روټۍ ) هم وی ، نو هلته په غره کې يو عابِد اوسيده ، هغه ده ته راغی ، سلام يې ورباندې واچول ، او ورته وې ويل :

(۱) تنبيه الغافلين ص ۱۳۸ باب فضل الصدقة طبع دار الفکر بيروت .

که دودی درسره وي نو يا خو يې راباندې اُوخوره ، او يا يې راته اُوښايه چې زه يې اوګورم او بُوي يې کړم ، ځکه د ډير وخت نه ما هيڅ شی نه دی خوړلی .

نو دهوبي هغه ته يوه دودی ورکړه ، هغه عابد ورته دا دُعا وکړه :

يَا قَصَّارُ ! غَفَرَ اللهُ لَکَ ذَنْبَکَ وَطَهَّرَ قَلْبَکَ .

اې دهوبي ! الله تعالی دې ستا ګناهونه معاف کړي ، او ستا زړه دې صفا کړي .

د دې دُعا په اَوريدو سره دهوبي دويمه دودی هم ورکړه ، نو عابد ورته دا دُعا وکړه :

يَا قَصَّارُ ! غَفَرَ اللهُ لَکَ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِکَ وَمَا تَأَخَّرَ .

اې دهوبي ! الله تعالی دې ستا مخکيني او روستوني ټول ګناهونه معاف کړي .

دهوبي د دې دُعا په اوريدو سره ورته دريمه دودۍ هم ورکړه ، نو عابد ورته دا دعا وکړه

يَا قَصَّارُ ! بَنَى اللهُ لَکَ قَصْرًا فِي الْجَنَّةِ .

اې دُهوبي ! الله تعالی دې تا له د دې په عوض کې په جنت کې بنګله جوړه کړي .

کله چې ماښام شو نو دُهوبي هماغه شان روغ رَمټ د غر نه واپس راغی ، د کلي خلق حضـرت عيسی عليه السلام ته بيا راغله او ورته وې ويل : اې عيسی عليه السلام ! دا دهوبي خو ســ ژوندې راغی . حضرت عيسی عليه السلام دا دهوبي را اُوغوښت ، کله چې راغی نو ورته وې ويل :

يَا قَصَّارُ ! أَخْبِرْنِي بِمَا عَمِلْتَ الْيَوْمَ ؟ اې دهوبي تا چې نن کوم عمل کړی هغه راته بيان کړه

هغه ورته وويل : د دې غره نه يو عابد راغی ، هغه د ما نه دودی اوغوښته ، ما ورته دري دودی ورکړی ، هغه ماته د هرې دودی په عوض کې ځانله ځانله دُعا وکړه .

عيسی عليه السلام ورته وويل : ته دا خپل پنډ ماله راکړه چې زه يې اوګورم .

کله چې دهوبي ورله خپل پنډ ورکړو ، او حضرت عيسی عليه السلام کلاؤ کړو نو په هغې کې يې تک تور مار وليده چې د اُوسپنې پيزوان ورته په خُوله کې اچول شوې وُ .

حضرت عيسی عليه السلام دې مار ته آواز وکړو ، هغه ورته وويل :

لَبَّيْکَ يَا نَبِيَّ اللهِ . اې د الله پيغمبره زه حاضريم ، څه حکم دی ؟

ده ورته وويل : أَلَسْتَ قَدْ بُعِثْتَ إِلَىٰ هٰذَا؟ آيا ته په دې فلانکي سړي نه وی مقرر شوی ؟
مار ورته وويل : نَعَمْ . وَلٰكِنْ جَاءَهُ سِيَارٌ مِنْ تِلْكَ الْجِبَالِ فَاسْتَطْعَمَهُ . فَبِكُلِّ رَغِيفٍ أَطْعَمَهُ دَعَا لَهُ بِدَعْوَةٍ . وَمَلَكٌ قَائِمٌ يَقُوْلُ آمِيْن . فَبَعَثَ اللّٰهُ تَعَالَىٰ إِلَيَّ مَلَكًا مِنَ الْمَلَائِكَةِ فَأَلْجَمَنِيْ بِلِجَامٍ مِنْ حَدِيْدٍ .

هو ، زه الله ﷻ په ده مقرر کړې ووم ، خو ده ته يو عابد راغلو ، هغه ورنه ډوډی اوغوښته ، ده ورته درې (۳) ډوډی ورکړی ، هغه ورته د هرې ډوډی په عوض کې دُعاګانې وکړی ، يوه فرښته ولاړه وه هغې دده په دُعاګانو آمين وويل ، نو الله تعالى راته داسې فرښته راوليږله چې هغې ماته د اُوسپنې پيزوان په خُوله کې راواچول (چې د هغې په وجه زه اوس دې سړي ته ضَرَر نه شم رسولی) .

حضرت عيسى عليه السلام دې دُهوبي ته وويل :

يَا قَصَّارُ اِسْتَأْنِفِ الْعَمَلَ فَقَدْ غَفَرَ اللّٰهُ لَكَ بِبَرَكَةِ صَدَقَتِكَ عَلَيْهِ . (۱)

اې دهوبي ! ته خپل دا عمل جاري اوساته ، ځکه الله ﷻ تاته په دې عابد باندې دصدقې کولو په وجه ټول ګناهونه معاف کړه .

## د صدقې په وجه د جهنم نه خلاصې

علامه ابن جوزي رحمه الله يوه واقعه رانقل کړی چې حضرت عائشې رضی الله عنها يوه وينځه واخيسته ، نو حضرت جبريل عليه السلام راغی او رسول الله ﷺ ته يې وويل :

أَخْرِجْ هٰذِهِ الْجَارِيَةَ مِنْ بَيْتِكَ فَإِنَّهَا مِنْ أَهْلِ النَّارِ .

ته دا وينځه د خپل کور نه اُوباسه ځکه دا جهنمي ده .

نو حضرت عائشې رضی الله عنها دا وينځه د کور نه اُوويسته ، خو د ويستلو په وخت يې څه قجورې هم ورکړی ، دې وينځې نيمه قجوره اُوخوړه ، او نيمه يې په لاره کې يو فقير ته په صدقه کې ورکړه . حضرت جبرائيل عليه السلام دوباره تشريف راوړو ، او وې ويل :

(۱) تنبيه الغافلين ص ۱۵۰ باب ما تدفع الصدقة عن صاحبها طبع دارالفكر بيروت .

اې محمد ﷺ ! الله تعالى تاسو ته دا حکم کوي چې دا وينځه واپس راوله ، بيشکه الله تعالى هغه د جهنم د اُور نه آزاده کړه ځکه دې نيمه قجوره صدقه کړې وه . (۱)

## د صدقې نه ورکولو سزا

يوه ورځ حضرت عائشه رضى الله عنها ناسته وه ، په دې کې يوه ښځه راغله چې لاسونه يې په لستوڼي کې پټ کړي وو ، حضرت عائشې رضى الله عنها ورنه پوښتنه وکړه :

مَا لَكِ لَا تُخْرِجِيْنَ يَدَكِ مِنْ كُمِّكِ ؟ ته ولې خپل لاسونه د لستوڼي نه نه رااُوباسې ؟

هغې ورته ووېل : اې ام المومنين ! ددې پوښتنه رانه مه کوه . دې ورته ووېل : ته به خامخا ماته ددې بيان کوې . نو هغې ورته ووېل :

اې ام المومنين ! زما مور او پلار وو ، پلار به مې صدقه ډيره خوښوله ، او د مور مې د صدقې سره سخت بُغض لرلو ، ما چيرته په ټول عُمر کې خپله مور په صدقه ورکولو نه وه ليدلې ، البته صرف يو ځل يې د غوښې يو ټُکړه صدقه کړې وه ، او څه زړې جامې يې صدقه کړې وې .

کله چې دوی دواړه وفات شو نو ما دوی په خوب کې وليده ، ګويا چې قيامت قائم شوې دی ، ما خپله مور وليده چې زړه کپړه ورسره وه ، خپل عورت يې پرې پټ کړې وُ ، او د غوښې يوه ټُکړه يې په لاس کې نيولې وه ، څټله يې ، او د سختې تندې د لاسه يې چغې سورې وهلې . او خپل پلار مې د تالاب په غاړه وليده چې اُوبه يې ورنه څکلې ، دا ځکه چې زما د پلار به اُوبه صدقه کول ډير خوښ وُ ، نو ما د اُوبو يوه پيالې راواخيسته ، او مور ته مې اُوبه ورکړې ، په دې کې په ما باندې د پره نه آواز اوشو :

(۱) اِشْتَرَتْ عَائِشَةُ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا جَارِيَةً فَنَزَلَ جِبْرِيْلُ عَلَيْهِ السَّلَامُ وَقَالَ : يَا مُحَمَّدُ ! أَخْرِجْ هٰذِهِ الْجَارِيَةَ مِنْ بَيْتِكَ فَإِنَّهَا مِنْ أَهْلِ النَّارِ . فَأَخْرَجَتْهَا عَائِشَةُ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وَدَفَعَتْ إِلَيْهَا شَيْئًا مِنَ التَّمْرِ . فَأَكَلَتِ الْجَارِيَةُ نِصْفَ تَمْرَةٍ ، وَدَفَعَتِ النِّصْفَ إِلَى فَقِيْرٍ رَأَتْهُ فِي الطَّرِيْقِ . فَجَاءَ جِبْرِيْلُ وَقَالَ : يَا مُحَمَّدُ ﷺ ! إِنَّ اللهَ تَعَالَى يَأْمُرُكَ أَنْ تَرُدَّ الْجَارِيَةَ . فَإِنَّ اللهَ تَعَالَى أَعْتَقَهَا مِنَ النَّارِ . لِأَنَّهَا تَصَدَّقَتْ بِنِصْفِ تَمْرَةٍ . اخرجه ابن الجوزي في كتاب الماجريات في الاسئلة والجوابات ، نزهة المجالس ج۲ ص ۳ باب فضل الصدقة وفعل المعروف .

أَلَا مَنْ سَقَاهَا شلتْ يَدُهُ. خبر دار ، چا چې دې ښځې ته اُوبه ورکړې نو لاسونه دې يې شل شي .

کله چې زه د خوب نه راپاڅيدم نو لاسونه مې شل شوي وو . (۱)

# د يو سخي سړي بل کس ته په خپل ځان باندې ترجيح ورکول

اصمعي وايي چې زه به يو سخي سړي ته اکثره ورتلم ، يوه ورځ چې ورغلم نو په دروازه کې يې پهره دار ولاړ وُ ، چې هغه زه دننه تللو ته پرې نه خودم ، او راته وې ويل :

اې اصمعي ! قسم په الله ، هغه زه په دروازه باندې ځکه اُودرولې يم ، چې د هغه سره په دې وخت کې هيڅ شی نشته چې صدقه يې کړي ، بلکه ټول مال يې صدقه کړې دی.

اصمعي وايي چې ما په يو کاغذ باندې دا وليکل :

" کله چې د يو سخي په دروازه باندې پهره دار مقرر شي نو بيا په سخي او بخيل کې هيڅ فرق نشته "

دا کاغذ مې پهره دار ته ورکړو چې دا هغه ته ويسه ، هغه چې دا کاغذ وې وړو ، څه وخت پس پهره دار راووت ، د کاغذ په شا باندې ليکلي وو :

" کله چې د سخي سره مال نه وي نو بيا د قرض دارو نه د بچ کيدو د پاره پهره دار اُودرولې شي "

او ددې کاغذ سره هغه د پنځه سوه (۵۰۰) دينارو يوه تيلۍ هم ورکړې وه .

(۱) وروي عن عائشةَ رضي الله عنها أنها كانتْ جالسةً ذات يومٍ إذ جاءتها امرأةٌ سترت يدها في كمها . فقالت لها عائشةُ مالكِ لاتخرجين يدكِ من كمّكِ ؟ قالتْ : لا تسألني يا أمّ المؤمنين ! قالت عائشةُ رضي الله تعالى عنها : لا بدّ لكِ أنْ تخبريْني ؟ فقالت : يا أمّ المؤمنين ! إنّه كان لي أبوانِ . فكان أبي يحبّ الصدقةَ . وأمّا أمّي فكانتْ تبغض الصّدقةَ. فلم أرها تصدّقتْ بشيءٍ إلّا قطعة شحم وثوبًا خلقًا . فلمّا ماتا رأيتُ في المنامِ كأنّ القيامةَ قد قامتْ . ورأيتُ أمّي قائمةً بين الخلق . والخلقة موضوعةٌ على عورتها . ورأيتُ الشحمةَ بيدها . وهي تلحسها وتنادي : واعطشاه . ورأيتُ أبي على شفير الحوضِ وهو يسقي الماء ولم يكن عند أبي صدقة أحبّ إليه من سقيه الماء . فأخذتُ قدحًا من ماءٍ فسقيتُ أمّي . فنودي من فوقٍ " ألا من سقاها شلت يده " فاستيقظتُ وقد شلت يدي . تنبيه الغافلين ص ۱۵۱ باب ما تدفع الصدقة عن صاحبها .

ما چې دده غُربت او دې سخا ته اوکته ، نو د ځان سره مې وویل : قسَم په الله ، زه به ددې حالت خبر ضرور امیر المؤمنین ته ورکوم .

کله چې زه امیر المومنین ته ورغلم ، نو هغه چې زه ولیدم ، پوښتنه یې رانه وکړه :

اصمعي ! د کوم ځای نه راغلی ؟ ما ورته وویل : د فلاني ځای نه راغلم ، هلته یو کس ؤ ، هغه په عِلم او مال دواړو سره زما ښه میلمستیا وکړه .

بیا مې دا کاغذ او د دینارو دا تیلۍ دواړه امیر المومنین ته ورښکاره کړه . کله چې هغه دا تیلۍ ولیده ، نو د لیدلو سره متصل یې د مخ رنګ بدل شو ، او وې ویل : په دې تیلۍ باندې خو زما د بیت المال مُهر لږېدلې دی ، دا تیلۍ چې تا ته چا درکړې وي هغه کس ما ته ضرور راحاضر کړه .

ما ورته وویل : اې امیرالمومنین ! په الله قسَم ، ماته حیاء راځي چې زه د هغه پسې قاصِد ولیږم او هغه په ویره کې واچوم .

نو امیرالمومنین یو نزدې کس ته وویل چې ته د هغه پسې ورشه ، او ورته وایه چې بغیر د څه یَرې او تکلیف نه د امیرالمومنین په خدمت کې حاضر شه .

کله چې دا کس د امیرالمومنین دربار ته راحاضر کړې شو ، نو امیر المومنین ورنه پوښتنه وکړه :

آیا ته هغه کس نه یې چې په فلانکي علاقه باندې زمونږ جلوس تیرېده نو ته ماته رامخې ته شوی او د خپل غُربت شکایت دې راته وکړو ، نو ما درله د دینارو دا تیلۍ درکړه ؟

حالانکه تا خو دا اصمعي ته ورکړی (نو چې تا ته د دینارو ضرورت نه ؤ نو بیا دې د مانه ولې اخیسته ؟ )

ده ورته وویل : اې امیر المؤمنین ! قسَم په الله ، چې تا ته ما د کوم فقر او غُربت په باره کې خبره کړې وه هغه دروغ نه ده ، او زه یقیني سخت محتاج یم ، خو چې کله تا ماله دا تیلۍ راکړه ، او زه کور ته راغلم ، نو زما دروازې ته اصمعي راغی ، نو ماته حیاء راغله چې یو ضرورت مند زما د دروازې نه خالي لاس لاړ شي ، او ما دا غوښته چې لکه څرنګ تاسو زه خالي لاس را اونه لیږلم نو دغه شان زه هم څوک خالي لاس اونه لیږم ، نو ځکه مې دا تیلۍ اصمعي ته صدقه کړه .

اميرالمومنين چې دا خبره واوريده نو ډير خوشحاله شو ، دده ډير تعريف يې وکړو ، او ورته وې ويل : اوس وخت په عربو کې د تا نه بل زيات سخي سړې ما نه دې ليدلی . او بيا يې حکم وکړو چې ده ته زر (۱۰۰۰) ديناره نور ورکړئ چې دې پرې خپل حوائج پوره کړي ، او دا يې د خپلو مقربو کسانو نه اوګرځول .

## په صدقه کې بهترين مال ورکول د ثواب ذريعه ده

محمد بن فضل رحمه الله وايي چې يو اَعرابي وُ ، ډيرې ګډې او چيلۍ ورسره وې خو ده به صدقه ډيره کمه ورکوله ، يو ځل ده د چيلۍ يو کمزوري بچې په صدقه کې ورکړو ، بيګاه له يې خُوب وليده چې دا ټولې ګډې او چيلۍ ورباندې راغونډې شوي او دې په ښکرونو باندې وهي خو دې کمزوري د چيلي بچي به دده حفاظت کولو او دا نورې ګډې او چيلۍ به يې ورنه شړلی ، کله چې د خُوب نه راييدار شو نو د ځان سره يې وويل :

قسَم په الله ، اوس به زه ډيرې ګډې او چيلۍ ددې کمزوري بچي سره يو ځای کړم (يعنی نورې به هم ښه اعلی ګډې چيلۍ صدقه کړم ) نو ده به بيا ددې نه روستو هر شی صدقه کول او په صدقه کې به يې بهترين مال ورکولو . (۱)

## حلال مال په بهترين ځای کې خرچ کيږي

کله چې د يو سړي مال حلال وي نو دا په بهترين ځای کې خرچ کيږي ، او مستحقينو ته په خپله رسيږي ، ددې په باره کې درته يوه بهترينه واقعه بيانوم :

شيخ علي متقي عارف بالله رحمه الله فرمايي : چې يو نيک سړي به حلال کاروبار کولو ، او د هغه دا معمول وُ چې څه به يې اوګټل نو هغه به يې په درې (۳) حصو تقسيم کړه ، يوه حصه به يې صدقه کړه ، دويمه به يې په خپل ضرورياتو کې اولږوله ، او دريمه به يې په تجارت کې خرچ کړه . يوه ورځ ده له يو مالدار کس راغی او ورته وې ويل : اې شيخ ! زه غواړم چې څه مال د الله ﷻ په لاره کې خرچ کړم نو ما ته څوک مستحق اوښايه چې هغه ته يې ورکړم .

شيخ ورته وويل : اول حلال مال پيدا کړه ، بيا چې هغه ته د الله ﷻ په لاره کې خرچ کوی نو هغه به په خپله مستحقينو ته رسي او په بهترين ځای کې به مصرف کيږي .

---

(۱) تنبيه الغافلين ص ۱۵۱ باب ما تدفع الصدقة عن صاحبها طبع دارالفكر بيروت .

دې دُنيا دار سړي دا خبره په مبالغه باندې حمَل کړه (او هسې فضول خبره ورته معلومه شوه)، نو دې شيخ ورته وويل: بنه ده، ته لاړ شه، او تا ته چې څوک د صدقې ډير مستحق معلوميږي او ستا زړه پرې اوسوزي نو هغه ته د خپل مال نه څه صدقه ورکړه.

کله چې دا سړې روان شو نو په لاره کې ورته يو کس په مخه ورغی چې په ظاهره ډير زيات غريب معلوميده او په خپه باندې ګډ هم ؤ، ده چې دا وليده نو زړه کې يې وويل: چې دا کس خو ډير زيات غريب، مستحق او معذور دی نو خپل مال يې هغه ته صدقه کړو. په صبا باندې دا مالدار کس په لاره تيريده چې هماغه پرونې فقير په يو ځای کې د بل ملګري سره ولاړ دی او هغه ته خپله واقعه داسې بيانوي چې: "پرون په ما باندې يو مالدار سړي د غريب ګمان وکړو . او څه صدقه يې راته راکړه، ما هغه روپۍ په شراب نوشۍ او بد کارۍ کې خرچ کړې".

دې مالدار چې دا خبره واوريده نو سخت خفه شو، دې شيخ ته راغی او هغه ته يې ټوله واقعه بيان کړه.

شيخ چې دا واقعه واوريده نو هغه ورله خپل يو درهم ورکړو، او ورته وې ويل چې کله ته د دې ځای نه اوځې نو تا ته چې اول هر څوک په مخه درشي نو هغه ته دا درهم صدقه ورکړه.

کله چې دا مالدار سړې ده نه راووت، نو په لاره کې ورته اول داسې کس په مخه ورغی چې په ظاهره باندې بنه مالدار معلوميده، ځکه صفا کپړې يې اچولې وې، په لاس کې ورسره څه وو، د ظاهري شکل نه بهترين او شريف سړې معلوميده، نو دې مالدار کس اول دا سوچ وکړو چې ده ته څنګه دا درهم ورکړم؟ دا خو په ظاهره مالدار معلوميږي او مستحق نه دی. خو چونکه شيخ ورته حکم کړې ؤ چې اولني کس ته به دا درهم ورکوې نو ځکه يې همده ته دا درهم ورکړو

کله چې هغه سړي دا درهم واخيست نو دوباره شا ته روان شو او يو زوړ کنډر ته داخل شو، هلته يې څه اوغورځول، او په هغه اخوا طرف د کنډر نه اووت. دا مالدار سړې هم ده پسې شا ته ورغی، چې وې کتل نو په کنډر کې يوه مړه کونتره پرته وه. دا د هغه سړي پسې په منډه ورغی، او قسَم يې ورته ورکړو چې صحيح حال به راته وايې چې ته څوک يې؟ ستا اِقتصادي حالات څنګه دي؟ او په دې مړه کونتره دې څه کول؟

هغه ورته وويل: زه يو غريب سړې يم، د څه بيمارۍ په وجه مزدوري نه شم کولی، زما واړه واړه بچي دي، په کور کې د خوراک د پاره هيڅ شی هم نه ؤ، د چا نه سوال هم نشم کولی، ما د خپلو بچو ولږه کتل نشوه برداشت کولی، د ډيرې پريشانۍ په حالت کې د کور نه راووتلم چې د

بچو د پاره د خوراک څه راپيدا کړم ، سرګردانه ګرځيدم ، هيڅ شی په لاس رانغی ، زما بچي چونکه د ډيرې ولږې په وجه په اضطراري حالت کې وو نو ما دا مړه کونتره راواخيسته چې دا به ورله ويسم ، ځکه هغوی مجبور دي ، د خوراک بل څه نشته . کله چې الله تعالی ستا په ذريعه ماته دا درهم راکړو نو ما په هغه کندر کې واپس هغه مړه کونتره او غورځوله ، ځکه په دې درهم به ورله اوس د خوراک څه واخلم .

کله چې دې مالدار سړي دا خبرې واوريدی نو سترګې يې وغړيدی ، او د شيخ خبره ورته رایاده شوه چې هغه خو ربښتيا ويلي وو چې " کله مال حلال وي نو دا په خپله په صحيح ځای کې مصرف کيږي او خپل مستحق ته رسيږي " (۱)

لهذا انسان ته په کار دي چې اول خپل کارو بار حلال کړي ، په حلاله طريقه مال اوګټي نو بيا به الله جَلَّ‌جَلَالُهُ ده ته په بهترينو ځايونو کې د لږولو توفيق ورکوي ، او مستحقينو ته به رسيږي . په حديث کې هم راځي ، رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي :

لَا يَقْبَلُ اللهُ إِلَّا الطَّيِّبَ . (۲) الله تعالی صرف حلال مال قبلوي .

## د صدقې په وجه کافر ته ايمان نصيبه کيدل

عبد الله بن مبارک رحمه الله وايي چې زه يو کال حج ته لاړم ، هلته مې طواف وکړو ، د طواف نه روستو اُوده شوم ، په خوب کې مې د رسول الله ﷺ سره ملاقات اوشو ، دوی راته وفرمايل:

إِذَا رَجَعْتَ إِلَى بَغْدَادٍ فَادْخُلْ فِيْ مَحَلَّةِ كَذَا وَاطْلُبْ بَهْرَامَ الْمَجُوْسِيْ وَاقْرَأْ عَلَيْهِ مِنِّيْ السَّلَامَ وَقُلْ لَهُ " إِنَّ اللهَ تَعَالَى عَنْكَ رَاضٍ " . کله چې ته بغداد ته واپس لاړ شې نو فلانی محلې ته داخل شه ، او بهرام مجوسي پيدا کړه (کله چې د هغه سره ملاؤ شې نو ) په هغه باندې زما سلام ووايه ، او دا ورته ووايه چې الله تعالی د تا نه راضي دی .

عبد الله بن مبارک وايي چې زه راپاځيدم نو " لا حول ولاقوة إلا بالله العلي العظيم " مې وويل ، او دا مې د ځان سره وويل : کيدې شي چې دا شيطاني خُوب وي ( ځکه په مجوسي باند د

(۱) مظاهر حق شرح مشکوة ج۳ باب فضل الصدقة في ضمن الفصل الاول حديث ۱ .

(۲) رواه البخاري ۲ / ۱۳۴ ، ۹ / ۱۵۴ ، واحمد ۲ / ۳۳۱ ، والبيهقي ۴ / ۱۷۷ ، مشکوة باب فضل الصدقة الفصل الاول حديث ۱ .

نبي عليه السلام سلام ويل راته نا آشنا معلوميده ).

نو ما اَودس وکړو ، د خانه کعبې طواف مې بيا وکړو ، کله چې اُوده شوم نو بيا مې هم همداسې خُوب وليده ، حتى چې درې پيرې مې دا خُوب وليده . ( زه پوهه شوم چې دا خُوب رښتينې دى ) . کله چې حج پوره شو نوزه بغداد ته لاړم ، هلته مې د بهرام مجوسي کور پيدا کړو ، کله چې کور ته ورغلم ، نو يو سپين ګيرې سړې ناست ؤ ، ما ورنه پوښتنه وکړه :

أَأَنْتَ بَهْرَامُ الْمَجُوسِيُّ ؟ آيا ته بهرام مجوسي يې ؟ هغه راته وويل : هو . ( زه يم ) .

ما ورته وويل : هَلْ لَكَ عِنْدَ اللهِ خَيْرٌ ؟ آيا تا د الله ﷻ د رضا د پاره څه خَير کار کړى ؟ هغه راته وويل : آو ، خلقو ته مې په سُود باندې روپى ورکړي دا زما په نزد ښه کار دى .

ما ورته وويل : دا خو په اِسلام کې حرام دي . خو آيا ددې نه علاوه بل څه ښه کار دې کړى ؟ هغه راته وويل : آو ، زما څلور زامن دي او څلور لوراني مې دي ما ددې لورانو واده ددې خپلو زامنو سره کړى . عبدالله بن مبارک ورته وويل : دا خو هم په اِسلام کې حرام دي . خو آيا ددينه علاوه دې چيرته بل کار د خَير کړى ؟ هغه راته وويل : آو ، کله مې چې د خپلو لورانو واده د خپلو زامنو سره کولو نو په هغې کې مې مجوسيانو له وليمه کړې وه . ما ورته وويل : دا خو هم په اسلام کې حرام دي . خو چيرته بل ښه کار دې کړى ؟ هغه راته وويل : آو ، زما يوه لُور وه چې ډيره زياته ښائسته وه ، ما په معاشره کې ددې د پاره مناسب کس پيدا نه کړو چې ددې غوندې ښُکلې وي نو ما هغه لُور ځان ته په نکاح کړه ، او په هغه شپه مې د زرو ( ۱۰۰۰ ) نه زياتو مجوسيانو له وَليمه کړې وه .

عبدالله بن مبارک رحمه الله ورته وويل : دا کار خو هم په اِسلام کې حرام دى . خو ددې نه علاوه چيرته بل کار دې د نيکى کړى ؟ هغه راته وويل : آو .

زه يوه شپه په خپل کور کې ملاست ووم ، چې د بهرنه يوه ښځه راغله ، څه اَندازه چې زما کورته راغله نو دوباره واپس شوه ، بيا به راغله او بيا به واپس شوه ، دغه شان درې پيرې راغله او واپس شوه ، آخر دا چې په څلورمه پيره واپس لاړه ، نيا رانغله . ما د ځان سره وويل : کيدې شي دا د غلو د پاره څوک جاسوسه وي ، نو زه ورپسې پَټ شاته وَر روان شوم ، کله چې دا ښځه خپل کورته ننوته ، نو زه ورپسې ورننوتم ، ( نو دا يوه غريبه کُنډه وه ، صرف څلور لوراني يې وى ، کله چې لُورانو يې دا مور خالي لاس اُوليده نو ورته وې ويل :

يَا أُمَّاه ! هَلْ جِئْتِ لَنَا بِشَيْءٍ ؟ فَإِنَّهُ لَمْ يَبْقَ لَنَا طَاقَةٌ وَصَبْرٌ عَلَى الْجُوْعِ .

اې مورې ! تا زمونږ د پاره د خوراک څه راوړه ؟ ځکه زمونږ خو ډیرې ولږې د لاسه نور هیڅ طاقت نشته ، او نه نور په ولږه صبر کولې شو . (ځکه د ډیرو ورځو مو هیڅ نه دي خوړلي) .

کله يې چې مور د ګورانو دا خبرې واوريدې نو په سترګو کې يې اوښکې راغلې ، او ورته وې ويل : اې ګورانو ما ته ستاسو د ولږې پته وه ، ددې د پاره زه د مجوسي کور ته ورغلم چې د هغه نه به تاسو د پاره د خوراک څه اوغوارم ، خو : إِسْتَحْيَيْتُ مِنْ رَبِّيْ أَنْ أَسْأَلَ شَيْئًا مِنْ أَحَدٍ دُوْنَهُ . وَأَطْلُبَ حَاجَةً مِنْ عَدُوِّ اللهِ تَعَالٰى وَهُوَ مَجُوْسِيٌّ . ما ته د خپل رب الله رب العزت نه حياء راتله چې زه د هغه نه علاوه د بل چا نه څه اوغوارم او بيا د الله ﷻ د دُشمن مجوسي نه څه اوغوارم . ( نو ځکه مې د مجوسي نه هيڅ اونه غوښته او واپس راغلم ) .

بهرام مجوسي عبد الله بن مبارک ته وويل : کله چې ما ددې ښځې دا د غيرت نه ډکې خبرې واوريدې ( او ددې ګوراني ولږه يې راته معلومه شوه ) نو زه خپل کور ته راغلم او په يو غټ لوخي کې مې هر قِسمه خوراک واچول ، او هغوی ته مې وَر وړو ، کله چې هغوی دا خوراک وليده نو ډيرې خوشحاله شوی . عبد الله بن مبارک رحمه الله ورته وويل :

هُوَ هٰذَا الْخَيْرُ . وَلَكَ الْبَشَارَةُ . ( د تا نه چې ما پوښتنه کوله چې تا چيرته د خَير کار کړی ؟ نو ) هغه د خَير کار همدا دی ، او تا ته ددې په باره کې زيرې در اَوروم .

عبد الله بن مبارک رحمه الله وايي چې ما بيا ورته د هغه خُوب زيرې ورکړو کوم چې ما په مکه معظمه کې ليدلې ؤ ، او ټول خُوب مې ورته بيان کړو .

بهرام مجوسي چې کله دا خبرې واوريدی نو دومره اَثريې ورباندې وکړو چې په هماغه ځای کې يې کامله شهادت " أشهد أن لا إله إلا الله وأشهد ان محمدا عبده ورسوله " وويله ، او مسلمان شو .... عبد الله بن مبارک رحمه الله به خلقو ته ويل :

يَا عِبَادَ اللهِ ! إِسْتَعْمِلُوا السَّخَاوَةَ مَعَ خَلْقِ اللهِ تَعَالٰى فَإِنَّهُ يَنْقُلُ الْأَعْدَاءَ إِلٰى دَرَجَةِ الْأَحِبَّاءِ ... اې د الله ﷻ بندګانو ! د الله ﷻ په مخلوقاتو باندې سخاوت کوئ ، ځکه د سخاوت په وجه د الله ﷻ دُشمنان د دُوستانو مرتبې ته رسي . " (۱)

(۱) درة الناصحين ص ۹٦ مجلس من سورة الانعام من جاء بالحسنة فله عشرة امثالها ، نزهة المجالس ج ۱ ص ۲۸۷ باب الكرم والفتوة ورد السلام .

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

﴿ اَلَّذِيْنَ يُنْفِقُوْنَ اَمْوَالَهُمْ بِالَّيْلِ وَالنَّهَارِ سِرًّا وَّعَلَانِيَةً فَلَهُمْ اَجْرُهُمْ عِنْدَ رَبِّهِمْ وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ ﴾. البقرة آيت ۲۷۴ .

# د خَير په کارونو کې د خرچ کولو اَهميت او د سخاوت فضيلت

تَاليف :

اَبُوالشَّمْس مولانا نُوْرُالْهُدٰی عُفِيَ عَنْهُ

مُدَرِّس دَارُالعلوم فيضُ القُرآن اکاخيل کالونی مردان

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

# د خير په کارونو کې د خرچ کولو اهميت

اَلۡحَمۡدُ لِلّٰهِ رَبِّ الۡعَالَمِيۡنَ ، وَالصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ عَلٰى خَاتَمِ الۡأَنۡبِيَاءِ وَأَشۡرَفِ الۡمُرۡسَلِيۡنَ . وَعَلٰى آلِهٖ وَأَصۡحَابِهٖ وَمَنۡ تَبِعَهُمۡ بِإِحۡسَانٍ إِلٰى يَوۡمِ الدِّيۡنِ .

اَمَّا بَعۡدُ فَأَعُوۡذُ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيۡطٰنِ الرَّجِيۡمِ بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ . قَالَ اللّٰهُ تَبَارَكَ وَتَعَالٰى فِي الۡقُرۡآنِ الۡمَجِيۡدِ وَالۡفُرۡقَانِ الۡحَمِيۡدِ :

﴿اَلَّذِيۡنَ يُنۡفِقُوۡنَ أَمۡوَالَهُمۡ بِاللَّيۡلِ وَالنَّهَارِ سِرًّا وَّعَلَانِيَةً فَلَهُمۡ أَجۡرُهُمۡ عِنۡدَ رَبِّهِمۡ وَلَا خَوۡفٌ عَلَيۡهِمۡ وَلَا هُمۡ يَحۡزَنُوۡنَ﴾ . (۱)

وَقَالَ رَسُوۡلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ : قَالَ اللّٰهُ تَعَالٰى : أَنۡفِقۡ أُنۡفِقۡ عَلَيۡکَ . (۲)

صَدَقَ اللّٰهُ الۡعَظِيۡمِ .

قدرمنو مسلمانانو ورونو ! اِسلام د عدل او انصاف مذهب دی ، په دې کې د هر چا د حقوقو لحاظ ساتل شوی ، بیا خاصکر د غریبې طبقې خلقو ، فقیرانو ، مسکینانو او حاجتمندو سره د اِحسان کولو خو ډیر اَجر بیان شوی . او د خیر په کارونو کې د خرچ کولو دومره ترغیب او فضایل راغلي چې انسان دا گمان کوي چې گني مال د جمع کولو شی نه دی، بلکه صرف د خیر په کارونو کې د خرچ کولو د پاره دی .

او شریعت هم دا غواړي چې مال دې د قارون غوندې پروت نه وي چې څوک ورنه فائده نه اَخلي ، بلکه دا دې گردش کوي ، او د مال د فرضي حقوقو ادا کولو سره سره دې نور د خیر په کارونو کې هم خرچ کړې شي .

(۱) البقرة آيت ۲۷۴ .

(۲) رواه البخاري في التوحيد ۲۵٦ وباب قوله " وكان عرشه على الماء " جز ٦ ص ۷۳ حديث ۴٦۸۴ و حديث ۷۴۹٦، و رواه مسلم ۳٦ (۹۹۳)، مشكوة باب الانفاق وكراهية الامساک الفصل الاول حديث ۲ . وفي رواية : قَالَ رَسُوۡلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ : إِنَّ اللّٰهَ قَالَ لِيۡ : أَنۡفِقۡ أُنۡفِقۡ عَلَيۡکَ . مسلم باب الحثّ على النفقة وتبشير المنفق بالخلف. ۳۷ (۹۹۳) .

# خرچ کوونکې متقيان او کامياب دي

د سورة بقرې په ابتدائي آيتونو کې الله تبارک وتعالی فرمايي:

﴿الٓمٓ . ذٰلِكَ الْكِتٰبُ لَا رَيْبَ فِيْهِ هُدًى لِّلْمُتَّقِيْنَ . الَّذِيْنَ يُؤْمِنُوْنَ بِالْغَيْبِ وَيُقِيْمُوْنَ الصَّلٰوةَ وَمِمَّا رَزَقْنٰهُمْ يُنْفِقُوْنَ﴾ . (۱)

ترجمه: الٓمٓ . دا (قرآن کريم) هغه کتاب دی چې په دې کې هيڅ شک و شبهه نشته، هدايت دی د پرهيزګارانو د پاره، (پرهيزګاران هغه خلق دي) څوک چې په غيب باندې ايمان لري، لمونځ قائموي، او مونږ چې ورته څه ورکړي د هغې نه خرچ کوي...

د داسې خلقو باره کې الله ﷻ بيا فرمايي:

﴿أُولٰٓئِكَ عَلٰى هُدًى مِّنْ رَّبِّهِمْ وَأُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ﴾ . (۲)

ترجمه: همدغه خلق (په چا کې چې دا مخکينې صفات موجود وي) د خپل رب د طرفه په هدايت باندې دي، او همدغه خلق کاميابي موندونکي دي.

**فايده**: په دې آيت کې د متقينو د صفتونو په بيان کې اول د ايمان بالغيب ذکر وکړې شو، بيا ورپسې د اِقامتِ صلوة، او بيا د الله ﷻ په لاره کې د خرچ کولو ذکر وکړې شو.

وجه داده چې د ايمان اَهميت خو ټولو ته معلوم دی چې دا د ټولو ښو عملونو د قبليدو د پاره شرط دی. بيا د ښو عملونو شمير خو چونکه اُوږد دی، خو په دې آيت کې صرف د دوه (۲) عملونو ذکر شوی: چې يو لمونځ، او بل د مال خرچ کول دي.

ځکه په دې کې ديته اِشاره ده چې په انسان باندې څه شی هم فرض يا واجب دی نو د هغې تعلق يا خو به ده د ذات او بدن سره وی، او يا به ده د مال سره وي.

نو په بدني عباداتو کې د ټولو نه اَهم عبادت لمونځ دی، او مالي عبادتونه ټول د اِنفاق په لفظ کې داخل دي. ګويا په حقيقت کې په دې آيت کې د ايمان نه روستو ټول عبادات او

---

(۱) البقرة آيت ۱ تا ۳.

(۲) البقرة آيت ۵.

عملونه ذکر شوي . نو ځکه په اعمالو کې صرف د لمونځ او د مال خرچ کولو ذکر وکړې شو . (۱)

## خرچ کوونکي کامل مومنان دي

په سورة أنفال کې الله رب العزت د کامل مومنانو څه صفات ذکر کړي په هغې کې یو صفت د مومنانو دا هم ذکر دی چې د خیر په کارونو کې خرچ کوي . الله ﷻ فرمایي :

﴿ اَلَّذِيْنَ يُقِيْمُوْنَ الصَّلٰوةَ وَمِمَّا رَزَقْنٰهُمْ يُنْفِقُوْنَ . أُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُؤْمِنُوْنَ حَقًّا لَهُمْ دَرَجَاتٌ عِنْدَ رَبِّهِمْ وَمَغْفِرَةٌ وَرِزْقٌ كَرِيْمٌ ﴾ . (۲)

ترجمه : ( مومنان هغه دي ) څوک چې لمونځ قائموي او مونږ چې ورته کوم رزق ورکړی دوی د هغې نه خرچ کوي ، همدا خلق په ریښتیني مومنان دي ، د دوی د پاره د خپل رب سره اُوچتې درجې دي ، بښنه ده ، او روزي د عزت ده .

## د خرچ کوونکو د پاره اَجر

۱ . الله رب العزت فرمایي :

﴿ اَلَّذِيْنَ يُنْفِقُوْنَ أَمْوَالَهُمْ بِاللَّيْلِ وَالنَّهَارِ سِرًّا وَّعَلَانِيَةً فَلَهُمْ أَجْرُهُمْ عِنْدَ رَبِّهِمْ وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ ﴾ . (۳)

ترجمه : څوک چې خپل مالونه د شپې او ورځې ، په پټه او ښکاره خرچ کوي نو هغوی لره ثواب دی د هغوی د رب په نزد ، او نه به په دوی څه يَره وي ، او نه به غمجن وي .

۲ . بل ځای الله رب العزت فرمایي :

﴿ إِنَّ الَّذِيْنَ يَتْلُوْنَ كِتَابَ اللهِ وَأَقَامُوا الصَّلٰوةَ وَأَنْفَقُوْا مِمَّا رَزَقْنٰهُمْ سِرًّا وَّعَلَانِيَةً يَرْجُوْنَ تِجَارَةً لَّنْ تَبُوْرَ . لِيُوَفِّيَهُمْ أُجُوْرَهُمْ وَيَزِيْدَهُمْ مِّنْ فَضْلِهِ إِنَّهُ غَفُوْرٌ شَكُوْرٌ ﴾ . (۴)

(۱) معارف القرآن البقرة آیت ۳ ، بوالیت الایمان ص ۴۴ .
(۲) الانفال آیت ۳ ، ۴ .
(۳) البقرة آیت ۲۷۴ .
(۴) سورة فاطر آیت ۲۹ ، ۳۰ .

ترجمه : بيشکه څوک چې د الله ﷻ دکتاب تلاوت کوي ، لمونځ قائموي ، او مونږ چې ورته څه ورکړي د هغې نه په پټه او ښکاره خرچ ( او خيراتونه ) کوي نو دوی د داسې تجارت اُميد وار دي چې هغه هيڅ کله تاوان نه کوي ( او هيڅ کله نه بربادېږي ) . ( دا څکه کوي ) د دې دپاره چې الله تعالى دوی ته د دوی ( د خپل عمل ) اَجرونه پوره پوره ورکړي ، او د خپل فضل نه ورته نور هم زيات ورکړي ، بيشکه الله ﷻ بخونکې او قدردان دی .

۳ . په سورة بقره کې الله رب العزت فرمايي :

﴿ وَمَا تُنفِقُوا مِنْ خَيْرٍ يُوَفَّ إِلَيْكُمْ وَأَنتُمْ لَا تُظْلَمُونَ ﴾ . (۱)

ترجمه : او څه چې تاسو خرچ کوئ د مال نه نو ( په دُنيا او آخرت کې به د دې بدل او ثواب ) پوره پوره درکړې شي ، او په تاسو به ظلم نشي کولی .

## د خرچ کوونکو دپاره جنت

الله رب العزت فرمايي :

﴿ وَالَّذِينَ صَبَرُوا ابْتِغَاءَ وَجْهِ رَبِّهِمْ وَأَقَامُوا الصَّلَاةَ وَأَنفَقُوا مِمَّا رَزَقْنَاهُمْ سِرًّا وَعَلَانِيَةً وَيَدْرَءُونَ بِالْحَسَنَةِ السَّيِّئَةَ أُولَٰئِكَ لَهُمْ عُقْبَى الدَّارِ ﴾ . (۲)

ترجمه : او چا چې د خپل رب د خوشحالولو د پاره صبر وکړو ، لمونځ يې قائم کړو ، مونږ چې ورته څه ورکړي د هغې نه يې په پټه او ښکاره خرچ وکړو ، او د نيکيو په ذريعه بَدي دفع کوي ( يعنى د بدی په مقابله کې ښيګړه کوي ) نو همدا هغه خلق دي د کومو د پاره چې کور د آخرت ( يعنى جنت ) دی .

## د خرچ کولو ترغيب

که د رسول الله ﷺ په احاديثو مبارکهؤ باندې نظر واچولې شي نو د مال جمع کولو په نسبت په صحيح ځايونو کې د مال خرچ کولو او صدقه کولو ترغيب زيات راغلې دی ، دغه

(۱) البقرة آيت ۲۷۲ .

(۲) الرعد ايت ۲۲ .

وجه دا ده چې که د احاديثو هر كتاب را واخلئ نو په هغې كې به د مال جمع كولو په نسبت د الله ﷻ د رضا د پاره د خرڅ كولو تعليم وترغيب په مختلفو عنواناتو سره وركړې شوې وي .

۱. د بخاري او مسلم شريف حديث دی ، نبي عليه السلام فرمايي :

قَالَ اللهُ تَعَالٰی : أَنْفِقْ أُنْفِقْ عَلَيْكَ . (۱)

(حديث قدسي دی) الله تعالی فرمايي : اې د آدم اولاده ! (ته په لاره كې خپل مال) خرڅ كوه نو زه به په تا باندې خرڅ كوم (يعنی څه چې تا خرڅ كړه زه به تا ته په دُنيا او آخرت كې د دينه زيات دركړم) .

همدا خبره په قرآن كريم كې هم ذكر ده ، الله تعالی فرمايي :

﴿وَمَآ أَنْفَقْتُمْ مِّنْ شَيْءٍ فَهُوَ يُخْلِفُهُ ...﴾ . (۲)

ترجمه : څه چې تاسو د الله ﷻ د رضا د پاره خرڅ كوئ نو الله تعالی به تاسو ته د هغې بدله دركوي .

۲. حضرت قيس بن سَلَع انصاري رضي الله عنه فرمايي :

انَّ إِخْوَتَهُ شَكَوْهُ إِلَى رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالُوْا إِنَّهُ يُبَذِّرُ مَالَهُ وَيَنْبَسِطُ فِيْهِ ، قُلْتُ : يَارَسُوْلَ اللهِ آخُذُ نَصِيْبِيْ مِنَ الثَّمَرَةِ فَأُنْفِقُهُ فِيْ سَبِيْلِ اللهِ وَعَلَى مَنْ صَحِبَنِيْ . فَضَرَبَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَدْرَهُ وَقَالَ : "أَنْفِقْ يُنْفِقِ اللهُ عَلَيْكَ" ثَلَاثَ مَرَّاتٍ . فَلَمَّا كَانَ بَعْدَ ذٰلِكَ خَرَجْتُ فِيْ سَبِيْلِ اللهِ وَمَعِيَ رَاحِلَةٌ وَأَنَا أَكْثَرُ أَهْلِ بَيْتِيْ الْيَوْمَ وَأَيْسَرُهُ . (۳)

---

(۱) رواه البخاري في التوحيد ۲۵٦ وباب قوله : وكان عرشه على الماء حديث ۴٦٨۴ وحديث ۷۴۹٦، ومسلم ۳٦ (۹۹۳) ، مشكوة باب الانفاق وكراهية الامساك الفصل الاول حديث ۴ . وفي رواية : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : إِنَّ اللهَ قَالَ لِيْ : أَنْفِقْ أُنْفِقْ عَلَيْكَ . مسلم باب الحثّ على النفقة وتبشيرِ المنفق بالخَلَف . ۳۷ (۹۹۳)

(۲) سورة سبا آيت ۳۹ .

(۳) رواه الهيثمي في المجمع ۳ / ۱۲۸ ، والمنذري في الترغيب ۲ / ۵۰ ، المتجر الرابح في ثواب العمل الصالح ص ۱۵۴ ثواب الانفاق في وجوه الخير ...

زما ورونو رسول الله ﷺ ته زما شكايت وكړو چې "دې په مال كې اِسراف كوي، او په فراخ دلۍ سره يې خرچ كوي" نو ما عرض وكړو : اې د الله ﷻ رسوله ﷺ! زه د قجورو خپله حصه (د دوی نه) واخلم، او بيا يې د الله ﷻ په لاره كې او په خپلو ملګرو باندې خرچ كوم، نو نبي عليه السلام زما په سينه باندې راس رابنكود، او راته وې فرمايل :

" أَنْفِقْ يُنْفِقِ اللهُ عَلَيْكَ " ته د الله ﷻ په لاره كې خرچ كوه نو الله ﷻ به په تا هم خرچ كوي. نبي عليه السلام درې (۳) كرته دا اِرشاد اوفرمايه.

د دې نه پس زه د الله ﷻ په لاره كې اُووتم، د ماسره خپله سورلي وه، او نن زه په خپله كورنۍ كې د ډير مال خاوند يم، او په دوی كې ډير مالداريم.

**فايده** : دا بركت د خرچ كولو او صدقې وركولو دی چې الله ﷻ ورته بهترينه بدله وركړه).

۳. د مسلم شريف حديث دی، پيغمبر عليه السلام فرمايي :

يَا ابْنَ اٰدَمَ إِنَّکَ إِنْ تَبْذُلَ الْفَضْلَ خَيْرٌ لَّکَ وَإِنْ تُمْسِكْهُ شَرٌّ لَّکَ . وَلَا تُلَامُ عَلٰی كَفَافٍ وَابْدَأْ بِمَنْ تَعُوْلُ . وَالْيَدُ الْعُلْيَا خَيْرٌ مِّنَ الْيَدِ السُّفْلٰی . (۱)

اې د آدم اولاده ! كوم مال چې ستا د ضرورت او حاجت نه زيات وي هغه (د الله ﷻ د رضا د پاره) خرچ كول ستا د پاره (په دُنيا او آخرت كې) بهتر دي، او كه دا نه خرچ كوې نو دا ستا د پاره بَد دي، او بقدرِ كفايت مال جمع كولو كې په تا باندې ملامتيا نشته (يعنی كه دومره مال د ځان سره ساتې چې ستا د ژوند د بقاء او غذا ضرورت پرې پوره كيږي نو دا خير دی)، او د خرچ كولو په سلسله كې شروع د خپل بال بچ نه كوه (يعنی د چا نفقه چې په تا واجب ده اول په هغوی خرچ كوه، او چې كله د دوی نه پاتې شي نو بيا په نورو فقيرانو خرچ كوه).

(۱) رواه مسلم في الزكاة ۹۷ ، والترمذي الحديث ۲۳۲۳ ، مشكوة باب الانفاق وكراهية الامساک الفصل الاول حديث ۵، المتجر الرابح في ثواب العمل الصالح ص ۱۵۴ .

۴ . په يوه موقع رسول الله ﷺ حضرت أسماء رضی الله عنها ته وفرمايل :

أَنْفِقِيْ وَلَا تُحْصِيْ فَيُحْصِي اللهُ عَلَيْكِ . وَلَا تُوْعِيْ فَيُوْعِيَ اللهُ عَلَيْكِ . إِرْضَخِيْ مَا اسْتَطَعْتِ (۱)

ترجمه : ( چيرته چې په مال خرچ کولو سره الله تعالی راضي کيږي نو هلته ) خپل مال خرچ کوه ، او دا شمير مه کوه چې څومره خرچ کړم ؟ او څه خرچ کړم ؟ ګني الله تعالی به هم ستا په باره کې شمير کوي ( يعنی ستا د مال برکت به ختم کړي ، او تا ته به يې هم محدود او معدود درکوي . يا دا چې د قيامت په ورځ به درسره ددې محاسبه کوي ) . او کوم مال چې ستا د ضرورت نه زياتي وي هغه د حاجتمندو نه منع کولو سره مه ږده ګني الله تعالی به ستا په حق کې هم خپل زائد عطاء او بخشش منع کړي ، او د تانه چې څومره کيدې شي د الله تعالی په لاره کې خرچ کوه .

۵ . نبي عليه السلام فرمايي :

لَا حَسَدَ إِلَّا فِيْ إِثْنَتَيْنِ : رَجُلٌ آتَاهُ اللهُ الْقُرْآنَ فَهُوَ يَقُوْمُ بِهِ آنَاءَ اللَّيْلِ وَآنَاءَ النَّهَارِ ، وَرَجُلٌ آتَاهُ اللهُ مَالًا فَهُوَ يُنْفِقُهُ آنَاءَ اللَّيْلِ وَآنَاءَ النَّهَارِ . (۲)

که چيرته حسَد جائز وی نو د دوه ( ۲ ) کسانو سره به جائز وُ ( يعنی سيالي صرف د دوه کسانو سره په کار ده ، او که ديو کس سره غِبطه کولې شي نو په دې دوه ( ۲ ) صفتونو کې ورسره غبطه مناسب ده (۳) ) : يو هغه کس چې هغه ته الله تعالی قرآن کريم ورکړې وي او هغه د شپې او ورځې د هغې تلاوت کوي ( او عمل پرې کوي ) ، او دويم هغه کس چې هغه ته الله ﷻ مال ورکړې وي او دې دا مال د شپې او ورځې په ساعتونو کې خرچ کوي .

---

(۱) رواه البخاري ومسلم ، معارف الحديث ج۴ ص ۳۲۶ .

(۲) رواه البخاري في الاعتصام ۱۸۳ ، ومسلم في صلوة المسافرين ۲۶۸ ، وابن ماجه الحديث ۴۲۰۸ ، المتجر الرابح في ثواب العمل الصالح ص۱۵۳ . / په يو روايت کې داسې الفاظ دي : نبي عليه السلام فرمايي : لَا حَسَدَ إِلَّا فِيْ إِثْنَتَيْنِ : رَجُلٌ آتَاهُ اللهُ مَالًا فَسَلَّطَهُ عَلَى هَلَكَتِهِ فِي الْحَقِّ . وَرَجُلٌ آتَاهُ اللهُ حِكْمَةً فَهُوَ يَقْضِيْ بِهَا وَيُعَلِّمُهَا . متفق عليه ، رياض الصالحين باب فضل الغني الشاكر .... ۵۶۷ .

(۳) وَمَعْنَاهُ : يَنْبَغِيْ أَنْ لَا يُغْبَطَ أَحَدٌ إِلَّا عَلَى إِحْدَى هَاتَيْنِ الْخَصْلَتَيْنِ . رياض الصالحين ج۱ باب الكرم والجود ۵۴۱ . اَلْحَسَدُ يُطْلَقُ وَيُرَادُ بِهِ الْغِبْطَةُ ، وَهُوَ تَمَنِّيْ مِثْلِ مَا لِلْمَحْسُوْدِ . فَإِنْ تَمَنَّى زَوَالَ تِلْكَ النِّعْمَةِ كَانَ حَسَدًا مُحَرَّمًا . المتجر الرابح في ثواب العمل الصالح ص۱۵۳ ( ۶۳۹ ) .

# خرچ کوونکو ته د فرښتو دُعا ، او بخيل ته ښيرې

د بخاري او مسلم شريف حديث دی ، رسول الله ﷺ فرمايي :

مَا مِنْ يَوْمٍ يُصْبِحُ الْعِبَادُ فِيهِ إِلَّا وَمَلَكَانِ يَنْزِلَانِ فَيَقُولُ أَحَدُهُمَا : اَللّٰهُمَّ أَعْطِ مُنْفِقًا خَلَفًا وَيَقُوْلُ الْآخَرُ : اَللّٰهُمَّ أَعْطِ مُمْسِكًا تَلَفًا . (۱)

په هره ورځ د سهر په وخت کې دوه (۲) فرښتې راکوزيږي ، او په هغې کې يوه فرښته (د سخي د پاره) دا دُعا کوي : يا الله ! څوک چې (د خير په کارونو کې) خرچ کوي هغه ته د دې بَدله ورکړه (يعنی په دُنيا کې يې مال زيات کړه ، او آخرت کې ورته د دې ثواب ورکړه (۲)) ، او بله فرښته دا وايي : ای الله ! څوک چې بُخل کوي د هغه مال هلاک کړه .

۴ . په يو روايت کې دا حديث داسې ذکر دی ، نبي عليه السلام فرمايي :

إِنَّ مَلَكًا بِبَابٍ مِنْ أَبْوَابِ الْجَنَّةِ يَقُولُ : مَنْ يُقْرِضِ الْيَوْمَ يُجْزَ غَدًا . وَ مَلَكٌ بِبَابٍ آخَرَ يَقُوْلُ: اَللّٰهُمَّ أَعْطِ مُنْفِقًا خَلَفًا . وَأَعْطِ مُمْسِكًا تَلَفًا . (۳)

بيشکه د جنت په دروازو کې په يوه دروازه باندې يوه فرښته دا اعلان کوي : څوک چې نن قرض ورکړي (يعنی د الله ﷻ په لاره کې مال خرچ کړي) نو سبا (د قيامت په ورځ) به

(۱) رواه البخاري ج ۲ ص ۱۱۵ حديث ۱۴۴۲ باب قول الله تعالى فاما من اعطى واتقى... ، ومسلم ج ۲ ص ۷۰۰ حديث ۱۰۱۰ باب فی المنفق والممسک / وفي رواية : عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ ﷺ : أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ قَالَ : مَا طَلَعَتْ شَمْسٌ قَطُّ إِلَّا (بَعَثَ) بِجَنْبَيْهَا مَلَكَانِ يُنَادِيَانِ : اَللّٰهُمَّ مَنْ أَنْفَقَ فَأَعْقِبْهُ خَلَفًا . وَمَنْ أَمْسَكَ فَأَعْقِبْهُ تَلَفًا . رواه احمد وابن حبان والحاكم، وقال صحيح الاسناد ، قال في مجمع الزوائد (۱۰ ۲۵۵) ، رواه احمد والطبراني فی الکبير والاوسط ، ورواه المنذري فی الترغيب ۴ ۱۱۸ .

(۲) خَلَفًا : ای عِوَضًا عَظِيمًا . وَهُوَ الْعِوَضُ الصَّالِحُ . أَوْ عِوَضًا فِي الدُّنْيَا وَبَدَلًا فِي الْعُقْبٰى . لقوله تعالى : ﴿وَمَا أَنْفَقْتُمْ مِنْ شَيْءٍ فَهُوَ يُخْلِفُهُ وَهُوَ خَيْرُ الرَّازِقِيْنَ . سورة السبا آيت ۳۹﴾ . قال الحافظ : أَمَّا الْخَلَفُ فَإِبْهَامُهُ أَوْلٰى . لِيَتَنَاوَلَ الْمَالَ وَالثَّوَابَ وَغَيْرَهَا . فتح الملهم ج۵ ص ۷۵ .

(۳) رواه البخاري ومسلم وابن حبان ، الترغيب والترهيب ج۱ (۱/ ۶۳۵) . وفي رواية : إِنَّ مَلَكًا بِبَابٍ مِنْ أَبْوَابِ السَّمَاءِ يَقُوْلُ : مَنْ يُقْرِضِ الْيَوْمَ يُجْزَ غَدًا . وَمَلَكٌ بِبَابٍ آخَرَ يَقُوْلُ : اَللّٰهُمَّ أَعْطِ مُنْفِقًا خَلَفًا . وَأَعْطِ مُمْسِكًا تَلَفًا . رواه الطبراني وابن حبان ، ورواه احمد ۲ / ۳۰۵ ، والسيوطي فی الدر ۱ /۳۱۳ ، والهندي فی الکنز ۱۹۱۱۹ .

ددې بدله ورکړې شي ، او يوه فرښته په بله دروازه باندې دا دُعا کوي : يا الله ! خرچ کوونکي ته ددې ښه بدله ورکړې ، او منع کوونکي (بخيل) ته بَربادي ورکړې (يعنی د هغه مال بې برکته او ضائع کړې ) .

# د سخاوت فضيلت

۱ . امام بيهقي رحمه الله د رسول الله صلى الله عليه وسلم يو حديثِ مبارکه ذکر کړی کوم چې صاحب د مشکوة هم رانقل کړی ، رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي :

اَلسخَاءُ شَجَرَةٌ فِي الْجَنَّةِ فَمَنْ كَانَ سَخِيًّا أَخَذَ بِغُصْنٍ مِنْهَا فَلَمْ يَتْرُكْهُ الْغُصْنُ حَتَّى يُدْخِلَهُ الْجَنَّةَ . وَالشُّحُّ شَجَرَةٌ فِي النَّارِ فَمَنْ كَانَ شَحِيحًا أَخَذَ بِغُصْنٍ مِنْهَا فَلَمْ يَتْرُكْهُ الْغُصْنُ حَتَّى يُدْخِلَهُ النَّارَ . (۱)

سخا په جنت کې يوه اُونه ده ، څوک چې سخي وي هغه به د هغې څانګې اونيسي ، نو هغه څانګه به دې تر هغه وخته پورې نه پرېږدي تر څو پورې چې يې جنت ته داخل نه کړي . او بُخل په دوزخ کې يوه اُونه ده پس څوک چې بخيل وي هغه ددې اُونې څانګې اونيسي نو دغه څانګې به دې تر هغه وخته پورې نه پرېږدي تر څو پورې يې چې په دوزخ کې داخل نه کړي

**فايده** په دې حديث کې نبي کريم صلى الله عليه وسلم د سخاوت تشبيه د يوې اُونې سره ورکړې ، يعنی لکه څرنګ چې د يوې غټې اُونې ډېرې څانګې وي نو دغه رنګې سخاوت هم يو عظيم وصف دی او ددې ډېر قِسمونه او ښاخونه دي ، نو څوک چې کوم قِسم اونيسي او په هغه لاره کې خپل مال خرچ کوي نو په دې سره به دې جنت ته داخليږي .

۲ . نبي عليه السلام فرمايي :

خُلُقَانِ يُحِبُّهُمَا اللهُ عَزَّ وَجَلَّ . وَخُلُقَانِ يُبْغِضُهُمَا اللهُ عَزَّ وَجَلَّ . فَأَمَّا اللَّذَانِ يُحِبُّهُمَا اللهُ تَعَالَى فَحُسْنُ الْخُلُقِ وَالسَّخَاءُ . وَأَمَّا اللَّذَانِ يُبْغِضُهُمَا اللهُ فَسُوءُ الْخُلُقِ وَالبُخْلُ . وَإِذَا أَرَادَ اللهُ بِعَبْدٍ خَيْرًا إِسْتَعْمَلَهُ فِيْ قَضَاءِ حَوَائِجِ النَّاسِ . (۲)

(۱) رواهما البيهقي في شعب الايمان ، مشكوة باب الانفاق وكراهية الامساک حديث ۲۸ .

(۲) شعب الايمان ۷/۴۳۶ ، احياء العلوم ج۳ ص ۳۲۶ .

دوه (۲) خويُونه (او صفتونه) الله ﷻ ډير خوښوي، او دوه (۲) خويُونه د الله ﷻ ناخوښه دي، پس کوم دوه خويُونه چې الله ﷻ ته خوښ دي هغه سخاوت او خُوش اَخلاقي ده، او نا خوښه عادتونه بَد اخلاقي او بُخل (کنجوسي) دی. پس کله چې الله ﷻ د يو بنده د خير اِراده وکړي نو هغه د خلقو په ضرورتونو پوره کولو کې اُولږوي.

## سخي سره الله ﷻ محبت کوي

۱. رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي:

إِنَّ اللهَ جَوَادٌ يُحِبُّ الْجَوَادَ، وَيُحِبُّ مَعَالِيَ الْأَخْلَاقِ وَيَكْرَهُ سَفَاسِفَهَا. (۱)

بيشکه الله تعالی سخي دی او سخاوت خوښوي، او اُوچت (بهترين) اخلاق خوښوي او بې کاره رَدي اخلاق بَدګڼي.

## په عابِد بخيل باندې دجاهِل سخي فضيلت

د ترمذي شريف حديث دی، نبي عليه السلام فرمايي:

اَلسَّخِيُّ قَرِيْبٌ مِنَ اللهِ، قَرِيْبٌ مِنَ الْجَنَّةِ، قَرِيْبٌ مِنَ النَّاسِ، بَعِيْدٌ مِنَ النَّارِ. وَالْبَخِيْلُ بَعِيْدٌ مِنَ اللهِ، بَعِيْدٌ مِنَ الْجَنَّةِ، بَعِيْدٌ مِنَ النَّاسِ، قَرِيْبٌ مِنَ النَّارِ. وَالْجَاهِلُ السَّخِيُّ أَحَبُّ إِلَى اللهِ عَزَّ وَجَلَّ مِنْ عَابِدٍ بَخِيْلٍ. (۲)

سخي سړی د الله ﷻ رحمت ته نزدې دی، جنت ته نزدې دی، خلقو ته نزدې دی (يعنی ټول خلق ورسره محبت کوي)، او د اُور نه لرې دی. او بخيل (کوم چې واجب حقوق هم نه ادا کوي) د الله ﷻ د رحمت نه لرې دی، د خلقو نه لرې دی، او اُور (د جهنم) ته نزدې دی. بيشکه جاهل سخي الله ﷻ ته د عابِد بخيل په نسبت ډير محبوب دی (يعنی هغه جاهل

(۱) ذکره ابن ابي شيبة (۲۶۶۱۷)، نزهة الناظرين کتاب مدح السخاء والايثار .. ص ۵۰۱.

(۲) رواه الترمذي ج۳ ص۴۰۷ حديث ۱۹۶۱، مشکوة باب الانفاق وکراهية الامساک الفصل الثاني حديث ۱۱.

سخي چې فرائض ادا کوي خو دنوافلو پابندي نه کوي دا الله ﷻ ته د هغه عابد بخيل نه ډير خوښ دی کوم چې د فرائضو سره سره ډير نوافل هم ادا کوي ) .

## د سخاوت اهميت

۱ . نبي عليه السلام فرمايي چې حضرت جبريل عليه السلام فرمايي :

قَالَ اللهُ عَزَّ وَجَلَّ إِنَّ هٰذَا دِيْنٌ ارْتَضَيْتُهُ لِنَفْسِيْ وَلَا يُصْلِحُهُ إِلَّا السَّخَاءُ وَحُسْنُ الْخُلُقِ فَأَكْرِمُوْهُ بِهِمَا مَا اسْتَطَعْتُمْ . (۱)

الله رب العزت فرمايي : بيشکه دا دين ما د ځان د پاره خوښ کړې دی او ددې اِصلاح صرف په سخاوت او ښو اخلاقو سره کيږي ، نو ستاسو چې څومره وَس کيږي هماغومره په دې دوه صفتونو سره ددې دين اکرام وکړئ . (يعنی دا دوه صفتونه په ځان کې پيدا کړئ) .

۲ . د رسول الله ﷺ نه په يوه موقع پوښتنه اوشوه :

أَيُّ الْأَعْمَالِ أَفْضَلُ ؟ په عملونو کې کوم عمل ډير بهتر دی ؟

پيغمبر عليه السلام ورته وفرمايل : اَلصَّبْرُ وَالسَّمَاحَةُ وَحُسْنُ الْخُلُقِ .

صبر ، سخاوت او ښه اَخلاق . (۲)

۳ . د ترمذي شريف حديث دی ، د نبي عليه السلام نه چا پوښتنه وکړه : اې د الله ﷻ رسوله ﷺ ! کله چې تاسو د دُنيا نه لاړ شی نو بيا زمونږ د پاره د زمکې مخ (يعنی ژوند) بهتر دی ، او که د زمکې خيټه (يعنی مرګ) بهتر دی ؟ نبي عليه السلام ورته وفرمايل :

إِذَا كَانَ أُمَرَاؤُكُمْ خِيَارُكُمْ وَأَغْنِيَاءُكُمْ أَسْخِيَاءُكُمْ وَأُمُوْرُكُمْ شُوْرٰى بَيْنَكُمْ فَظَهْرُ الْأَرْضِ خَيْرٌ لَّكُمْ مِنْ بَطْنِهَا ، وَإِذَا كَانَ أُمَرَاؤُكُمْ شِرَارُكُمْ وَأَغْنِيَاءُكُمْ بُخَلَائُكُمْ وَأُمُوْرُكُمْ إِلٰى نِسَائِكُمْ فَبَطْنُ الْأَرْضِ خَيْرٌ لَّكُمْ مِنْ ظَهْرِهَا . (۳)

---

(۱) ذكره الهيثمي في مجمع الزوائد ( ۸/ ۲۰ ) ، واخرجه الدار قطني في المستجاد ، احياء العلوم ج۳ ص۲۲۶ .

(۲) رواه البيهقي في الزهد واسناده صحيح

(۳) تنبيه الغافلين ص ۱۳۸ باب فضل الصدقة طبع دار الفكر بيروت .

كله چې ستاسو اميران په تاسو كې بهترين خلق وي ، مالدار مو سخيان وي او كارونه مو په مشوره وي نو بيا د زمكې مخ (يعنى ژوند) ستاسو د پاره د زمكې د خيټې (مرگ) نه بهتر دى . او كه ستاسو اميران په تاسو كې بدترين خلق وي ، مالدار مو بخيلان وي ، او كارونه مو خپلو ښځو ته سپارلي وي نو بيا د زمكې خيټه (مرگ) ستاسو دپاره د زمكې د شا (يعنى ژوند) نه ډيره بهتره ده .

۴ . حضرت عبدالله بن عباس رضى الله عنهما فرمايي : په دُنيا كې د خلقو سرداران سخيان خلق دي ، او په آخرت كې د خلقو سرداران متّقيان دي . (۱)

۵ . حسن بصري رحمه الله وايي چې ما دسخاوت په صفت باندې غور وكړو نو ما ته ددې اصل دا معلوم شو چې سخي سړى په الله ﷻ دا ښه گمان لري چې الله ﷻ د خپلو وعدو خلاف وَرزي نه كوي ، ځكه الله تعالى فرمايي :

﴿ وَمَا أَنْفَقْتُمْ مِنْ شَيْءٍ فَهُوَ يُخْلِفُهُ ... ﴾ . (۲) ترجمه : څه چې تاسو د الله ﷻ د رضا د پاره خرچ كوئ نو الله تعالى به تاسو ته د هغې بدله دركوي .

او د بُخل او كنجوسۍ اصل راته دا معلوم شو چې بخيل سړى نَعُوذُ بِالله په الله ﷻ باندې بَدگماني لري چې گني الله ﷻ خپله وعده نه پوره كوي . (۳)

## د سخي په وفات كيدو د زمكې او حفظه فرښتو دُعا

حضرت سلمان فارسي ﷺ فرمايي :

إِذَا مَاتَ السَّخِيُّ قَالَتِ الْأَرْضُ وَالْحَفَظَةُ : رَبِّ تَجَاوَزْ عَنْ عَبْدِكَ فِي الدُّنْيَا بِسَخَائِهِ . وَإِذَا مَاتَ الْبَخِيْلُ قَالَتْ : أَللّٰهُمَّ احْجُبْ هٰذَا الْعَبْدَ عَنِ الْجَنَّةِ كَمَا حَجَبَ عِبَادَكَ عَمَّا جَعَلْتَ فِيْ يَدَيْهِ مِنَ الدُّنْيَا . (۴)

---

(۱) الترغيب والترهيب لليافعي ۸۴ .

(۲) سورة سبا آيت ۳۹ .

(۳) الترغيب والترهيب لليافعي رحمه الله ۸۵ .

(۴) نضرة النعيم في مكارم اخلاق الرسول النبي الكريم ﷺ ج۶ ص ۲۲۵۵ السخاء .

کله چې سخي سړی وفات شي نو زمکه او حفظه فرښتې الله رب العزت ته دا عرض کوي: اې ربه ! دې بنده ته په دُنیا کې دده دسخاوت په وجه معافي وکړه، (او دده ګناهونه معاف کړه). او چې کله بخیل سړی مړشي نو دوی الله ﷻ ته عرض کوي: اې الله ﷻ ! دا بخیل د جنت نه داسې لرې اُوساته لکه څرنګ چې ده ستا بندګان لرې ساتلي وو د هغه مال و دولت او دُنیا نه کومه چې دده سره په لاس کې وه (یعنی لکه څرنګ چې ده په خپل مال باندې بُخل کولو او چاله یې نه ورکوله، نو اې الله ﷻ اوس دې هم د جنت نه لرې اُوساته).

## د سخاوت په وجه جنت ته داخلیدل

۱. الله تعالی فرمایي:

﴿وَسَارِعُوٓا إِلَىٰ مَغۡفِرَةٖ مِّن رَّبِّكُمۡ وَجَنَّةٍ عَرۡضُهَا ٱلسَّمَٰوَٰتُ وَٱلۡأَرۡضُ أُعِدَّتۡ لِلۡمُتَّقِينَ، ٱلَّذِينَ يُنفِقُونَ فِي ٱلسَّرَّآءِ وَٱلضَّرَّآءِ وَٱلۡكَٰظِمِينَ ٱلۡغَيۡظَ وَٱلۡعَافِينَ عَنِ ٱلنَّاسِۗ وَٱللَّهُ يُحِبُّ ٱلۡمُحۡسِنِينَ﴾ (۱)

ترجمه: او تاسو منډه اُووهئ بخښې د خپل رب طرف ته (یعنی هغه اَعمالو طرفته وړاندې والې او جَلتي وکړئ کوم چې د انسان د مغفرت او بخښې سبب ګرځي)، او د هغه جنت طرف ته منډه اُووهئ چې د هغې پلنوالې دآسمانونو او زمکې برابر دی، دا جنت تیار کړې شوې دی د مُتّقیانو (پرهیزګارانو) د پاره، (متقیان هغه خلق دي) څوک چې خپل مالونه په خوشحالۍ او سختۍ دواړو حالتونو کې خرچ کوي، غصه زغمي، او د خلقو تصور معاف کوي، او الله تعالی (داسې) نیکو کار خلق خوښوي.

۲. حضرت علي رضی الله عنه فرمایي:

رُبَّمَا دَخَلَ السَّخِيُّ بِسَخَائِهِ الْجَنَّةَ. (۲)

ډیر کرته سخي سړی د خپلې سخا په وجه جنت ته داخلیږي.

۳. نبي علیه السلام فرمایي:

(۱) سورة آل عمران آیت ۱۳۳، ۱۳۴.

(۲) الاداب الشرعية ۳/۳۱۲، نضرة النعيم في مكارم اخلاق الرسول الكريم صلى الله عليه وسلم ج٦ ص ۲۲۵۴ السخاء.

إِنَّ بـدَلَاء أُمَّتِي لَمْ يَدْخُلُوا الْجَنَّةَ بِصَلٰوةٍ وَلَا صِيَامٍ وَلٰكِنْ دَخَلُوْهَا بِسَخَاءِ الْأَنْفُسِ وَسَلَامَةِ الصَّدْرِ وَالنُّصْحِ لِلْمُسْلِمِيْنَ. (۱)

زما دامت اَبدال ( نيکان خلق ) جنت ته په ډيرو لمونځونو او روژو نه دي داخل شوي بلکه د زړونو په صفايي او د سخا په وجه جنت ته داخل شوي.

۴. امام غزالي رحمه الله په " احياءُ العلوم " کې ليکلي : کله چې د انسان سره مال ودولت نه وي نو په کار ده چې انسان صبر وکړي او د حرص نه ځان اوساتي. او که دانسان سره مال وي نو بيا په کار ده چې انسان د سخاوت نه کار واخلي، په بهترين ځايونو کې يې خرچ کړي، شُوميتا او بُخل نه ځان اوساتي، او سخاوت وکړي، ځکه سخا کول دانبياء کرامو اَخلاق دي او دا د کاميابئ د اصولو نه يو اَهم اَصل دی. (۲)

## د سخاوت اِجمالي فوايد:

۱. سخاوت د انبياء کرامو او سلفو صالحينو طريقه او عادت دی.

۲. د سخي سړي په وفات کيدو باندې زمکه او حفظه فرښتې دده د پاره د مغفرت اوبخښې دُعاګانې غواړي. ۳. سخي سړی په دُنيا او آخرت دواړو کې محمود وي.

۴. سخاوت کول د دُنيا نه په بې رغبتئ او د آخرت سره په محبت دلالت کوي.

۵. د سخي په مال او اولاد کې الله رب العزت برکت اچوي.

۶. سخاوت کول د کامِل ايمان علامه ده.

۷. د سخي د پاره د ډيرو اجرونو او جنت وعده شوی.

۸. سخي سره الله رب العزت محبت کوي.

۹. سخي سړی د جهنم نه لرې او جنت ته نزدې وي.

۱۰. سخي سړي ته فرښتې په هره ورځ د برکت دُعا کوي او محبت ورسره کوي.

---

(۱) اخرجه ابونعيم فى حلية الاولياء ( ۱ ۲۸ )، شعب الايمان ۷ ۴۳۹، نزهة الناظرين ص ۵۰۲.

(۲) إِعْلَمْ أَنَّ الْمَالَ إِذَا كَانَ مَفْقُوْدًا فَيَنْبَغِيْ أَنْ يَكُوْنَ حَالُ الْعَبْدِ الْقَنَاعَةَ. وَقِلَّةَ الْحِرْصِ. وَإِنْ كَانَ مَوْجُوْدًا فَيَنْبَغِيْ أَنْ يَكُوْنَ حَالُهُ الْإِيْثَارَ. وَاصْطِنَاعَ الْمَعْرُوْفِ. وَالتَّبَاعُدَ عَنِ الشُّحِّ وَالْبُخْلِ. فَإِنَّ السَّخَاءَ مِنْ أَخْلَاقِ الْأَنْبِيَاءِ عَلَيْهِمُ السَّلَامُ. وَهُوَ أَصْلٌ مِنْ أُصُوْلِ النَّجَاةِ. احياء علوم الدين ۳/ ۲۴۳، نضرة النعيم ج۶ ص ۲۲۵۷.

# د بُخل مذمت او دده نه د بچ کيدو تاکيد

بُخل او شومتيا داسې بدترين او خراب صفت دی چې دا د انسان د تباهۍ سبب ګرځي، ځکه بخيل سړی اکثر فرضي زکوة او نور مالي حقوق هم نه اداء کوي چې دا د انسان د هلاکت او تباهۍ ذريعه ده. دغه وجه ده چې په قرآن کريم او احاديثو کې د بُخل نه د بچ کيدو تاکيد راغلی، او هغه انسان کامياب ګڼل شوی څوک چې د بُخل نه بچ شو.

۱. الله رب العزت فرمايي:

﴿ وَأَمَّا مَنْ بَخِلَ وَاسْتَغْنٰى . وَكَذَّبَ بِالْحُسْنٰى . فَسَنُيَسِّرُهُ لِلْعُسْرٰى . وَمَا يُغْنِيْ عَنْهُ مَالُهُ إِذَا تَرَدّٰى ﴾. (۱)

ترجمه: او چا چې بُخل وکړو، بې پرواه شو. او د ښکلي احکاماتو تکذيب يې وکړو نو ډير زر به مونږ دوی د سختۍ په طرف روان کړو، او کله چې دا (کس) کندې ته اوغورځيږي (يعنی وفات شي) نو دده مال به د ده هيڅ په کار رانه شي.

۲. بل ځای الله جَلَّ جَلَالُهُ فرمايي:

﴿ وَمَنْ يُوْقَ شُحَّ نَفْسِهِ فَأُولٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ ﴾. (۲)

ترجمه: او څوک چې د شومتيا د نفس نه بچ شي نو همدغه خلق کامياب دي.

۳. د مسلم شريف حديث دی، رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي:

إِتَّقُوا الشُّحَّ فَإِنَّ الشُّحَّ أَهْلَكَ مَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ حَمَلَهُمْ عَلٰى أَنْ سَفَكُوْا دِمَاءَهُمْ وَاسْتَحَلُّوْا مَحَارِمَهُمْ. (۳)

تاسو د بُخل نه ځان اوساتئ، ځکه بُخل د تاسو نه مخکې خلق هلاک کړي، دوی يې دې ته جوړ کړه چې د بُخل په وجه هغوی د يو بل وينې توی کړی او حرام يې حلال وګڼل (ځکه بخيل سړی د چا هيڅ خبر ګيري نه کوي، او نه ورسره تعلقات ساتي چې ددې آخري نتيجه

---

(۱) سورة الليل آيت ۸ - ۱۱.

(۲) سورة التغابن آيت ۱۶.

(۳) رواه مسلم. مشكوة باب الانفاق وكراهية الامساك حديث ۷..

دُشمني شي، او د دُشمنۍ په وجه يا خُون رِيزي کوي، حرام مال او حرامې خبرې يا حلالې ګڼي).

۴. حضرت اسماء بنت ابي بکر رضي الله عنها فرمايي چې ماته رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: لَا تُوْكِيْ فَيُوْكَأُ عَلَيْكِ.

ذخيره مه کوه (يعنې تيلۍ خُوله مه بندوه، بلکه فراخه خرچ او صدقه ورکوه)، ورنه په تا به هم د تيلۍ خُوله بنده کړې شي (يعنې په تا به هم د الله ﷻ د طرفه فراخه نعمتونه بند کړې شي).

په يو روايت کې داسې الفاظ دي، نبي عليه السلام ورته فرمايي:

أَنْفِقِيْ. أَوِ انْفَحِيْ. أَوِ انْضَحِيْ، وَلَا تُحْصِيْ فَيُحْصِيَ اللهُ عَلَيْكِ. وَلَا تُوْعِيْ فَيُوْعِيَ اللهُ عَلَيْكِ. (۱)

(اې اَسماء!) ته ښه خرچ کوه او حساب مه کوه، ورنه الله ﷻ به هم يا تا ته په حساب درکوي، او د فقيرانو نه په منع کولو سره مال مه جمع کوه، ورنه الله ﷻ به هم د تا نه خپل نعمتونه منع کړي. (۲)

## بُخل بَد ترين صفت دی

۱. د ترمذي شريف حديث دی، رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي:

خَصْلَتَانِ لَا تَجْتَمِعَانِ فِيْ مُؤْمِنٍ: اَلْبُخْلُ وَسُوْءُ الْخُلُقِ. (۳)

دوه خصلتونه (او خُويونه) داسې دي چې دا په (کامِل) مومِن کې نه جمع کيږي: يو بُخل، او دويم بَد اخلاقي.

(۱) رواه البخاري ج۳ ص۱۵۸ حديث ۲۵۹۱ باب هبة المراة لغير زوجها وعتقها ... ومسلم ج۲ ص۷۱۳ حديث ۱۰۲۹، وابوداؤد، الترغيب والترهيب ج ۲ ص ۲۷ الترغيب في الانفاق في وجوه الخير كرما ...

(۲) وَقَوْلُهُ: "لَاتُوْكِيْ" قَالَ الخِطَابِيْ: لَاتَدَّخِرِيْ. وَالْإِيْكَاءُ: شَدّ رأْسِ الوعاء بِالوكاءِ. وَهو الرِّباطُ الَّذِيْ يربط به. يَقول: لَا تَمْنَعِيْ مَا فِيْ يدكِ فتنقطع مادة بركة الرّزق عنكِ. الترغيب والترهيب جز ۲ ص ۲۷.

(۳) رواه الترمذي، مشكوة باب الانفاق وكراهية الامساک الفصل الثاني حديث ۱۴.

۲. د ابو داؤد شريف حديث دی، نبي عليه السلام فرمايي :

شَرُّ مَا فِي الرَّجُلِ شُحٌّ هَالِعٌ وَجُبْنٌ خَالِعٌ . (۱)

په انسان کې چې کوم بَدترين صفتونه دي په هغې کې د ټولو نه بدتر دوه (۲) صفتونه دي : يو اِنتهايي درجې بُخل، او دويم اِنتهايي درجې بُزدلي (او نامَردي).

## بخيل به جنت ته نه داخليږي

د ترمذي شريف حديث دی، رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي :

لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ خبٌّ . وَلَا بَخِيْلٌ . وَلَا مَنَّانٌ . (۲)

جنت ته به نه مکّار سړی داخليږي، نه بخيل، او نه هغه کس چې د اِحسان کولو نه روستو په خلقو اِحسان زباتوي.

**فايده** : يعنی څوک چې دومره بخيل وي چې د بخل په وجه د مال فرضي حقوق نه اداء کوي نو دا کس به اِبتداءً جنت ته نه داخليږي، بلکه اول به په جهنم کې ددې بُخل او کنجُوسی سزا څکي.

## په بُخل کولو کې د انسان خپل نقصان دی

کله چې يو انسان بُخل او شُومتيا کوي يعنی نه خو د مال فرضي حقوق اداء کوي، او نه نور د خَير په کارونو کې خپل مال خرچ کوي نو ددې نقصان انسان ته په خپله رسي، او دا په حقيقت کې انسان د خپل ځان سره بُخل کوي، يعنی خپل ځان د دائمي نعمتونو او نفعو نه محرومه کوي. الله رب العزت فرمايي :

﴿ هَا أَنْتُمْ هٰؤُلَاءِ تُدْعَوْنَ لِتُنْفِقُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللهِ . فَمِنْكُمْ مَّنْ يَّبْخَلُ . وَمَنْ يَّبْخَلْ فَإِنَّمَا يَبْخَلُ عَنْ نَّفْسِهِ . وَاللهُ الْغَنِيُّ وَأَنْتُمُ الْفُقَرَآءُ ... ﴾ . (۳)

---

(۱) رواه ابوداؤد، مشكوة باب الانفاق وكراهية الامساک الفصل الثاني حديث ۱٦ .

(۲) رواه الترمذي، مشكوة باب الانفاق وكراهية الامساک الفصل الثاني حديث ۱۵

(۳) سورة محمد آيت ۳۸ .

ترجمه : واورئ ، تاسو خو هغه خلق يئ چې کله تاسو ته وبللې شی چې د الله ﷻ په لاره کې خرچ وکړئ ، پس ځنې له تاسو نه هغه خلق دي چې بُخل ( شُومتيا ) کوي ، او څوک چې بُخل کوي نو بيشکه هغه د خپل ځان سره بُخل کوي ، او الله تعالی غني دی او تاسو محتاج يئ .

## د بُخل کوونکي مثال

د خَير په کارونو کې دبُخل کولو مثال داسې دی لکه يو حکيم مريض ته څه نُسخه وليکي، او ورته ووايي چې : په دې نُسخه باندې سل روپۍ خرچه راځي ، ته دا سل روپۍ خرچ کړه او ځان له پرې دوايي واخله ، ځکه په دې کې ستا فايده ده . او دا مريض ووايي : زه خو سل روپۍ نه خرچ کوم . نو حکيم ورته ووايي : ورو ! ته چې سل روپۍ نه خرچ کوی او بُخل کوی نو په دې کې خو ستا نقصان دی ، د خپل ځان سره بُخل کوی ، زما خو په کې هيڅ نقصان نشته .

دغه شان الله ﷻ او د هغه رسول صلی الله عليه وسلم هم مسلمانانو ته د زکوة او نورو د خَير په کارونو کې د مال خرچ ورکولو ترغيب ورکړی ، او دايې ورته هم واضحه کړی چې څوک بُخل کوي نو د خپل ځان سره بُخل کوي ، يعنی خپل ځان د اَبدي نعمتونو او فوايدو نه محرومه کوي . (۱)

(۱) خطبات حکيم الامت ج۸ ص ۳۸۸ .

............

# د خپل ځان په نسبت نورو ته ترجیح ورکول

په صحابه کرامو کې د ایثار صفت په کامله طریقې سره موجود و ، او ایثار دیته وایي چې د یو سړي خوراک ، څکاک یا مال و دولت ته سخت ضرورت وي خو دی یا هم د خپل ځان په نسبت بل ته ترجیح ورکړي ، او دا ایثار د سخاوت اعلی قسم دی .

الله رب العزت فرمایي :

﴿ وَيُؤْثِرُونَ عَلَىٰٓ أَنفُسِهِمْ وَلَوْ كَانَ بِهِمْ خَصَاصَةٌ ۚ وَمَن يُوقَ شُحَّ نَفْسِهِۦ فَأُو۟لَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْمُفْلِحُونَ ﴾ . (۱)

ترجمه : او دوی نورو ته په خپل ځان باندې ترجیح ورکوي اگر په دوی باندې په خپله وږه (او سختي) وي ، او څوک چې د خپل نفس د شومتیا (او حرص) نه بچ اُوساتلې شو نو همدغه خلق کامیاب دي .

## شانِ نزول : د یو انصاري صحابي د ایثار واقعه:

ددې آیت شانِ نزول امام بخاري رحمه الله داسې ذکر کړی :

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ ﷺ أَنَّ رَجُلًا أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . فَبَعَثَ إِلَى نِسَائِهِ . فَقُلْنَ : مَا مَعَنَا إِلَّا الْمَاءُ . فَقَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ : "مَنْ يَضُمُّ أَوْ يُضِيفُ هٰذَا ؟" فَقَالَ رَجُلٌ مِنَ الْأَنْصَارِ : أَنَا . فَانْطَلَقَ بِهِ إِلَى امْرَأَتِهِ . فَقَالَ : أَكْرِمِي ضَيْفَ رَسُولِ اللهِ ﷺ . فَقَالَتْ : مَا عِنْدَنَا إِلَّا قُوتُ صِبْيَانِي . فَقَالَ : هَيِّئِي طَعَامَكِ . وَأَصْبِحِي سِرَاجَكِ وَنَوِّمِي صِبْيَانَكِ إِذَا أَرَادُوا عَشَاءً . فَهَيَّأَتْ طَعَامَهَا . وَأَصْبَحَتْ سِرَاجَهَا . وَنَوَّمَتْ صِبْيَانَهَا . ثُمَّ قَامَتْ كَأَنَّهَا تُصْلِحُ سِرَاجَهَا فَأَطْفَأَتْهُ . فَجَعَلَا يُرِيَانِهِ أَنَّهُمَا يَأْكُلَانِ . فَبَاتَا طَاوِيَيْنِ . فَلَمَّا أَصْبَحَ غَدَا إِلَى رَسُولِ اللهِ ﷺ فَقَالَ : " ضَحِكَ اللهُ اللَّيْلَةَ . أَوْ عَجِبَ مِنْ فِعَالِكُمَا " فَأَنْزَلَ اللهُ عَزَّ وَجَلَّ ﴿ وَيُؤْثِرُونَ عَلَىٰٓ أَنفُسِهِمْ وَلَوْ كَانَ بِهِمْ خَصَاصَةٌ وَمَن يُوقَ شُحَّ نَفْسِهِۦ فَأُو۟لَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْمُفْلِحُونَ ﴾ . (۲)

---

(۱) سورة الحشر آیت ۹ .

(۲) صحیح البخاري باب قول الله : ﴿ ویؤثرون علی انفسهم ولو کان بهم خصاصة ﴾ جز ۵ ص ۳۴ حدیث ۳۷۹۸ .

حضرت ابوهريرة رضى الله عنه فرمايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم ته يو کس راغی ( د دوی ميلمه شو ) ، پيغمبر عليه السلام خپلو بيبيانو کره د خوراک د پاره جواب ورولیږل ، د هغوی ټولو د طرفه دا جواب راغی چې مونږ سره خو د اُوبو نه علاوه بل هيڅ شی نشته ، نبي عليه السلام په مجلس کې ناستو صحابه کرامو ته وفرمايل : نن شپه به د دې ميلمه ميلمستيا څوک وکړي ؟ د انصارو يو کس پاڅيد ، او وې ويل : زه به يې ميلمستيا وکړم ، د ځان سره يې کورته بوتلو ، خپلې بي بي ته يې وويل : د نبي عليه السلام د دې ميلمه اِکرام وکړه ، هغې ورته وويل : د مونږ سره خو صرف دومره خوراک دی چې اِيله د ماشومانو به اُوشي ( ددينه زيات نشته ) ، دې صحابي ورته وويل : ته خوراک تيار کړه ، ډيوه اُولږوه ، او چې کله د ډوډۍ وخت شي نو ماشومان په څه طريقه اُوده کړه . نو دې خوراک تيا رکړو ، ډيوه يې بَله کړه ، خپل ماشومان يې اُوده کړه ، بيا د ډيوې د صحيح کول په بهَانه پاڅيده نو ډيوه يې مړه کړه ، دې ښځې او خاوند ميلمه ته په دې تياره کې دا خوده چې گني مونږ هم درسره خوراک کوو ( حالانکه دوی ورسره هسې ناست وو ، خوراک يې ورسره نه کولو ، ددې دپاره چې دا ميلمه موړ شي ) ، نو دوی دواړه اُوږي اُوده شو . کله چې سهر دا صحابي د رسول الله صلى الله عليه وسلم په خدمت کې حاضر شو نو نبي عليه السلام ورته وفرمايل: بيگاه شپه ستاسو د دې کار نه الله ﷻ ډير زيات خوشحاله شو ، او الله ﷻ دا آيت نازل کړو: ترجمه : او دوی نورو ته په خپل ځان باندې ترجيح ورکوي اگر که په دوی باندې په خپله وَلږه (او سختي) وي .(۱)

---

(۱) په مسلم شريف کې دا واقعه په دې الفاظو ذکر ده : عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضي الله عنه قَالَ : جَاءَ رَجُلٌ إِلَى رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ : إِنِّي مَجْهُوْدٌ . فَأَرْسَلَ إِلَى بَعْضِ نِسَائِهِ . فَقَالَتْ : وَالَّذِيْ بَعَثَكَ بِالْحَقِّ مَا عِنْدِيْ إِلَّا مَاءٌ . ثُمَّ أَرْسَلَ إِلَى أُخْرَى . فَقَالَتْ مِثْلَ ذٰلِكَ . حَتَّى قُلْنَ كُلُّهُنَّ مِثْلَ ذٰلِكَ : لَا . وَالَّذِيْ بَعَثَكَ بِالْحَقِّ مَا عِنْدِيْ إِلَّا مَاءٌ . فَقَالَ: '' مَنْ يُضِيْفُ هٰذَا اللَّيْلَةَ . رَحِمَهُ اللهُ ؟ '' فَقَامَ رَجُلٌ مِنَ الْأَنْصَارِ . فَقَالَ : أَنَا يَارَسُوْلَ اللهِ . فَانْطَلَقَ بِهِ إِلَى رَحْلِهِ . فَقَالَ لِامْرَأَتِهِ : هَلْ عِنْدَكِ شَيْءٌ ؟ قَالَتْ : لَا . إِلَّا قُوْتَ صِبْيَانِيْ . قَالَ : فَعَلِّلِيْهِمْ بِشَيْءٍ . فَإِذَا دَخَلَ ضَيْفُنَا فَأَطْفِئِي السِّرَاجَ وَأَرِيْهِ أَنَّا نَأْكُلُ . فَإِذَا أَهْوَى لِيَأْكُلَ فَقُوْمِيْ إِلَى السِّرَاجِ حَتَّى تُطْفِئِيْهِ . قَالَ : فَقَعَدُوْا وَأَكَلَ الضَّيْفُ . فَلَمَّا أَصْبَحَ غَدَا عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ : قَدْ عَجِبَ اللهُ مِنْ صَنِيْعِكُمَا بِضَيْفِكُمَا اللَّيْلَةَ . البخاري ، الفتح ۷ ( ۳۷۹۸ ) ، ومسلم ج۳ ص ۱۶۲۴ حديث ۲۰۵۴ واللفظ له . نضرة النعيم ج۴ ص ۱۵۱۰ الجود .

فايده : اِسلام مسلمانانو ته په هره موقع باندې د اِيثار او همدردۍ حکم کوي ، دغه وجه ده چې په اِسلامي تاريخ کې د اِيثار او همدردۍ داسې نا آشنا او د عبرک نه ډک واقعات ملاويږي چې تر قيامته پورې د انسانانو د پاره يو لوي عبرت دی . ددې په باره کې درته يو څو بهترين او معتمد واقعات نقل کوم :

## ۱. د شهادت په وخت د صحابه کرامو د اِيثار يو ناياب مثال

امام غزالي رحمه الله په ''احياء العلوم'' کې نقل کړي : يو صحابي فرمايي چې د يرموک په جهاد کې زه د خپل تره ځوي په تلاش کې اُووتم ، او دما سره څه اندازه اُوبه هم وې ، ما د ځان سره ووېل : که چيرته هغه ته د اُوبو څکلو ضرورت وي نو اُوبه به ورباندې اُوڅکم ، او په مخ به ورله څه واچوم ، ( ځکه زخمي ته د اُوبو سخت ضرورت وي ) . ناڅاپه ما هغه په يو ځای کې په داسې حالت کې پروت وليده چې زخمي شوې ؤ ، او د زنکدن آخري حالت يې ؤ ، ما ورته ووېل : اُوبه درباندې اُوڅکم ؟ هغه راته په اِشاره ووېل : هو ، ( اُوبه راوړه ) . کله چې ما هغه له اُوبه ورووړې ، نو د هغه سره يو بل کس نزدې پروت ؤ ، هغه هم زخمي شوې ؤ ، د هغه هم د زنکدن آخري حالت ؤ ، هغه يو آه وکړو . کله چې زما د تره ځوي د هغه آواز واوريده نو ما ته يې اِشاره وکړه چې اُوبه هغه له ويسه . کله چې زه هغه ته ورغلم نو هغه هشام بن العاص ﷛ ؤ ، ما هغه ته ووېل : اُوبه درباندې اُوڅکم ؟ په دې کې يو دريم کس هم زخمي ؤ ، د هغه هم د شهادت آخري وخت ؤ ، هغه هم يو آه وکړو ، کله چې هشام ﷛ د هغه دا آواز واوريده نو ما ته يې اِشاره وکړه چې اُوبه هغه له ويسه ، کله چې ما دې دريم کس له اُوبه ورووړې نو هغه وفات شوې ؤ ، کله چې واپس هشام بن العاص ﷛ ته راغلم نو دې هم وفات شوې ؤ ، او کله چې زه خپل د تره ځوي ته راغلم نو هغه هم وفات شوې ؤ . (۱)

(۱) قَالَ حُذَيفةُ العدوي : اِنطلقتُ يومَ اليَرمُوكِ أَطْلُبُ ابن عمّي لي . ومَعِيَ شَيْءٌ مِن مَاءٍ . وَأَنَا أقولُ : إِن كَانَ بِهِ رمق سَقَيْتُهُ ومسحتُ به وجهه . فَإِذَا أنَا به فَقُلْتُ : أَسْقيک ؟ فَأَشار إِليّ أنْ نعم . فإذا رجلٌ يقولُ : آه... فأشارَ ابنُ عمّي إليّ أنْ انطلق به إليه . فجئتُه فإذا هو هشامُ بنُ العاص فقلتُ : أَسقيک ؟ فَسَمِعَ به آخر . فقال : آه... فأشار هشامُ انطلق به إليه . فجئتُه . فإذا هو قد مات . فرجعتُ إلى هشام فإذا هو قد مَاتَ . فرجعتُ إلى ابن عمّي فإذا هو قد مَاتَ . رحمة الله عليهم أجمعين . احياء العلوم ج۳ ص ۳۳٦ کتاب ذم البخل و ذم حب المال بيان الايثار وفضله ، حيوة الصحابة .

**فايده**. ديته ايثار او همدردي وايي چې د مرګ په وخت يې هم د خپل ځان په نسبت بل ته ترجيح ورکړه. الله ﷻ دې په مونږ کې هم داسې د ايثار او قربانۍ جذبه پيدا کړي. آمين

## ۲. د چيلۍ سَر په اووه (۷) کورونو ګرځيدل

حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما فرمايي:

أُهْدِيَ لِرَجُلٍ رَأْسُ شَاةٍ، فَقَالَ: إِنَّ أَخِي وَعِيَالَهُ أَحْوَجُ مِنَّا إِلَى هٰذَا، فَبَعَثَ بِهِ إِلَيْهِ، فَلَمْ يَزَلْ يَبْعَثُ بِهِ وَاحِدٌ إِلَى آخَرَ حَتَّى رَجَعَتْ إِلَى الْأَوَّلِ بَعْدَ سَبْعَةٍ. (۱)

يو صحابي ته چا د چيلۍ سَر په هديه کې ورکړو، هغه د ځان سره وويل چې زما فلانی مسلمان ورور او د هغه بچي زما په نسبت ددې سَر ډير محتاج دي نو ده هغه ته وليږلو، هغه هم دا ګمان وکړو چې زما په نسبت دا بل کس ډير محتاج دی نو هغه ته يې وليږل، دغه شان به هر صحابي بل کره ليږلو، او د خپل ځان په نسبت به يې بل ته ترجيح ورکوله، تر دې پورې چې د اُووه (۷) کورونو نه روستو دا سَر هماغه اول صحابي کره واپس راغی، (يعنی هغه آخري کس هم په دې اول کس باندې دا ګمان کړې ؤ چې دا د مانه ډير محتاج دی نو ده ته يې راوليږل).

**فايده**: دا د صحابه کرامو سخاوت او اِخلاص دی چې په خپله به يې ورته ډير ضرورت ؤ خو بيا به يې هم بل ته په خپل ځان باندې ترجيح ورکوله.

## ۳. د حضرت عائشې رضي الله عنها اِيثار

امام مالک رحمه الله نقل کړي چې حضرت عائشې رضی الله عنها ته يو مسکين راغی، او سوال يې ورنه وکړو، حالانکه د حضرت عائشې رضی الله عنه روژه وه او ددې په کور کې صرف يوه ډوډۍ (چپاتې) وه (ددې نه علاوه ورسره بل هيڅ شی د خوراک نه ؤ).

دې خپلې وينځې ته وويل: أَعْطِيْهِ إِيَّاهُ. دا ډوډۍ دې فقير له ورکړه.

---

(۱) اخرجه ابن جرير كذا فى الكنز، احياء العلوم ج۳ ص ۳۴۵، تنبيه الغافلين، الفتح ۷/ ۱۲۰، نضرة النعيم في مكارم اخلاق الرسول الكريم ج۸ ص ۳۲۳۲.

هغې ورته وويل : د تاسره خو ددينه علاوه بل داسې شی نشته چې ته په هغې روژه ماته کړې (صرف همدا يوه روټۍ ده ، نو دا څنګه دې فقير له ورکړم ؟ )

حضرت عائشې رضی الله عنها ورته بيا وفرمايل : أَعْطِيْهِ إِيَّاهُ. دا ډوډۍ دې فقير له ورکړه . نو دې وينځې هغه مسکين ته دا ډوډۍ ورکړه .

کله چې ماښام شو نو يو کور واله يا يو سړي دې ته هديه راوليږله چې د چيلۍ پخ شوې غوښه او روټۍ وغيره وو . دا وينځه وايي چې زه حضرت عائشې رضی الله عنها را اُوغوښتم او راته وې ويل :

كُلِيْ مِنْ هٰذَا . هٰذَا خَيْرٌ مِنْ قُرْصِكِ. (۱)

دا اُوخوره ، دا ستا د ککوړي (چپاتي روټۍ) نه ډير بهتر دی .

## ۴ . د امامِ واقدي رحمه الله ايثار

خطيب بغدادي رحمه الله په خپل مشهور کتاب " تاريخ بغداد " کې د امام واقدي رحمه الله په حالاتو کې يوه واقعه رانقل کړې :

امامِ واقدي رحمه الله وايي چې يو کرت په ما باندې سخت غُربت او مالي مشکلات راغله ، په کور کې هيڅ شی نهٔ ، بي بي راته وويل : اختر راروان دی مونږ خو به په وَلږه او تنده باندې صبر وکړو خودا ماشومان بچي مو صبر نشي کولی ، بل دا چې په اختر کې به نور د ګاوند ماشومان نوې جامې اغوندي خوراکونه به کوي ، که چيرته زمونږ د ماشومانو همدا زړې شليدلې جامې وې او د خوراک هم څه نه وي نو صبر به اونه کړې شي ، نو ته د چا نه څه روپۍ قرض راواخله چې دې ماشومانو له پرې څه راوړو .

(۱) رَوَى مَالِكٌ ـ رَحِمَهُ اللهُ تَعَالَى ـ عَنْ مَوْلَاةٍ لِعَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا أَنَّ مِسْكِيْنًا سَأَلَ عَائِشَةَ وَهِيَ صَائِمَةٌ وَلَيْسَ فِيْ بَيْتِهَا إِلَّا رَغِيْفٌ . فَقَالَتْ لِمَوْلَاةٍ لَهَا : أَعْطِيْهِ إِيَّاهُ . فَقَالَتْ : لَيْسَ لَكِ مَا تُفْطِرِيْنَ عَلَيْهِ . فَقَالَتْ : أَعْطِيْهِ إِيَّاهُ . فَفَعَلَتْ . فَلَمَّا أَمْسَيْنَا أَهْدٰى لَهَا أَهْلُ بَيْتٍ أَوْ إِنْسَانٌ ـ مَا كَانَ يُهْدِيْ لَهَا ـ شَاةً وَكَفَنَهَا فَدَعَتْنِيْ عَائِشَةُ . فَقَالَتْ : كُلِيْ مِنْ هٰذَا . هٰذَا خَيْرٌ مِنْ قُرْصِكِ . اخرجه مالک فی الموطاء ج ۲ ص ۹۹۷ حديث ۵ ، جامع الاصول لابن الاثير (۶/۴۵۲) ، نضرة النعيم ج ۶ ص ۲۲۵۵ السخاء .

امام واقدي وايي چې زما دوه دوستان وو ، يو تاجر دوست ، او بل هاشمي دوست ، زمونږ د دريو وارو سره په خپل مينځ کې پخه دوستانه وه .

نو زه دې تاجِر دوست ته ورغلم چې قرض ورنه واخلم ، کله چې هغه زه وليدم نو راباندې پوهه شو ، کورته لاړو ، د دولس سوه (۱۲۰۰) درهمو يوه تيلۍ يې را أوويسته ، او ماله يې راکړه.

کله چې زه کور ته راغلم ، او څنګه کيناستم ، نو زما هغه هاشمي دوست ماله راغی ، د هغه په کور کې هم حَد درجه غُربت او فقيري وه ، هغه هم د مانه د قرض غوښتلو د پاره راغی ، زه کورته راغلم د خپلې بي بي سره مې مشوره وکړه چې په ده باندې هم سخت تکليف دی نيم درهم به ده ته ورکړو او دا نيم به مونږ اِستعمال کړو نو د دوارو کار به روان شي .

بي بي راته وويل : دا خو عجيبه خبره ده ، کله چې ته يو عام دوست ته ورغلی نو هغه د تاسره دومره عظيمه همدردي وکړه چې دولس سوه درهم يې درکړه ، نو ته اوس دده سره څنګه دا نيموی ؟ بلکه بهترين اِخلاص دادی چې ته ده ته دا غونډه تيلۍ يعنی ټول درهم ورکړې ، خير ، مونږ به صبر وکړو خو ته ده ته دا ټول درهم ورکړه . امام واقدي رحمه الله وايي چې ما دې هاشمي ملګري ته دا تيلۍ هماغه شان روغه ورکړه چې لا تر أوسه مې کلاؤ کړې هم نه وه .

کله چې دا هاشمي ملګرې خپل کور ته لاړ ، نو دې طرف ته زما دې تاجِر ملګري سره هم نور هيڅ شی نه ؤ ، بلکه صرف همدا دولس سوه درهم ورسره وو او هغه يې هم ماته راکړي وو ، نو دې تاجِر ملګري سوچ وکړو چې اختر راروان دی زه به ددې هاشمي دوست نه يو څو درهمه قرض واخلم چې دا اختر ورباندې تير کړو . کله چې دې د هاشمي دوست کورته ورغی ، او د هغه نه يې څه قرض درهم اوغوښت نو هغه ورته هماغه د درهمو تيلۍ راأوويسته کومه يې چې ما نه وړې وه ، (چونکه ماته خو دا تيلۍ دې تاجر دوست راکړې وه) نو کله چې دې تاجر دوست خپله تيلۍ د هغه سره وليده نو ډير حيران شو ، واپس راغی او د مانه يې پوښتنه وکړه ، ما ورته ټوله قصه وکړه (چې کله ما د تا نه دا درهم راوړه نو ماته دا هاشمي ملګرې راغی نو ما هغه ته دا درهم ورکړه) ، په دې سره خبره راښکاره شوه ، چې هر يو کس بل ته په خپل ځان باندې ترجيح ورکړه .

کله چې د دې د اِخلاص نه ډکې واقعې خبر وزیر خالد ته ورسیده نو هغه لس زره دیناره راوړه، او امام واقدي ته يې وویل: په دې کې دوه زره دیناره ستا شو، دوه زره ستا د تاجر دوست شو، دوه زره ستا د هاشمي دوست شو، او څلور زره دیناره ستا د بي بي شو، ځکه هغه په ټولو کې زیاته قابلِ قدر او د عزت لائقه ده، ځکه هغې باوجود د سختئ نه واقدي ته ویلي وو چې ټول درهم هاشمي دوست ته ورکړه، مونږ به گزاره وکړو. (۱)

## ۵. د یو غلام ایثار

ابن قدامه رحمه الله وايي چې عبدالله بن جعفر د خپلې زمکې د لیدلو د پاره ووت، په لاره کې يې د یو قوم په باغ باندې تیریدل اوشو، دې په دې باغ کې د دَمې د پاره کیناست، په باغ کې یو حبشي غلام وُ، کار يې کولو، په دې وخت کې دې غلام ته خپل روزمره خوراک راغی، کله چې غلام روټئ ته کیناست نو ناڅاپه دې باغ ته یو سپې راننوت، او د غلام مخامخ کیناست، غلام دې سپي ته یوه روټئ وَرواچوله، سپي هغه اُوخوړه، بیا يې دویمه ورواچوله او بیا يې دریمه ورواچوله، تر دې چې ټوله روټئ ختمه شوه، سپي درې واړه روټئ اُوخوړې او لاړ.

عبدالله بن جعفر دې غلام ته کتنه، پوښتنه يې ورنه وکړه: تا ته په غونډه ورځ کې څومره خوراک راځي؟ هغه ورته وویل: داتا چې کومه روټئ ولیده دا زما د ټولې ورځې خوراک وُ، ده ورته په حیرانتیا سره وویل: نو بیا خو تا ټوله سپي ته واچوله، دا ولې؟ هغه ورته وویل: خبره داده چې په دې علاقه کې سپي نشته، دا سپې چیرته د لرې علاقې نه د وکړې د وجې د خوراک پسې راغلی وُ، نو زه دا نه خوښوم چې زه دې موړ یم او دا سپې دې وږې وي، نو ځکه مې ټوله روټئ دې سپي ته واچوله.

عبدالله بن جعفر ورنه پوښتنه وکړه: ته به نن څه اُوخورې؟ د تاسره خو نور هیڅ شی نشته. هغه ورته وویل: ولږه به برداشت کړم.

عبدالله بن جعفر (د ځان سره) وویل: خلق ما د ډیر سخاوت په وجه ملامته کوي خو دا حبشي غلام د ما نه هم ډیر سخي دی. ده ته د دې غلام دا ایثار او همدردي دومره خوښه

(۱) تاريخ بغداد ج۳ ص ۲، کتابونو کي درسګاه ص ۸۵، وهكذا في نزهة الناظرين في الاخبار والآثار المروية عن الانبياء والصالحين ص ٥٠٥ الباب الثالث في مدح الايثار.

شوه چې دې لاړو ، د غلام د مالک نه يې دا باغ او دا غلام دواړه واخيست ، غلام يې آزاد کړو ، او دا باغ يې هم ده ته هبه کړو .

(غلام دده شکريه اداء کړه ، دُعاګانې يې ورته وکړې ، او هغه هم دا باغ صدقه کړو ، او دده ځای نه لاړو ) . (۱)

## ٦ . د فقيرانو د يو جَماعت ايثار

امام غزالي رحمه الله نقل کړي چې ابوالحسن انطاکي رحمه الله وايي چې ماته څه د پاسه ديرش (۳۰) فقيران راجمع شو ، کوم چې د "ريّ" علاقې سره نزدې په يو کلي کې وو ، د دوی سره دومره ډوډۍ نه وې چې ټولو په مړه خېټه خوړلې وی ، نو دوی خپلې ټولې روټۍ راجمع کړې ، ماتې ماتې يې کړې ، په دسترخوان يې خوَرې کړې ، ټول په دسترخوان د خوراک دپاره کيناسته ، او ډيوه يې مړه کړه .

کله چې د دسترخوان نه پاڅيده نو وې کته چې ډوډۍ هماغه شان په دسترخوان باندې پرتې وې ، هيڅا هم ورنه هيڅ نه وو خوړلي ، ځکه په دوی کې هر کس بل ته په خپل ځان باندې ترجيح ورکوله ، او دا يې غوښته چې زما په ځای يې دا بل ملګرې اوخوري . (۲)

---

(۱) قَالَ ابْنُ قُدَامَةَ رَحِمَهُ اللهُ : خَرَجَ عَبْدُاللهِ بْنُ جَعْفَرٍ إِلَى ضَيْعَةٍ لَهُ . فَنَزَلَ عَلَى نَخْلٍ لِقَوْمٍ فِيْهَا غَلَامٌ أَسْوَدُ يَعْمَلُ فِيْهَا . إِذْ أَتَى الْغُلَامُ بِقُوْتِهِ . فَدَخَلَ الْحَائِطَ كَلْبٌ . وَدَنَا مِنَ الْغُلَامِ . فَرَمٰى إِلَيْهِ قُرْصًا فَأَكَلَهُ . ثُمَّ رَمٰى إِلَيْهِ قُرْصًا آخر فَأَكَلَهُ . ثُمَّ رَمٰى إِلَيْهِ ثَالِثًا فَأَكَلَهُ . وَعَبْدُاللهِ يَنْظُرُ إِلَيْهِ . فَقَالَ : يَا غُلَامُ ! كَمْ قُوْتُكَ كُلَّ يَوْمٍ ؟ قَالَ : مَا رَأَيْتَ . قَالَ : فَلِمَ آثَرْتَ بِهِ هٰذَا الْكَلْبَ ؟ قَالَ : إِنَّ أَرْضَنَا مَا هِيَ بِأَرْضِ كِلَابٍ . وَأَظُنُّ أَنَّ هٰذَا الْكَلْبَ قَدْ جَاءَ مِنْ مَسَافَةٍ بَعِيْدَةٍ جَائِعًا فَكَرِهْتُ رَدَّهُ (وَأَنْ أَشْبَعَ وهو جائعٌ ) . قَالَ : فَمَا أَنْتَ صَانِعٌ الْيَوْمَ ؟ قَالَ : أَطْوِيْ يَوْمِيْ هٰذَا . فَقَالَ : عَبْدُاللهِ بْنُ جَعْفَرٍ : أُلَامُ عَلَى السَّخَاءِ وَإِنَّ هٰذَا الْغُلَامَ لَأَسْخٰى مِنِّيْ . فَاشْتَرَى الْحَائِطَ وَالْغُلَامَ وَمَا فِيْهِ مِنَ الْآلَاتِ . فَأَعْتَقَ الْغُلَامَ وَوَهَبَهُ لَهُ . المنتقى من مكارم الاخلاق للخرائطي ص ۳۰٦ ، نضرة النعيم ج٦ ص ۲۲۵۷ السخاء . احياء العلوم ج۳ ص ۳۴۵ كتاب ذم البخل و ذم حب المال .

(۲) وَعَنْ أَبِي الْحَسَنِ الْأَنطاكي : أَنَّهُ إِجْتَمَعَ عِنْدَهُ نَيِّفٌ وَثَلَاثُوْنَ نَفْسًا — وَكَانُوْا فِيْ قَرْيَةٍ بِقُرْبِ الرَّيِّ — وَلَهُمْ أَرْغِفَةٌ مَعْدُوْدَةٌ لَمْ تُشْبِعْ جَمِيْعَهُمْ . فَكَسَرُوا الرُّغْفَانَ وَأَطْفَأُوا السِّرَاجَ وَجَلَسُوْا لِلطَّعَامِ . فَلَمَّا رفع فَإِذَا الطَّعَامُ بِحَالِهِ وَلَمْ يَأْكُلْ أَحَدٌ مِنْهُ شَيْئًا . إِيْثَارًا لِصَاحِبِهِ عَلَى نَفْسِهِ . احياء العلوم ج۳ ص ۳۴۵ كتاب ذم البخل و ذم حب المال . وهكذا في نضرة النعيم ج٦ ص ۲۲۵۷ السخاء .

## ۷ . د بشر بن الحارث په مُستعار لباس کې وفات کيدل

د بشر بن الحارث په باره کې راځي چې دی د مرض الموت په حالت کې ؤ ، يو فقير ورته راغی ، خپل حاجت يې ورته بيان کړو ، دده سره بل هيڅ شی نه ؤ نو خپل قميص يې راوويست ، دې فقير ته يې ورکړو ، او په خپله يې د بل چا نه قميص اُوغوښت ، هغه يې واغوست ، او په همدې مُستعار قميص کې وفات شو . (۱)

(۱) وَقَالَ عَبَّاسُ ابْنُ دهقانٍ : مَا خَرَجَ أَحَدٌ مِنَ الدُّنْيَا كَمَا دَخَلَهَا إِلَّا بِشْرُ بْنُ الحَارِثِ فَإِنَّهُ أَتَاهُ رَجُلٌ فِيْ مَرَضِهِ فَشَكَاهُ إِلَيْهِ الحَاجَةَ فَنَزَعَ قَمِيْصَهُ وَأَعْطَاهُ إِيَّاهُ . وَاسْتَعَارَ ثَوْبًا فَمَاتَ فِيْهِ . احياء العلوم ج۳ ص ۲۴۶ كتاب ذمّ البخل وذمّ حبّ المال .

# په سخاوت او صدقې ورکولو سره د انبياء کرامو او نيکانو خلقو تابعداري راځي

د صدقې او سخاوت يوه فايده دا هم ده چې په دې سره د انبياء کرامو او نيکانو خلقو تابعداري راځي، ځکه رسول الله صلى الله عليه وسلم چې څنګه اُمت ته د صدقې ورکولو ترغيب ورکړی نو دغه شان يې په خپله هم صدقه ورکوله، او د فقيرانو، مسکينانو او ضرورت مندو حاجتونه يې پوره کول.

دغه رنګې د صحابه کرامو حالت هم وُ چې په هره موقع د مالي امداد ضرورت پيدا شوی نو دوی په اخلاص سره هلته خپل مال لېږولی، او د پوره سخاوت نه يې کار اخيستی.

راځم چې د سردارِ دوجهان محمد رّسولُ الله صلى الله عليه وسلم او د هغه د صحابه کرامو څه نمونه په دې باب کې ستاسو د وړاندې ذکر کړم:

## د رسول الله ﷺ سخاوت او صدقه:

۱. د بخاري او مسلم شريف حديث دی، حضرت جابر رضى الله عنه فرمايي:

مَا سُئِلَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَيْئًا قَطُّ فَقَالَ: لَا. (۱)

د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه چې کله هم سوال شوی نو ده نه دی رَد کړی (او هيچا ته يې د نامراده کولو دپاره "لَا" نه ده ويلی).

۲. د بخاري شريف حديث دی، نبي عليه السلام فرمايي:

لَوْ كَانَ لِيْ مِثْلُ أُحُدٍ ذَهَبًا لَسَرَّنِيْ أَنْ لَا يَمُرَّ عَلَيَّ ثَلَاثُ لَيَالٍ وَعِنْدِيْ مِنْهُ شَيْءٌ إِلَّا شَيْءٌ أَرْصُدُهُ لِدَيْنٍ. (۲)

که چيرته د ما سره د اُحد غَر برابر سره زَر وی نو زما دا خوښه ده چې د درې (۳) شپو تيريدو نه مخکې مخکې زه دا ټول صدقه کړم، او د ما سره د دينه هيڅ شی باقي پاتې نه

---

(۱) البخاري، الفتح ۱۰ (۶۰۳۴)، ومسلم (۲۳۱۱) واللفظ له، احمد (۳/۳۰۷)، نضرة النّعيم ج۴ ص۱۵۰۸ الجود.

شي، البته دومره مال راسره پاتې شي چې زه هغه د قرض اداء کولو د پاره کيږدم (يعنى چې په هغې قرض اداء کړم).

**فايده**: په دې حديث کې رسول الله ﷺ وفرمايل: که د ما سره د اُحد د غره په مقدار سره زَر وي نو زما دا خوښه ده چې په درې (۳) ورځو کې دننه دا ټول صدقه کړم، او هيڅ شی د ځان سره پرې نه ږدم، البته دومره د ځان سره پريږدم چې خپل قرض پرې خلاص کړم، ځکه قرض اداء کول د صدقې نه مخکې دي.

۳. د مسلم شريف حديث دی، حضرت انس رضی الله عنه فرمايي:

مَا سُئِلَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى الْإِسْلَامِ شَيْئًا إِلَّا أَعْطَاهُ، وَلَقَدْ جَاءَهُ رَجُلٌ، فَأَعْطَاهُ غَنَمًا بَيْنَ جَبَلَيْنِ. فَرَجَعَ إِلَى قَوْمِهِ. فَقَالَ: يَاقَوْمِ! أَسْلِمُوْا فَإِنَّ مُحَمَّدًا يُعْطِيْ عَطَاءً مَنْ لَا يَخْشَى الْفَقْرَ. (۱)

د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه چې کله هم د اسلام په نوم (يعنى په اِسلام کې د داخليدو او په دې باندې د مضبوط پاتې کيدو په نوم) څه سوال شوی نو هغه سائِل ته به يې ورکړه کوله، يو کس ورته راغلو نو نبي عليه السلام ورته د دوه غرونو په مينځ کې ګډې ورکړې (يعنى دومره ګډې او چيلۍ يې ورکړې چې د دوه غرونو په مينځ کې وادي يې ډکوله)، کله چې دا کس خپل قوم ته واپس لاړ نو هغوی ته يې وويل: اې زما قومه! اِسلام راوړئ، ځکه محمد صلى الله عليه وسلم دومره ورکړه کوي چې د غريبۍ نه نه ويريږي.

په يو روايت کې دا هم دي چې بعضې وخت به يو سړي د نبي عليه السلام په خدمت کې صرف د دُنيا حاصلولو د پاره راغی ليکن (د رسول الله ﷺ د صُحبت او ښه تربيت په وجه به) د ماښام نه مخکې مخکې به دده په زړه کې ايمان داسې مضبوط شوې وُ چې د حضور صلى الله عليه وسلم دين به دده په نظر کې د دُنيا او د دُنيا د ټولو شيانو نه ډير محبوب او خوږ وُ. (۲)

(۱) رواه مسلم، رياض الصالحين باب الكرم والجود والانفاق في وجوه الخير ... حديث ۵۵۰.

(۲) اخرجه احمد.

**۴. يو صحابي ته څادر ورکول** : د بخاري شريف حديث دى چې يوې زَنانه رسول الله صلى الله عليه وسلم ته ګل کړې بهترين څادر راوړو ، او ورته وې ويل : اې د الله ﷻ رسوله ﷺ ! ما دا څادر په خپلو لاسونو جوړ کړى چې تاسو ته يې درکړم ( او تاسو يې استعمال کړئ ) نبي عليه السلام دا څادر قبول کړو ځکه د پيغمبر عليه السلام ورته ضرورت هم وُ ، صحابه کرام فرمايي چې نبي عليه السلام مونږ ته راووت ، او ددې څادر نه يې اِزار ( لنګ ) وهلې وُ ، په صحابه کرامو کې يو کس ورته وويل : اې د الله رسوله ! دا څومره بهترين څادر دى دا ماته راکړئ ، نبي عليه السلام ورته وفرمايل : ډيره ښه ده . رسول الله صلى الله عليه وسلم په مجلس کې څه وخت ناست وُ بيا يې دننه تشريف وې وړو ، بل لنګ يې واچول ، دا څادر يې راټول کړو او دې صحابي ته يې راوليږل . نورو صحابه کرامو دې صحابي ته وويل : تا دا ښه کار اونه کړو ، ځکه د نبي عليه السلام دې څادر ته ضرورت وُ ، هغه اغوستې وُ ، او تا ورنه اُوغوښت ، حالانکه تاته معلومه ده چې رسول الله ﷺ سوال کوونکې تَش نه واپس کوي .

هغه ورته وويل : زما دې په الله ﷻ قسَم وي چې ما دا څادر ورنه ددې دپاره نه دې غوښتى چې ګني زه يې واغوندم ، بلکه دا مې ورنه ددې د پاره اوغوښت چې کله زه وفات شم نو دا به زما کفن شي . حضرت سهل ﷺ فرمايي چې يقيني کله دا صحابي وفات شو نو په همدغه څادر کې کفن ورکړې شو . (۱)

(۱) عَنْ أَبِي حَازِمٍ قَالَ : سَمِعْتُ سَهْلَ ابْنَ سَعْدٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ . قَالَ : جَاءَتِ امْرَأَةٌ بِبُرْدَةٍ ، ـــ قَالَ : أَتَدْرُونَ مَا الْبُرْدَةُ ؟ فَقِيلَ لَهُ : نَعَمْ هِيَ الشَّمْلَةُ مَنْسُوجٌ فِي حَاشِيَتِهَا ـــ قَالَتْ : يَارَسُولَ اللهِ ! إِنِّي نَسَجْتُ هَذِهِ بِيَدِي أَكْسُوكَهَا . فَأَخَذَهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُحْتَاجًا إِلَيْهَا . فَخَرَجَ إِلَيْنَا وَإِنَّهَا إِزَارُهُ . فَقَالَ رَجُلٌ مِنَ الْقَوْمِ : يَارَسُولَ اللهِ ! أَكْسُنِيهَا . فَقَالَ : نَعَمْ . فَجَلَسَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْمَجْلِسِ . ثُمَّ رَجَعَ . فَطَوَاهَا ثُمَّ أَرْسَلَ بِهَا إِلَيْهِ . فَقَالَ لَهُ الْقَوْمُ : مَا أَحْسَنْتَ ، سَأَلْتَهَا إِيَّاهُ . لَقَدْ عَلِمْتَ أَنَّهُ لَا يَرُدُّ سَائِلًا . فَقَالَ الرَّجُلُ : وَاللهِ مَا سَأَلْتُهُ إِلَّا لِتَكُونَ كَفَنِي يَوْمَ أَمُوتُ . قَالَ سَهْلٌ : فَكَانَتْ كَفَنَهُ . بخاري جز ۳ ص ۶۱ حديث ۲۰۹۳ ، وجز ۲ ص ۷۸ حديث ۱۲۷۷ ، وجز ۸ ص ۱۴ حديث ۶۰۳۶ ، وجز ۷ ص ۱۳۶ حديث ۵۸۱ .

۵ . په رواياتو کې راځي : چې يو کرت رسول الله صلى الله عليه وسلم ته نوي زره (۹۰۰۰۰) درهم راوړې شو ، په پُوزکي (چټايي) باندې کيښودې شو ، رسول الله صلى الله عليه وسلم په فقيرانو باندې ددې تقسيمول شروع کړه ، هر سائل او محتاج ته يې ورکړه ، تر دې چې ټول يې په فقيرانو تقسيم کړه ، او ورنه فارغه شو . (۱)

۶ . **د سوال کوونکي د پاره قرض اخيستل** : حضرت عمر رضي الله عنه فرمايي چې يو کس د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه سوال وکړو ، دوی ورته وفرمايل :

په دې وخت کې خو د ما سره هيڅ شی نشته ، ليکن ته زما په ذمه داری باندې څه شی واخله ، کله چې ما سره وسعت او شو (يعنی ما له څه گوتو ته راشي) نو زه به يې اداء کړم .

ددې جواب په اَوريدو سره حضرت عمر رضي الله عنه وفرمايل :

اې د الله جل جلاله رسوله صلى الله عليه وسلم ! تاسو خو دې کس له موقع ورکړه ، حالانکه تاسو خو الله جل جلاله د قدرت نه زيات نه يی مکلف کړي .

د حضرت عمر رضي الله عنه دا خبره نبي عليه السلام ته خوښه نه شوه . بيا يو انصاري کس حاضر شو او عرض يې وکړو : اې د الله رسوله ! تاسو خرچ کوئ او د عرش د مالِک (الله جل جلاله) نه د کمي اَنديښنه مه کوئ . د اَنصاري د خبرې په اَوريدو نبي عليه السلام مُسکې شو او په مخ مبارک يې خوشحالي خوَره شوه ، او وې وفرمايل :

ماته د همدې حکم شوی . (۲)

۷ . **د اِيثار په وجه د نبي عليه السلام فضيلت** : امام غزالي رحمه الله ذکر کړي : حضرت سهل بن عبد الله تستري رحمه الله فرمايي چې حضرت موسى عليه السلام الله رب العزت ته عرض وکړو : اې الله ! ماته د محمد صلى الله عليه وسلم او دده د اُمت بعضې درجې اُوښايه . الله جل جلاله ورته وفرمايل :

---

(۱) ويروى أنه صلى الله عليه وسلم حملت إليه تسعون ألف درهم فوضعت على حصير . ثم قام إليها يقسمها فما رد سائلًا حتى فرغ منها ... نزهة الناظرين ص ۲۰۰ كتاب الصدقة .

(۲) مكارم الاخلاق ص ۲۵۴ .

ته به ددې درجو د مشاهدې قدرت اونه لرې، ليکن زه به درته د هغه دعظيمو مرتبو نه يوه عظيمه مرتبه اوښايم چې د هغې مرتبې په وجه ما دوی ته په تاسو او ټولو مخلوقاتو باندې فضيلت ورکړی.

نو د حضرت موسی عليه السلام د وړاندې د آسمانونو د ملکوت پَردې لرې کړې شوې، نو دوی د نبي عليه السلام د هغې مرتبې مشاهده وکړه کومه چې د دوی د الله ﷻ سره د قُرب او نزديکت وه. حضرت موسی عليه السلام عرض وکړو:

اې الله ﷻ! محمد صلی الله عليه وسلم دې عزت او مرتبې ته څنګه رسيدلی؟ الله ﷻ وفرمايل: د داسې يو صفت په وجه کوم چې ما ده سره خاص کړی او هغه اِيثار دی.

بيا الله ﷻ وفرمايل: که چيرته يو کس په ټول عُمر کې يو ځل هم اِيثار وکړي نو ماته حياء راځي چې زه د ده سره حساب و کتاب وکړم. بلکه جنت ته به يې داخلوم، چيرته چې دده خوښه وي په کې اوسيږي به. (۱)

۸. د بخاري شريف حديث دی، حضرت جُبير بن مُطعِم رضي الله عنه فرمايي: يوه ورځ زه د رسول الله صلی الله عليه وسلم سره روان ووم، او د دوی سره صحابه کرام وو چې د غزوه حُنين نه واپس راتله، نو د باندې څه کسان وربورې اُونختو او سوال يې ترې نه کولو، تر دې چې نبي عليه السلام يې د کِيکر اُونې سره په نزدې اُودريدو باندې مجبوره کړو، او څادر يې ورنه رانښکلو، پيغمبر عليه السلام اُودريد، او دوی ته يې ووېل:

أَعْطُوْنِيْ رِدَائِيْ، لَوْكَانَ لِيْ عَدَدَ هٰذِهِ الْعِضَاهِ نَعَمًا لَقَسَمْتُهُ بَيْنَكُمْ، ثُمَّ لَا تَجِدُوْنِيْ بَخِيْلًا وَلَا كَذُوْبًا وَلَا جَبَانًا.

---

(۱) قَالَ سهلُ بْنُ عبدالله التستري: قال موسی عليه السلام: يارَبِّ! أَرِنِيْ بَعْضَ درجاتِ محمدٍ صلی الله عليه وسلم وأُمَّتِه. فقال: ياموسی! إنک لن تُطيق ذلک. ولکنْ أُريک منزلة من منازله جليلة عظيمة فَضَّلْتُهُ بها عليک وعلی جميعِ خَلْقِيْ. قال: فکشف له عن ملکوت السموات. فَنَظَرَ إلی منزلة کادت تتلف نفسه من أنوارها وقربها من الله تعالی. فقال: يارَبِّ! بماذا بلغت به إلی هذه الکرامة؟ قال: بِخُلُقٍ اختصصته به من بينهم. وَهُوَ الْإِيْثَارُ. ياموسی! لَا يَأْتِيْنِيْ أحدٌ منهم قد عمل به وقتًا من عُمره إلَّا اِسْتَحْيَيْتُ مِنْ محَاسَبَتِهِ. وبوّأته من جنّتي حيثُ يَشَآءُ. احياء العلوم ج٣ ص ٢٢٥ کتاب ذم البخل و ذم حب المال.

ما له زما څادر راکړئ، که چيرته د ما سره ددې کيکر د اُونو په مقدار څاروي وي نو ما به په تاسو تقسيم کړي وی، او تاسو به زه بخيل، دروغجن او بُزدِله نه وی موندلی. (۱)

## د صحابه کرامو سخاوت:

د سخاوت صفت په صحابه کرامو کې هم په کامله طريقه موجود ؤ، دغه وجه ده چې په کومه موقع به د مالي اِمداد ضرورت راغی نو هلته به صحابه کرامو د پوره اِخلاص او سخاوت نه کار اخيستو، او خپل مال به يې هلته خرچ کولو. ددې يو څو نمونې ستاسو د وړاندې ذکر کوم:

### ۱. د وفات په وخت په حضرت علي ﷺ باندې د سخاوت په وجه قرضه

ابو جعفر وايي: اګر چې د حضرت علي ﷺ د وفات په وخت د دوی سالانه آمدن يو لک (۱۰۰۰۰۰) درهم ته رسيدلې ؤ خو ليکن د دوی د شهادت په ورځ په ده باندې اويا زره (۷۰۰۰۰) درهمه قرضه وه. ما د خلقو نه پوښتنه وکړه چې آخر په ده باندې دومره ډيره قرضه د څه شي په وجه راغلې وه؟ هغوی راته وويل:

د دوی هغه دوستان او خپلوان چې د هغوی په غنيمت کې باقاعده حصه مقرر نه وه نو هغوی به ده له راتله، د ده نه به يې سوال کولو، نو ده به هغوی ته ورکړه کوله. (نو ځکه ورباندې دومره ډير قرض جمع شوې ؤ).

د دوی د وفات نه روستو حضرت حسن رضي الله عنه دده جائيداد وغيره خرڅ کړه، او قرض يې پرې خلاص کړو، او هر کال به يې د حضرت علي ﷺ د طرفه سل (۱۰۰) غلامان آزادول.

---

(۱) عَنْ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ ﷺ قَالَ: بَيْنَمَا أَسِيرُ مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَعَهُ النَّاسُ مَقْفَلَهُ مِنْ حُنَيْنٍ. فَعَلِقَتِ النَّاسُ يَسْأَلُونَهُ حَتَّى اضْطَرُّوهُ إِلَى سَمُرَةٍ. فَخَطِفَتْ رِدَاءَهُ. فَوَقَفَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: أَعْطُونِي رِدَائِي. لَوْ كَانَ لِي عَدَدَ هَذِهِ الْعِضَاهِ نَعَمًا لَقَسَمْتُهُ بَيْنَكُمْ. ثُمَّ لَا تَجِدُونِي بَخِيلًا وَلَا كَذُوبًا وَلَا جَبَانًا. بخاري ج۲ ص ۲۲ حديث ۲۸۲۱ باب الشجاعة في الحرب والجبن. نضرة النعيم ج ۸ ص ۳۲۳۲ الكرم، رياض الصالحين باب الكرم والجود (۵۲۲).

د حضرت حسن ﷺ د وفات نه روستو حضرت حسين ﷺ دغه سُنت ژوندي اُوساتل.

کله چې حضرت حسين ﷺ شهيد شو نو بيا روستو دغه سنت ژوندي پاتې نه شو. (۱)

## ۲ . د حضرت عُبيده بن جراح ﷺ او حضرت معاذ بن جبل ﷺ سخاوت

علامه مُنذري رحمه الله په "الترغيب والترهيب" کې نقل کړي چې: حضرت عمر ﷺ څلور سوه ديناره په تيلۍ کې واچول، او غلام له يې ورکړه چې دا حضرت عُبيده بن جراح ﷺ له ويسه، کله چې يې هغه ته ورکړې نو بيا (د يو څه کار په بَهانه) په هغه کور کې څه لږ وخت حصار شه، ځان په څه کار مشغول کړه، او ګوره چې هغه دې دينارو سره څه کوي؟

غلام چې دا تيلۍ وې وړه، هغه ته يې ورکړه، او ورته وې ويل: اميرالمؤمنين وايي چې دا دينار په خپل ضرورت کې خرچ کړه.

حضرت عبيده بن جراح ﷺ وفرمايل: الله ﷻ دې په اميرالمؤمنين رحم وکړي او د خپل رحمت سره دې ملاؤ کړي. بيا يې خپله وينځه را اُوغوښته او ورته وې ويل: دا اووه (۷) ديناره فلانکي له ورکړه، دا پنځه (۵) فلانکي له، او دا پنځه فلانکي له ورکړه. تر دې چې ټول دينار يې ختم کړه. غلام حضرت عمر ﷺ ته واپس راغی، او د ټولې واقعې خبر يې ورکړو.

حضرت عمر ﷺ همدغسې تيلۍ د حضرت معاذ بن جبل ﷺ د پاره هم تياره کړې وه، غلام ته يې وويل: دا حضرت معاذ بن جبل ﷺ له ويسه، دهغه سره (په څه بهانه) لږ حصار شه، او ګوره چې هغه په دې دينارو باندې څه کوي؟ کله چې غلام هغه ته د دينارو دا تيلۍ ورکړه او ورته وې ويل: اميرالمؤمنين حضرت عمر ﷺ تاسو ته دا تيلۍ رالېږلې ده، او هغه وايي چې تاسو دا په خپل ضرورت کې خرچ کړئ. هغه وويل: الله ﷻ دې په اميرالمؤمنين رحم وکړي او د خپل رحمت سره دې ملاؤ کړي.

---

(۱) مکارم الاخلاق ص ۲۷۰.

بيا يې خپله وينځه راوغوښته ، او ورته وې ويل : دومره ديناره فلانکي کره ويسه ، ومره فلانکي کره ويسه ، او دومره د فلانکي کره ويسه. په دې کې د حضرت معاذ بن جبل ﷺ بي بي راغله ، او وې ويل : قسم په الله ﷻ مونږ خو په خپله هم مسکينان يو ، مونږ ته هم څه راکړه . په تيلۍ کې د دوه (۲) دينارو نه علاوه نور څه نه وو پاتې هغه يې دې ته وَرواچول (چې دا واخله) .

غلام حضرت عمر ﷺ ته راغی ، او ټوله واقعه يې ورته بيان کړه ، حضرت عمر ﷺ چې دا واوريده نو ډير خوشحاله شو او وې ويل : إِنَّهُمْ إِخْوَةٌ بَعْضُهُمْ مِنْ بَعْضٍ . (۱)

بيشکه دا صحابه ( حضرت ابوعبيده بن جراح ﷺ، حضرت معاذ بن جبل ﷺ او نور صحابه ) په خپل مينځ کې وروڼه دي ، د ټولو صفات يو شان دي . يعنې په ټولو کې سخاوت او ايثار شته دی .

## ۳. د حضرت جابر ﷺ سخاوت

حضرت جابر رضي الله عنه په مالدارو صحابه کرامو کې ؤ ، د ده بي بي وايي چې يوه ورځ دوی کور ته تشريف راوړو نو غمجن او خفه معلوميده ، ما ورنه پوښتنه وکړه چې څنګه نن خفه معلوميږې ؟ ده راته وويل :

---

(۱) وَعَنْ مَالِكِ الدَّارِ أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَخَذَ أَرْبَعَ مِائَةِ دِينَارٍ فَجَعَلَهَا فِي صُرَّةٍ. فَقَالَ لِلْغُلَامِ : إِذْهَبْ بِهَا إِلَى عُبَيْدَةَ بْنِ الْجَرَّاحِ ، ثُمَّ تَلَهَّ فِي الْبَيْتِ سَاعَةً حَتَّى تَنْظُرَ مَا يَصْنَعُ . فَذَهَبَ بِهَا الْغُلَامُ إِلَيْهِ . فَقَالَ : يَقُولُ لَكَ أَمِيرُ الْمُؤْمِنِينَ : إِجْعَلْ هٰذِهِ فِي بَعْضِ حَاجَتِكَ . فَقَالَ : وَصَلَهُ اللهُ وَرَحِمَهُ . ثُمَّ قَالَ : تَعَالَيْ يَا جَارِيَةُ ! إِذْهَبِي بِهٰذِهِ السَّبْعَةِ إِلَى فُلَانٍ ، وَبِهٰذِهِ الْخَمْسَةِ إِلَى فُلَانٍ ، وَبِهٰذِهِ الْخَمْسَةِ إِلَى فُلَانٍ حَتَّى أَنْفَذَهَا . وَرَجَعَ الْغُلَامُ إِلَى عُمَرَ . فَأَخْبَرَهُ . فَوَجَدَهُ قَدْ أَعَدَّ مِثْلَهَا لِمُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ . فَقَالَ : إِذْهَبْ بِهَا إِلَى مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ . وَتَلَهَّ فِي الْبَيْتِ حَتَّى تَنْظُرَ مَا يَصْنَعُ . فَذَهَبَ بِهَا إِلَيْهِ . فَقَالَ : يَقُولُ لَكَ أَمِيرُ الْمُؤْمِنِينَ : اِجْعَلْ هٰذِهِ فِي بَعْضِ حَاجَتِكَ . فَقَالَ : رَحِمَهُ اللهُ وَوَصَلَهُ . تَعَالَيْ يَا جَارِيَةُ ! إِذْهَبِي إِلَى بَيْتِ فُلَانٍ بِكَذَا . إِذْهَبِي إِلَى بَيْتِ فُلَانٍ بِكَذَا . إِذْهَبِي إِلَى بَيْتِ فُلَانٍ بِكَذَا . فَاطَّلَعَتِ امْرَأَةُ مُعَاذٍ وَقَالَتْ : نَحْنُ وَاللهِ مَسَاكِينُ فَأَعْطِنَا . فَلَمْ يَبْقَ فِي الْخِرْقَةِ إِلَّا دِينَارَانِ . فَدَحَا بِهِمَا إِلَيْهَا . وَرَجَعَ الْغُلَامُ إِلَى عُمَرَ فَأَخْبَرَهُ فَسُرَّ بِذٰلِكَ . فَقَالَ : إِنَّهُمْ إِخْوَةٌ بَعْضُهُمْ مِنْ بَعْضٍ . . . ه الطبراني في الكبير ، الترغيب والترهيب جز ۲ ص ۲۸ الترغيب في الانفاق في وجوه الخير كرما ... (۱۶/ ۶۳۶) .

زما په خزانه کې مال و دولت ډیر جمع شوی چې د هغې په وجه مې په زړه باندې بوج دی، نو ځکه خفه یم.

دده بي بي هم صحابيه وه هغې ورته وویل: د خفګان هیڅ خبره نشته، بلکه دا ټول درهم په غریبانانو باندې تقسیم کړه. (نو دا بوج به درنه سپک شي).

ده هم خپل خزانچي رااوغوښت او حکم يې ورته وکړو، چې دا مال ودولت ټول په غریبانو، یتیمانو او کونډو باندې تقسیم کړه.

نو ټوله شپه د مدينې منورې په کوڅو کې دا روپۍ تقسیمولې شوی. کله چې سهر حساب ولګولې شو نو په ټوله شپه کې شپږلکه (٦٠٠٠٠٠) روپۍ تقسیم شوې وی.

سهر چې کله حضرت جابر ﷺ کورته راغی نو ډير زيات خوشحاله او تروتازه ؤ، د بي بي شکریه یې اداء کړه، او ورته وې ویل: تا خو ماته ډیر بهترین تدبیر اُوخود چې په هغې سره زما د زړه بوج سپک شو. (۱)

## ٤. د حضرت زبير بن عوام ﷺ سخاوت

د حضرت زبير بن عوام ﷺ په باره کې نقل دي چې دده زر (۱۰۰۰) غلامان وو، چې ده له به يې مال ګټلو، ماښام به چې دې ټولو غلامانو څومره مال ګټلې ؤ هغه به يې حضرت زبير بن عوام ﷺ ته ورکړو نو ده به دا ټول مال و دولت په هماغه شپه باندې په فقیرانو تقسیم کړو، یو درهم به يې هم کورته نه وړو. په هره ورځ دده دا معمول ؤ. (۲)

## ۵. د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما سخاوت

۱. امام غزالي رحمه الله ذکر کړي: کله چې حضرت ابن عباس رضي الله عنهما د بصرې حاکم ؤ نو ده ته د بصرې څه قاريان راجمع شو او ورته وې ویل: زمونږ په ګاونډ کې يو عابد او سیړي چې ډیرې نفلي روژې نیسي، او ټوله شپه د الله ﷻ عبادت کوي، مونږ چې دده دې عبادت ته اوګورو نو په مونږ کې هر یو کس دا تمنّی کوي چې مونږ هم دده په شان

(۱) خطبات طيب.

(۲) اخرجه ابونعيم في الحلية، والبيهقي.

عبادت گزار شو . هغه د خپلې لور نکاح د خپل ورارہ سره کړې ده خو د غُربت د وجې ورسره اوس دومره څه نشته چې خپلې لور له پرې جهيز ( د وَاده ضروري اَسباب ) برابر کړي .

حضرت عبدالله بن عباس ﷺ چې دا واوريده نو دوی يې د لاس نه اونيوه ، خپل کور ته يې بوتله ، يو صندوق يې کلاؤ کړو ، د هغې څه يې ( د درهمو او اَشرفو ) شپږ تيلۍ راوويستې ، او دوی ته يې ووېل : دا واخلئ او هغه عابد ته يې ورکړئ .

بيا حضرت ابن عباس ﷺ دوی ته ووېل : مونږ ددې عابد سره انصاف اونه کړو ، ځکه کهدا مال تاسو هغه ته ورکړی نو هغه به د جهيز په اخيستلو مشغوله شي چې ددې په وجه به ورنه لمونځ ، روژې او عبادت پاتې شي ، راځئ چې مونږ ورله دا اَسباب په خپله برابر کړو ، ځکه ددې دُنيا دومره حيثيت نه دی چې ددې په وجه د يو مومن نه عبادت پاتې شي .

بل دا چې په مونږ کې خو هم څه تکبّر نشته چې گنې مونږ د اولياءُ الله خدمت نه کوو . راځئ چې ټول ورشو ، د وَاده ضروري اَسباب به ورله مونږ په خپله واخلو ، او هغه ته به يې حواله کړو چې هغه پرې د عبادت نه هم اونه ووځي .

نو دوی ټول روان شو ، د واده اَسباب يې ورله واخيست ، او هغه ته يې حواله کړو . (۱)

۲ . حضرت ابوايوب انصاري ﷺ چې کله بصرې ته تشريف راوړو نو د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما ميلمه شو ، ده ورته خپل کور خالي کړو او ورته وې وېل :

څنگه معامله چې تاسو د هجرت په موقع د نبي عليه السلام سره کړې وه نن به زه هم هماغه شان معامله د تاسو سره وکړم ، (نو ابن عباس ﷺ ورته خپل ټول کور خالي کړو ) ، بيا يې ورنه پوښتنه وکړه چې په تاسو باندې څومره قرضه ده ؟

(۱) وَاجْتَمَعَ قُرَّاءُ الْبَصْرَةِ إِلَى ابنِ عبّاسٍ رضي الله عنهما وهو عَامِلٌ بِالْبَصْرَةِ . فَقَالُوْا : لَنَا جَارٌ صوّامٌ قوّامٌ يَتَمَنّى كلُّ واحدٍ مِنّا أَنْ يَكُوْنَ مِثْلَه . وَقَدْ زَوَّجَ إِبنَتَه من ابن أخيه وهو فقيرٌ وليس عنده ما يجهزها به . فقام عبدُاللهِ بْنُ عبّاسٍ فَأَخَذَ بأيديهم وأدخلها داره . وفَتَحَ صُنْدُوْقًا فَأَخْرَجَ منه سِتّ بدرٍ . فقال : إِحْمَلُوْا . فَحَمَلُوْا . فقالَ ابنُ عبّاسٍ : مَا أَنْصَفْنَاهُ أعطيناهُ مَا يشغلهُ عن قِيَامِهِ وَصِيَامِهِ . إِرْجِعُوْا بِنَا نَكُنْ أَعْوَانَهُ عَلَى تَجْهِيْزِهَا فَلَيْسَ لِلدُّنْيَا مِنَ الْقَدْرِ مَا يشغلُ مُؤْمِنًا عَنْ عِبَادَةِ رَبِّه . وَمَا بِنَا مِنَ الْكِبْرِ مَا لَا نَخْدِمُ أَوْلِيَاءَ اللهِ تَعَالَى . فَفَعَلَ وَفَعَلُوْا . احياء العلوم ج۳ ص ۲۳۲ كتاب ذم البخل وذم حب المال حكايات الاسخياء .

ابو ايوب انصاري ﷺ ورته وفرمايل : شل زره ( ۲۰۰۰۰ ) . نو ده ورله څلويښته زره ( ۴۰۰۰۰ ) ورکړی ، او ورسره يې شل ( ۲۰ ) غلامان هم ورکړه ، او دا يې ورته هم وويل : چې په دې کور کې څه اَسباب دی هغه هم ټول ستا شو . (۱)

## ٦ . د حضرت حسن ، حضرت حُسين او حضرت عبدالله بن جعفر رضي الله عنهم سخاوت :

ابوالحسن مدائني رحمه الله وايي چې حضرت حسن ﷺ حضرت حُسين ﷺ او حضرت عبدالله بن جعفر ﷺ د حج کولو د پاره په سفر روان شو ، په لاره کې ورنه د سامان واله اُوښ جدا شو ، نو اُولږه او تَنده ورته ولږيده ، په يوه خيمه باندې د دوی تيريدل او شو چې په هغې کې يوه بوډۍ ځانله ناسته وه ، دوی ورته وويل : د څکلو د پاره درسره څه شته ؟ هغې ورته ورته وويل : آو ، شته دی . نو دوی د خپلو سوَرلو نه راښکته شو ، د هغې سره په خيمه کې صرف يوه کمزورې چيلۍ وه ، بوډۍ هغې ته اِشاره وکړه چې دا ځانله راولَوشئ ، او شُوده يې لږ لږ اُوڅکئ ، دوی ددې چيلۍ نه شوده را اُولوَشل او وې څکل . دوی بيا د بوډۍ نه پوښتنه وکړه : د خوراک درسره څه شته ؟ ( چې مونږ يې اوخورو ) ، هغې ورته وويل : نور خو څه نشته خو صرف همدغه چيلۍ ده ، که په تاسو کې څوک دا حلاله ( ذبح ) کړي نو زه به يې درله پخه کړم .

نو په دوی کې يو کس دا چيلۍ حلاله کړه ، بوډۍ دا ورله پخه کړه ، دوی خوراک وکړو ، څه وخت آرام يې وکړو ، کله چې موسم ښه شو نو روان شو ، خو د تللو په وخت يې دې بوډۍ ته وويل : مونږ د قريشو څه کسان يو ، د حج په اِراده روان يو ، کله چې د حج نه روغ مدينې منورې ته راواپس شو نو ته بيا مونږ له راشه ، مونږ به د تاسره ښه سلوک وکړو ( او ددې اِحسان به ښه بَدله درکړو ) .

بيا دوی په سفر روان شو ، کله چې ماښام ددې بوډۍ خاوند راغی نو دې ورته د ميلمنو د راتلو او د چيلۍ د ذبح کيدو قصه وکړه ، نو خاوند يې غصه شو ، او ورته وې ويل : هلاکه

---

(۱) مکارم الاخلاق ص ۲۷۹ .

شی تا زما چیلۍ داسې خلقو ته حلاله کړی چې تا پیژندل هم نه (چې دا څوک وو ؟) او بیا وایی چې د قریشو څه کسان وو (اوس څه پته لږې چې دا څوک وو ؟).

څه موده پس په دې ښځه او خاوند باندې ډیر زیات غُربت راغی، د ډیر غربت د لاسه د مزدورۍ د پاره مدینې منورې ته دواړه لاړه، دوی به هلته د اُوښانو پچې وغیره راټولولی، هغه به یې خرڅولی او په هغې به یې گزاره کوله.

یوه ورځ دا بوډۍ د مدینې منورې په یوه کوڅه کې تیریدله، حضرت حَسن رضي الله عنه د خپل کور په دروازه کې ناست وُ، کله یې چې دا بوډۍ ولیده نو وې پیژنده، حالانکه دې بوډۍ حضرت حسن رضي الله عنه نه پیژنده. ده خپل غلام ورپسې ور ولیږل، کله چې هغه بوډۍ راغله، حضرت حسن رضي الله عنه ورته وفرمایل: اې د الله تعالیٰ بندې ! آیا تا زه اونه پیژندم؟ هغې ورته وویل: نه، (ما اُونه پیژندی)، ده ورته وویل: زه خو هغه کس یم چې په فلانۍ ورځ ستا میلمه وو م (ستا د چیلۍ شوده مو څکلي او ستا چیلۍ مو خوړلې وه)، بوډۍ ورته وویل: زما مور او پلار دې په تا قربان وي آیا ته هماغه کس یې؟ ده ورته وویل: آو (زه هماغه کس یم). بیا حضرت حسن رضي الله عنه حکم وکړو چې دې له زر (۱۰۰۰) چیلۍ په قیمت باندې واخلۍ (چې ورله وریې کړو)، نو زر (۱۰۰۰) چیلۍ یې ورله واخیستی، او ورسره یې زر (۱۰۰۰) دیناره نغد هم ورکړه.

بیا یې ددې بوډۍ سره خپل غلام ولیږل چې دا حضرت حُسین رضي الله عنه له ورولە، (هغه به هم ورسره څه اِمداد وکړي). کله چې بوډۍ هلته ورغله، نو حضرت حسین رضي الله عنه ورنه پوښتنه وکړه: زما وررور درسره څومره اِمداد وکړو؟ دې ورته وویل: زر چیلۍ او زر نقد دیناره یې راکړه، نو ده هم حکم وکړو چې زما د طرفه هم دې بوډۍ ته زر (۱۰۰۰) چیلۍ او زر نغد دیناره ورکړئ. بیا یې خپل غلام ورسره ولیږل چې دا بوډۍ حضرت عبدالله بن جعفر رضي الله عنه له بوځه (چې هغه هم ورسره څه اِحسان وکړي)، کله چې بوډۍ حضرت عبدالله بن جعفر رضي الله عنه له ورغله، هغه ورنه پوښتنه وکړه: حضرت حسن رضي الله عنه او حضرت حسین رضي الله عنه درسره

څومره امداد وکړو ؟ دې ورته وويل : دوارو راله دوه زره ( ۲۰۰۰ ) چيلۍ او دوه زره ( ۲۰۰۰ ) ديناره راکړه ، نو ده هم ورته دوه زره چيلۍ او دوه زره ديناره ورکړه او ورته وې ويل که چيرته ته ماته اول راغلې وى نو ما به درله دومره چيلۍ او ديناره درکړي وى چې هغوى به بيا د هغې په مقدار ورکړه باندې ستړي شوي وى ( يعنى ما به درله ډيرې زياتې چيلۍ او ديناره درکړي وى ) .

نو بوډۍ د ځان سره څلور زره ( ۴۰۰۰ ) چيلۍ او څلور زره ( ۴۰۰۰ ) نغد ديناره واخيست ، او خپل خاوند ته ورغله ( هغه ته يې وويل : دا د هغه کمزورې چيلۍ بدله ده چې ما په ميلمنو باندې خوړلې وه ) . (۱)

## ۷. د حضرت سعيد بن العاص ﷺ سخاوت

حضرت سعيد بن العاص ﷺ ته يو کس راغى او سوال يې ورنه وکړو ، ده ورله يو لک ( ۱۰۰۰۰۰ ) درهمه ورکړه ، نو هغه سائل وژړل ، ده ورنه پوښتنه وکړه : ولې دې اوژړل ؟ (آيا

---

(۱) وقال ابو الحسن المدائني : خرج الحسنُ والحسينُ وعبدُالله بنُ جعفرٍ رضي الله عنهم حجاجًا . فَفَاتَهُمْ أثقالهم . فجاعوا وعطشوا . فمرّوا بعجوزٍ في خباء لها . فقالوا : هَلْ مِنْ شَرَابٍ ؟ فقالتْ : نعم . فَأَنَاخُوا إليها وليس لها إلا شويهة في كسر الخيمة فقالت : احلبوها وامتذقوا لَبَنَهَا . فَفَعَلُوْا ذلك . ثمّ قالوا لها : هَلْ مِنْ طَعَامٍ ؟ قالتْ : لَا . إلّا هذه الشاة فَلْيَذْبَحْهَا أَحَدُكُمْ حتى أهيّء لكم ما تأكلونَ . فقام إليها أحدُهم وذَبَحَهَا وكشطها ثم هيأتْ لهم طعامًا فأكلوا وأقاموا حتى أبردوا . فلمّا ارْتَحَلُوْا قالوا لها : نَحْنُ نَفَرٌ مِنْ قُرَيْشٍ نُرِيْدُ هَذَا الوَجْهَ . فإذا رَجَعْنَا سالمينَ فألمِّي بِنَا فَإنّا صَانِعون بِكِ خَيْرًا . ثُمّ ارْتَحَلُوْا وأَقْبَلَ زوجُها فأخبرَتْهُ بِخَبَرِ القومِ والشَّاةِ . فَغَضِبَ الرّجلُ وقال : وَيْلَكِ تَذْبَحِيْنَ شَاتِيْ لِقَوْمٍ لاتعْرِفِيْنَهُمْ . ثمّ تَقُوْلِيْنَ : نَفَرٌ مِنْ قُرَيْشٍ ؟ قال : ثمّ بعدَ مدّةٍ ألجأتْهُمَا الحاجةُ إلى دخولِ المدينةِ . فدَخَلاها وجَعَلا ينقلان البعر إليها ويبيعانه ويتعيشان بثمنه . فمرّت العجوزُ بِبَعْضِ سِكَكِ المدينةِ . فإذا الحسنُ بنُ عليٍّ ﷺ جَالِسٌ على باب داره . فعرفَ العجوزَ وهي له منكرةٌ . فَبَعَثَ غلامَه فدَعَا بالعجوز وقال لها : يا أَمَةَ اللهِ ! أتَعْرِفِيْنِيْ ؟ قالتْ : لَا . قال : أنا ضيفُكِ يومَ كذا و يومَ كذا . فقالتِ العجوزُ : بِأَبِيْ أنْتَ و أمّي أنت هو ؟ قال : نعم . ثمّ أمَرَ الحسنُ فَاشتروا لها من شِيَاهِ الصّدقة ألف شاة . وأَمَرَ لها معها بِألفِ دينارٍ . وبَعَثَ بِها مع غلامه الى الحُسين . فقال لها الحسين : بِكَمْ وَصلكِ أخِيْ ؟ قالتْ : بألفِ شاةٍ وألفِ دينارٍ . فأمَرَ لها الحسينُ أيضاً بمثل ذلك . ثمّ بعث بها مع غلامه إلى عبدِالله بن جعفر فقال لها : بِكَمْ وصلكِ الحسن والحُسين ؟ قالتْ : بألفي شاة و ألفي دينار . فأمَرَ لها عبدُالله بألفي شاة وألفي دينارٍ . وقال لها : لَوْ بَدَأْتِ بِيْ لَأَتْعبتهُمَا . فرَجَعَتِ العجوزُ إلى زوجِها بأربعة آلاف شاةٍ وأربعة آلاف دينار . احياء العلوم ج ۳ ص ۳۳۳ كتاب ذم البخل وذم حب المال .

دا درهمه کم دي ؟ ) هغه ورته وويل : ( ددې د وجې مې نه دي ژړلي چې دا درهم کم دي بلکه ) ددې د وجې ژاړم چې زمکه به ستا غوندې ( کريمُ النّفس، سخي او بلند همته ) کس هم اُوخوري. حضرت سعيد بن العاص ﷺ چې دا خبره واوريده نو حکم يې وکړو چې ده ته يو لک درهمه نور ورکړئ. ( نو سوالګري ته يې په لږ وخت کې دوه لکه درهمه ورکړه )(۱)

## ۸. د حضرت سعيد بن زيد ﷺ سخاوت

حضرت سعيد بن زيد ﷺ ته يو کس راغی او د الله ﷻ په نوم يې ورنه سوال وکړو، نو هغه خپل غلام ته حکم وکړو چې ده ته پنځه سوه (۵۰۰) ورکړه. غلام ورنه پوښتنه وکړه: جناب! پنځه سوه درهم ورکړم او که پنځه سوه ديناره ؟ حضرت سعيد ﷺ ورته وويل: زما اِراده خو د درهمو د ورکولو وه خو کله چې تا د سائِل په مخکې د دينارو ذکر وکړو نو اوس پنځه سوه ديناره ورکړه.

ددې خبرې په اوريدو سره سائِل په ژړا شو، حضرت سعيد بن زيد ﷺ ورنه پوښتنه وکړه: ولې ژاړې ؟ هغه ورته وويل: اې زما سرداره! ما دا سوچ کولو چې ستا سو په شان کريمُ النّفس او سخي انسان سره به زمکه د خپل دننه څه عمل کوي ؟ (۲)

## ۹. د حضرت عبدالرحمن بن عوف ﷺ سخاوت

حضرت عبدالرحمن بن عوف ﷺ هغه صحابي دی چې رسول الله صلی الله عليه وسلم ورته د خَير او په مال کې د برکت دُعا کړې وه، دغه وجه وه چې دی په صحابه کرامو کې ډير مالدار وُ، او ده ه تجارتي کاروبار به ورځ په ورځ ترقي کوله.

خو ددې سره سره چې کله هم د مالي اِمداد ضرورت راغلی نو دوی په کې پوره اخلاص کړی. يو دوه (۲) نمونې ستاسو د وړاندې ذکر کوم:

---

(۱) وَقَامَ رَجُلٌ إِلَى سَعِيْدِ بْنِ الْعَاصِ ﷺ فَسَأَلَهُ فَأَمَرَ لَهُ بِمِائَةِ أَلْفِ دِرْهَمٍ فَبَكَى. فَقَالَ لَهُ سَعِيْدٌ: مَا يُبْكِيْكَ؟ قَالَ: أَبْكِيْ عَلَى الْأَرْضِ أَنْ تَأْكُلَ مِثْلَكَ. فَأَمَرَ لَهُ بِمِائَةِ أَلْفٍ أُخْرَى. احياء العلوم ج ۳ ص ۳۳۶ کتاب ذم البخل وذم حب المال.

(۲) الترغيب والترهيب لليافعي ص ۸۸.

۱ . حضرت زهري رحمه الله وايي چې حضرت عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه د نبي عليه السلام په زمانه کې خپل نيم مال څلور زره (۴۰۰۰) درهمه د الله ﷻ په لاره کې صدقه کړه، بيا يې څلويښت زره (۴۰۰۰۰) درهمه صدقه کړه، بيا يې څلويښت زره ديناره صدقه کړه، بيا يې پنځه سوه (۵۰۰) آسونه د الله ﷻ په لاره جهاد کې ورکړه، او بيا يې دوه نيم زره (۲۵۰۰) اُوښان د الله ﷻ په لاره کې ورکړه . ده زيات مال د تجارت په ذريعه ګټلې وُ . (۱)

۲ . يو ځل د حضرت عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه تجارتي قافله د شام نه مديني منورې ته راورسيده، دا قافله په اووه سوه (۷۰۰) اُوښانو مشتمله وه، او په دې اُوښانو باندې د خوراک او نور د ضرورت سامانونه بار وو، دا قافله چې څنګه مديني منورې ته راورسيده نو په مدينه منوره کې هر طرف ته شور او کړنګا جوړه شوه، حضرت عائشې رضی الله عنها چې دا شور واوريد نو پوښتنه يې وکړه :

مَا هَٰذِهِ الرَّجَّةُ ؟ داشور د څه شی دی ؟

خلقو ورته ووېل : دا د حضرت عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه د اووه سوه (۷۰۰) اُوښانو تجارتي قافله د شام نه راورسيده چې د خوراک او نور د ضرورت آسباب ورباندې بار دی .

حضرت عائشې رضی الله عنها وفرمايل :

بَارَكَ اللهُ لَهُ فِيمَا أَعْطَاهُ فِي الدُّنْيَا وَلَثَوَابُ الْآخِرَةِ أَعْظَمُ . فَلَقَدْ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ : يَدْخُلُ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَوْفٍ الْجَنَّةَ حَبْوًا .

الله تعالى چې په دُنيا کې ده له څه ورکړي په هغې کې دې ورله برکت واچوي، او يقيناً د آخرت ثواب ډير زيات دی . ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه آوريدلي دي چې عبدالرحمن بن عوف به د خوشحالۍ نه جنت ته په ګونډو ځي .

د اُوښانو د کيناستلو نه مخکې مخکې د حضرت عائشې رضي الله عنها د خُلې نه وتلي دا الفاظ حضرت عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه ته ورسيده، او د جنت تللو زيرې ورته واورولې شو

(۱) اخرجه ابونعيم في الحلية .

دي خوشخبري آوريدو سره هغه فورًا د حضرت عائشي رضی الله عنها په خدمت کي حاضر شو او ورته وي ويل :

يَا أُمَّه ! أَأَنْتَ سَمِعْتَ ذٰلِكَ مِنْ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ؟

اې موري ! آيا تاسو په خپله زما د پاره د جنت دا کلمات د رسول الله صلی الله عليه وسلم د ژبي مبارکي نه آوريدلي دي ؟

حضرت عائشي رضي الله عنها ورته وفرمايل : نَعَمْ . آو ( ما آوريدلي دي ) .

دي آوريدو سره هغه ډير خوشحاله شو ، او وي ويل : اې ام المؤمنين ! زه به په ولاړه جنت ته د داخليدو کوشش وکړم ، زه تاسو ګواه کوم چي زه دا ټوله قافله ، سره د کيجاوُ او کتو ، او سره د ټول هغه سامان کوم چي په دي باندي بار دی دا ټول د الله ﷻ په لاره کي صدقه کوم . ( نو دا اُووه سوه ( ۷۰۰ ) اُوښان سره د سامان يي ټول په فقيرانو باندي صدقه کړه ) . (۱)

کله چي حضرت عبدالرحمن بن عوف ﷺ د حضرت عائشي رضي الله عنها د خُولي مبارکي نه دجنت دا زيري واوريد ، کوم چي رسول الله صلی الله عليه وسلم دده باره کي اَورولی وُ ، نو ددي ورځي نه روستو يي د الله ﷻ په لاره کي خرچ کولو طرف ته نور هم ډير په شوق او جذبي سره متوجه شو ، يو کرت يي څلويښت زره ( ۴۰۰۰۰ ) درهم صدقه کړه ، بيا يي دوه ( ۲ ) اَوقيي سره زَر خيرات کړه ، بيا يي د الله ﷻ په لاره کي مجاهدينو ته سل ( ۱۰۰ ) آسونه ، او د نورو مجاهدينو د پاره يو نيم زر ( ۱۵۰۰ ) د عربي نسل اُوښان برابر کړه .

او چي کله دده د وفات وخت رانزدي شو نو د خپلو غلامانو او وينځو نه يي يو لوي تعداد د غلامي نه آزاد کړه ، او په دي وخت کي چي څومره بدري صحابه کرام ژوندي وو هغوی ټولو له يي د څلور څلور سوه ( ۴۰۰ ) دينارو وصيت وکړو ، چي تقريبًا په دي وخت

(۱) مُزَوَّر من حيوة الصحابة حالات حضرت عبدالرحمن ابن عوف رضي الله عنه ، وهكذا ذكره ابونعيم في الحلية .

کې سل (۱۰۰) بدري صحابه کرام ژوندي وو ، دغه رنګې د امّهاتُ المؤمنين هرې يوې د پاره يې د ډير لوي مقدار رقم وصيت وکړو . (۱)

## ۱۰. د حضرت حَسن ﷛ سخاوت

امام غزالي رحمه الله ليکلي چې يو کس حضرت حسن ﷛ ته راغی ، خپل حاجت يې ورته بيان کړو ، او مدد يې ورنه اوغوښت . ده ورته ووېل : تا چې د ما نه کوم سوال وکړو ددې په ما باندې ډير لوي حق دی ، او زما په نزد چې ته د کوم مدد مستحق يې او ستا د شان سره څومره مدد مناسب دی هغه ډير زيات په کار دی ، خو ليکن زه د هغې ورکولو نه عاجز يم ، ځکه د الله ﷻ په لاره کې چې يو انسان هر څومره ډير مال خرچ کوي هغه کم دی .

زما په مِلک کې چې څومره سَرمايه ده هغه ستا د حق اداء کولو د پاره کافي نه ده ، البته که چيرته ته ديته تيار يې چې د ما سره څومره سَرمايه موجود ده هغه ته په خوشحالۍ سره قبوله کړې او ما دې ته مجبوره نه کړې چې زه ستا د شان لائق او مناسب مال چيرته د بل ځای نه پيدا کړم نو زه هم ديته تيار يم (چې دا تاله درکړم ، او دا به ستا د ما سره ډير اِحسان وي)

سائِل ورته ووېل : اې د رسول الله ﷺ نمسيه ! تاسو چې ماته څه راکړئ زه به هغه قبول کړم ، په دې به شکر ګزار يم ، او که چيرته تاسو د ورکولو نه اِنکار وکړئ نو زه به تاسو معذوره اوګڼړم .

نو حضرت حسن ﷛ خپل خزانچي راووغوښت او ورته وې وېل : ته حساب وکړه چې په دې وخت کې د مونږ سره څومره مال دی ، هغه چې حساب وکړو نو په درې لکه درهمو کې پنځوس زره (۵۰۰۰۰) درهمه پاتي وو هغه يې راوړه ، ده ورنه پوښتنه وکړه چې هغه پنځه سوه (۵۰۰) ديناره خو هم دمونږ سره وو هغه څه شو ؟ خزانچي هغه هم راوړه .

حضرت حسن ﷛ دا ټول درهم او دينار دې فقير له ورکړه او ورته وې وېل : اوس لاړ شه ، څوک مزدور راوله چې دا درسره د خپل کوره پورې ويسي ، فقير چې کله مزدور

(۱) صُوَرٌ مِن حيوة الصحابة حالات حضرت عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه .

راوست نو حضرت حسن ﷺ دي فقیر له خپل ځادر هم ورکړو او ورته وې ویل چې دا به دې مزدور له په مزدورۍ کې ورکړې.

د حضرت حسن ﷺ غلامانو ده ته وویل: قسَم په الله، د مونږ سره خو یو درهم هم پاتې نه شو. دوی ورته وفرمایل: أَرْجُوْا أَنْ يَكُوْنَ لِيْ عِنْدَ اللهِ أَجْرٌ عَظِيْمٌ.

زما د الله ﷻ نه دا قوي امید دی چې زما د پاره به ددې عمل په عوض کې د الله ﷻ سره ډیر لوي اجر و ثواب وي. (۱)

**فایده**: دیته اعلی درجه سخاوت وایي چې ټوله سرمایه یې فقیر ته ورکړه، ځان ته یې هیڅ هم پرې نه خود خو بیا ورسره هم زړه کې دا یَره وه چې ما د فقیر د شان مناسب څه ورنه کړه.

## ۱۱. د حضرت حُسین ﷺ سخاوت

یو کس خپله واقعه بیانوي چې ما شل (۲۰) یا دیرش (۳۰) اُوښان د ځان سره مدینې منورې ته بوتله چې د خلقو نه قجورې اوغوارم، نو خلقو ماته وویل چې عمر وبن عثمان او حضرت حُسین بن علي رضي الله عنهما دواړه په خپلو خپلو باغونو کې ناست دي، ورشه، د هغوی نه قجورې اُوغواړه، هغوی به یې درله درکړي.

نو زه د ټولو نه مخکې حضرت عمروبن عثمان ﷺ ته ورغلم د هغه نه مې قجورې اوغوښتې، هغه راله دوه (۲) اُوښان د قجورو نه بار کړه.

---

(۱) سَأل رجلٌ الحسنَ بنَ عليّ رضي الله عنهما حاجةً فقال له: يا هٰذا حقُّ سؤالك إيّاي يعظم لديّ ومعرفتي بما يجب لك تكبر عليّ. ويدي تعجز عن نيلك بما أنت أهله، والكثيرُ في ذاتِ الله تعالى قليلٌ. وما في ملكي وفاء لشكرك. فإن قبلتَ الميسور ورفعتَ عني مؤنة الاحتمال والاهتمام لما أتكلفه من واجب حقك فعلت. فقال: يا ابن رسول الله أقبل وأشكر العطية. وأعذر على المنع. فدعا الحسن بوكيله وجعل يحاسبه على نفقاته حتى استقصاها فقال: هات الفضل من الثلاث مائة ألف درهم. فأحضر خمسين ألفا. قال: فما فعلتَ بالخمس مائة دينار؟ قال: هي عندي. قال: أحضرها. فأحضرها فَدَفَعَ الدّنانير والدّراهم إلى الرّجل وقال: هات من يحملها لك. فأتاه بحمالين فدفع إليه الحسنُ رداءَه لكراء الحمالين. فقال له مواليه: والله ما عندنا درهمٌ. قال: أَرْجُوْا أَنْ يَكُوْنَ لِيْ عِنْدَ اللهِ أَجْرٌ عَظِيْمٌ.
احياء العلوم ج۳ ص ۳۳۲ كتاب ذم البخل وذم حب المال.

بيا راله چا مشوره راکړه چې اوس حضرت حُسين بن علي رضي الله عنهما ته ورشه هغه هم په باغ کې ناست دی، کله چې زه باغ ته ورننوتم، ما چونکه هغه نه پېژنده، په باغ کې مې يو کس وليده چې په زمکه ناست دی او د هغه نه گير چاپيره غلامان ناست دي، په مينځ کې يوه غټه پياله ايښې وه په هغې کې غټه روټۍ او غوښه وه، هغه ټولو په شريکه خوړله، ما ورباندې سلام واچول، زړه کې مې دا سوچ کولو چې شايد دا کس به ما ته هيڅ هم رانه کړي.

به هر حال حضرت حُسين ﷺ زه رااُوغوښتم، او ځان سره يې روټۍ ته کينولم. بيا د اُوبو يو وړوکي نهر ته لاړ، اُوبه يې ترې اُوڅکلې، لاسونه يې اُووينځل، او بيا يې ما ته وويل: ته څنګه راغلی؟ ما ورته وويل: ما څه اُوښان راوستي دي چې تاسو ما ته دا اُوښان په قجورو بار واپس کړئ (يعنې دومره ډيرې خيراتي قجورې راکړئ چې دا ټول اُوښان ورنه بار شي).

حضرت حُسين ﷺ راته وويل: لاړ شه اُوښان دې راوله، نو زه لاړم اُوښان مې راوست. بيا يې راته وويل: دې پورې د قجورو ډيري ته ورشه، او څومره قجورې چې ورنه وړې شي هغومره د ځان سره ويسه. دغه سائل وايي چې ما ټولې اُوښې د قجورو نه بار کړې، راروان شوم او په زړه کې مې دا سوچ کولو چې يقيني دا اعلی درجه سخاوت دی. (۱)

## ۱۲. د درې (۳) صحابه کرامو رضي الله عنهم سخاوت

هثيم بن عدي رحمه الله وايي چې د درې (۳) کسانو په بيتُ الله کې په دې خبره اِختلاف پيدا شو چې په دې وخت کې د ټولو نه ډير سخي څوک دی؟ يو کس وويل: ډير سخي حضرت عبدالله بن جعفر ﷺ دی، دويم کس وويل: ډير سخي قيس بن سعد ﷺ دی، او دريم وويل: عرابه اوسي ﷺ ډير سخي دی.

خبره اُوږده شوه، هر کس به په خپل حق کې دلايل بيانول، تر دې چې آوازونه اُوچت شو او څه خلق هم راجمع شو، په دې کې يو کس ورته وويل: پدې کې د اختلاف ضرورت نشته، بلکه هر کس دې لاړ شي او دې چې د چا په باره کې د ډير سخي کيدو دعوی لري د هغه نه دې

(۱) مکارم الاخلاق ص ۲۷۵.

څه اُغواړي ، هغه چې ورله څه ورکړي هغه دې دلته راوړي ، نو بیا به معلومه شي چې ډیر سخي څوک دی .

په دې کې یو کس حضرت عبدالله بن جعفر ﷺ ته ورغی ، او هغه ته یې وویل : اې د رسول الله صلی الله علیه وسلم د تره ځویه ! زه مسافریم ، د سفر اَسباب راسره ختم شوي دي، لهذا د ماسره څه اِمداد وکړه .

حضرت عبدالله بن جعفر ﷺ په دې وخت کې په یو بهترین اَس باندې سور وُ ، چیرته د تللو اِراده یې کړې وه ، دې کس چې څنګه ورته دا خبره وکړه نو هغه متّصِل د اَس نه رابښکته شو ، او ده ته یې وویل : دا اَس واخله ، په دې باندې سُور شه ، اوس دا ستا دی ، ددې سره یوه تیلۍ هم ده ، په دې کې چې څه دي هغه ټول ستا شو ، اوپه دې کې یوه تُوره هم ده خو داتوره معمولي مه ګڼه ځکه دا د حضرت علي ﷺ توره ده ، دا توره هم ستا شوه .

کله چې دا کس په دې اَس باندې دلته بیتُ الله ته راغی او دا تیلۍ یې کلاوُ کړه نو په دې کې څلور زره ( ۴۰۰۰ ) دیناره ، او د وریښمو څادرونه وو ، دغه رنګې د حضرت علي ﷺ تُوره په کې هم وه .

دا دویم کس د حضرت قیس بن سعد ﷺ کورته ورغی ، هغه په خپله اُوده وُ ، د هغه وینځه راووته ، وینځې ورنه پوښتنه وکړه چې څنګه راغلی یې ؟ ده ورته وویل : زه مسافر یم ، د سفر توخه راسره ختمه شوې ده نو څه اِمداد راسره وکړه .

وینځې ورته وویل : ددې معمولي ضرورت د پاره حضرت قیس بن سعد ﷺ د خُوب نه راپاڅول په کار نه دي ، ته دا تیلۍ واخله ، په دې کې اووه سوه ( ۷۰۰ ) دیناره دي ، په دې وخت کې د حضرت قیس ﷺ په کور صرف همدا موجود دي ، بل دا چې ددې کور سره په دې نږدې حَویلۍ کې اُوښان تړلي دي ته ورشه او په هغې کې ځانله یو بهترین اُوښ خوښ کړه ، او یو غلام هم د ځان سره د خدمت د پاره بوځه ، دا ټول ستا شو . دې کس دا ټول هر څه د ځان سره راوړه ، او خپلو ملګرو ته راغی .

کله چې حضرت قيس رضي الله عنه د خُوب نه راپاځيد ، وينځې ورته ټوله قيصه بيان کړه نو هغه ورته ووېل : بهتره دا وه چې تا زه راپاڅولې وی ، مابه په خپله د هغه حاجت پوره کړې وی ، ځکه معلومه نه ده چې تا هغه ته څه ورکړي دي آيا په هغې به د هغه حاجت پوره شوې وي او که نه ؟ خو بيا هم تا ښه کار کړی ، ددې ښه گار په بدله کې ما ته آزاده کړی .

دا دريم کس حضرت عرابه اوسي رضي الله عنه ته ورغی ، د لمانځه وخت ؤ ، حضرت عرابه اوسي رضي الله عنه ډير کمزورې شوې ؤ او د سترگو نظر يې هم ختم شوې ؤ ، د دوه غلامانو په اُوږو باندې يې لاسونه اچولي وو ، او جُمات ته د لمانځه د پاره په قلاره قلاره روان ؤ .

دې کس ورته ووېل : اې عرابه اوسي رضي الله عنه ! زما خبره به واورې ؟ هغه ورته ووېل :آو ، اووايه څه ويل غواړې ؟ ده ورته ووېل : زه مسافِريم ، د سفر توخه راسره ختمه شوی نو که څه امداد راسره وکړی .

حضرت عرابه اوسي رضي الله عنه دواړه لاسوه د غلامانو د اُولي نه راديخوا کړه ، د دواړو لاسونو نه يې يو ټَس اُوويست ، او وې ويل : عرابه خو خپل ټول مال د الله جل جلاله په لاره کې خرچ کړی ، صرف همدا دوه غلامان راسره پاتې دي . دا دواړه ستا شو ، د ځان سره يې بوځه

دې کس ورته ووېل : جناب ! داسې کله کيدې شي ؟ ته خو په خپله هم ډير ضرورت مند يې ، زه دا غلامان د ځان سره نه بوځم . هغه راته ووېل : واوره ، دا دواړه غلامان اوس ستا دي که ستا خوښه وي نو آزاد يې کړه ، او که خوښه دې وي نو د ځان سره يې بوځه .

ددې نه پس حضرت عرابه اوسي رضي الله عنه په دواړو لاسونو باندې ديوال اُونيوه ، او د ديوال نيولو په مدد سره ډير په تکليف سره جُمات طرف ته روان شو .

کله چې دې کس دا دوه غلامان د ځان سره راروان کړه ، او نورو ملگرو ته راورسيده .

درې (۳) واړه ملگري سره يو ځای شو ، هر يو کس خپله خپله واقعه بيان کړه ، او څه يې چې د ځان سره راوړي وو د هغې تذکره يې هم وکړه ، نو د درې واړو صحابه کرامو ډير تعريف اوشو چې هر يو کس ډير زيات سخي دی ، بيا خاصکر حضرت عرابه اوسي رضي الله عنه کوم چې د ډيرې تنگسيا باوجود هم خپل ټول مال ( دواړه غلامان ) صدقه کړه ، او په خپله د ديوال نيولو په واسطه جُمات ته روان شو .

## خلاصه :

دنبي كريم صلى الله عليه وسلم او دصحابه كرامو د سخاوت او ايثار دا يو څو واقعات مې ستاسو د وړاندې د نمونې دپاره ذكر كړه اگر داسې په زرهاؤ واقعات شته ، ددې واقعاتو مقصد دا دی چې انسان ددې نه عبرت واخلي ، د نبي كريم صلى الله عليه وسلم او صحابه كرامو تابعداري وكړي ، په خپلو مالونو كې دفرضي حقوقو سره سره د نفلي صدقاتو خيال هم اوساتي ، د فقيرانو ، مسكينانو او ضرورتمندو حوائج پوره كړي ، د خپل ځان په نسبت بل ته ترجيح وركړي ، خپل مال په داسې ځايونو كې خرچ كړي چې د آخرت ذخيره او د انسان د درجو اُوچتولو ذريعه جوړه شي .

**دُعا** : الله تبارک و تعالى دې په مونږ كې هم دغه د سخاوت ، ايثار ، همدردۍ او اِخلاص صفت پيدا كړي چې په خپلو مالونو كې د حقوق الله او حقوق العباد و لحاظ اوساتو ، خپل مالونه د خَير په كارونو كې خرچ كړو ، د ضرورتمندو او فقيرانو حاجتونه پوره كړو . او الله تعالى دې زمونږ د زړونو نه د بُخل ، او كنجُوسۍ صفت ، او د مال محبت لرې كړي .

آمِيْن يَارَبَّ الْعَالَمِيْن .

وَآخِرُ دَعْوَانَا أَنِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ

# د سخاوت په باره کې نور بهترين واقعات :

د سخاوت په باره کې درته يو څو نور بهترين معتمد واقعات نقل کوم ، که موقع او وخت زيات وي نو مقررين حضرات د دينه هم اِستفاده کولی شي .

## ۱ . د حضرت زين العابدين علي بن حُسين رحمه الله سخاوت

۱ . حضرت امام زين العابدين علي بن حُسين رحمه الله به په خپله مَلا پورې د دوډو ( روټو ) تيلۍ تړلې وه او د شپې به يې د مدينې منورې په فقيرانو باندې تقسيموله ، کله چې دې وفات شو نو بيا خلقو ته معلومه شوه چې دوی به د مدينې منورې د سلو ( ۱۰۰ ) کورونو کفالت کولو .
حضرت جرير رحمه الله وايي چې د وفات نه روستو خلقو دده په مَلا باندې هغه نشانات وليده کوم د روټۍ تيلۍ ګرځولو په وجه جوړ شوي وو .

۲ . د محمد بن اسحاق رحمه الله نه نقل دي چې په مدينه منوره کې داسې خلق هم اُوسيده چې هغوی ته دا هم معلومه نه وه چې مونږ ته په هره شپه دا خوراک څوک راوړي ؟ خو چې کله حضرت زين العابدين علي بن حُسين رحمه الله وفات شو نو بيا چونکه هغوی د شپې خوراک وَر وړونکې کس اونه مونده نو ځکه ورته معلومه شوه چې دا په هره شپه به مونږ له حضرت زين العابدين رحمه الله خوراک راوړو . (۱)

## ۲ . د بنو هاشمو سخاوت

حُميد بن هلال رحمه الله وايي چې د بنو هاشم او بنو اُميّه دوه کسانو په خپل مينځ کې بحث پيدا شو ، يو ويل چې زما خاندان ډير سخي دی ، او دې بل ويل : زما خاندان ډير سخي دی . بالآخر فيصله په دې اوشوه چې هر کس دې د خپل خپل خاندان نه سوال وکړي ، نو په خپله به معلومه شي چې څوک ډير سخيان دي .
اُموي کس د خپل قوم د لسو کسانو نه څه اُوغوښت هغوی ټولو ورله په شريکه يو لک ( ۱۰۰۰۰۰ ) روپۍ ورکړې . کله چې دا هاشمي د خپل خاندان واله خلقو کې عبيد الله بن عباس ته ورغی نو هغه ورله يواځې يو لک ( ۱۰۰۰۰ ) روپۍ ورکړې ، بيا حضرت حسن بن علي رضي الله عنهما ته ورغی نو هغه ورنه پوښتنه وکړه : د مانه مخکې زما په قوم کې بل چا له ورغلی وی ؟ ده ورته

---

(۱) حلية الاولياء .

وویل : آو ، عبیدالله بن عباس له ورغلې ووم ، هغه راله یو لک روپۍ راکړې ، نو حضرت حسن بن علي ﷺ ورله یو لک او دیرش زره (۱۳۰۰۰۰) روپۍ ورکړې .

بیا دا کس حضرت حُسین بن علي ﷺ ته ورغی ، هغه ورنه پوښتنه وکړه : ماته د راتګ نه مخکې زما په قوم کې ته بل چاته ورغلې وې ؟ ده ورته وویل : آو ، ستاسو ورور حضرت حسن بن علي ﷺ ته ورغلې ووم هغه راته یو لک او دیرش زره روپۍ راکړې ، ده ورته وویل : که چیرته ته اول ماته راغلې وې نو ما به درته ډیرې زیاتې درکړې وې خو چونکه زه د خپل سیّد (ورور) په ورکړه باندې زیادت نه شم کولی ، نو حضرت حُسین ﷺ هم ورته یو لک او دیرش زره روپۍ ورکړې . نو دې هاشمي صرف د درې کسانو نه درې لکه او شپیته زره روپۍ راوړې ، او هغه اموي د لسو کسانو نه یو لک روپۍ راوړې وې .

کله چې دا دواړه سره یو ځای شو او هر یو خپل راوړې روپۍ اُوخودې نو هاشمي په خپله دعوی کې غالب راغی . بیا فیصله دا اُوشوه چې هر کس دې خپل قوم واله ته دا روپۍ واپس کړي ، نو اموي چې کله خپل قوم واله ته روپۍ وَر وړې او واقعه یې ورته بیان کړه نو هغوی ورنه روپۍ واپس واخیستې . او کله چې هاشمي کس دا روپۍ دې خپل قوم له وَر وړې او واقعه یې ورته بیان کړه نو هغوی واپس د روپو اخیستلو نه اِنکار وکړو او وې ویل :

لَمْ نَكُنْ لِنَأْخُذَ شَيْئًا قَدْ أَعْطَيْنَاهُ . مونږ چې کوم مال چاته ورکړو هغه واپس نه اَخلو . (۱)

(۱) قَالَ حُمَيْدُ بْنُ هِلَالٍ رَحِمَهُ اللهُ تَفَاخَرَ رَجُلَانِ مِنْ قُرَيْشٍ رَجُلٌ مِنْ بَنِيْ هَاشِمٍ وَرَجُلٌ مِنْ بَنِيْ أُمَيَّةَ . فَقَالَ هٰذَا : قَوْمِيْ أَسْخٰى مِنْ قَوْمِكَ . وَقَالَ هٰذَا : قَوْمِيْ أَسْخٰى مِنْ قَوْمِكَ . قَالَ : سَلْ فِيْ قَوْمِكَ حَتّٰى أَسْئَلَ فِيْ قَوْمِيْ . فَافْتَرَقَا عَلٰى ذٰلِكَ . فَسَأَلَ الْأُمَوِيُّ عَشَرَةً مِنْ قَوْمِهٖ فَأَعْطَوْهُ مِائَةَ أَلْفٍ . فَجَاءَ الْهَاشِمِيُّ إِلٰى عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ الْعَبَّاسِ فَأَعْطَاهُ مِائَةَ أَلْفٍ . ثُمَّ أَتَى الْحَسَنَ بْنَ عَلِيٍّ . فَسَأَلَهُ هَلْ أَتَيْتَ أَحَدًا مِنْ قَوْمِيْ ؟ قَالَ : نَعَمْ عُبَيْدَ اللّٰهِ بْنَ عَبَّاسٍ فَأَعْطَانِيْ مِائَةَ أَلْفٍ . فَأَعْطَاهُ الْحَسَنُ مِائَةَ أَلْفٍ وَثَلَاثِيْنَ أَلْفًا . ثُمَّ أَتَى الْحُسَيْنَ بْنَ عَلِيٍّ فَسَأَلَهُ : هَلْ أَتَيْتَ أَحَدًا قَبْلَ أَنْ تَأْتِيَنِيْ ؟ قَالَ : نَعَمْ أَخَاكَ الْحَسَنَ فَأَعْطَانِيْ مِائَةَ أَلْفٍ وَثَلَاثِيْنَ أَلْفًا . قَالَ : لَوْ أَتَيْتَنِيْ قَبْلَ أَنْ تَأْتِيَهُ لَأَعْطَيْتُكَ أَكْثَرَ مِنْ ذٰلِكَ وَلٰكِنْ لَمْ أَكُنْ لِأَزِيْدَ عَلٰى سَيِّدِيْ فَجَاءَ الْأُمَوِيُّ وَالْهَاشِمِيُّ بِمَا مَعَهُمَا . فَفَخَرَ الْهَاشِمِيُّ الْأُمَوِيَّ . فَرَجَعَ الْأُمَوِيُّ إِلٰى قَوْمِهٖ فَأَخْبَرَهُمُ الْخَبَرَ وَرَدَّ عَلَيْهِمُ الْمَالَ فَقَبِلُوْهُ . وَرَجَعَ الْهَاشِمِيُّ إِلٰى قَوْمِهٖ فَأَخْبَرَهُمُ الْخَبَرَ . وَرَدَّ عَلَيْهِمُ الْمَالَ . فَأَبَوْا أَنْ يَقْبَلُوْهُ . وَقَالُوْا : لَمْ نَكُنْ لِنَأْخُذَ شَيْئًا قَدْ أَعْطَيْنَاهُ . مكارم الاخلاق لابن ابي الدنيا ص ۱۱٦ ، نضرة النعيم في مكارم اخلاق الرسول الكريم صلى الله عليه وسلم ج٦ ص ۲۲۵۷

فايده : دا د نبي عليه السلام د خاندان بنوهاشمو اعلى درجه سخاوت دی .

## ۳. د شعبه رحمه الله سخاوت :

امام غزالي رحمه الله ذکر کړي : د شعبه رحمه الله په باره کې نقل دي چې ده ته يو فقير راغی ، څه يې ورنه اوغوښت ، دده سره په دې وخت کې هيڅ شی نه وُ چې دې فقير ته يې ورکړې وی ، نو کورته لاړ ، د چَت نه يې يو لرګې رااوويست ، او دې فقير ته يې ورکړو . ددې د پاره چې دا فقير همداسې خالي لاس لاړ نه شي ، او بيا يې عُذر هم پيش کړو چې ته خفه نه شې ما ستا ضرورت پوره نه کړې شو . (۱)

## ۴. د حضرت عبدالله بن مبارک رحمه الله سخاوت

حضرت عبدالله بن مبارک رحمه الله به چې کله هم " رقه " ښار ته لاړو نو د هغه علاقې يو ځوان به دده ملاقات له راتلو او د مسائلو پوښتنې به يې ورنه کولې ، يو کرت چې دې د " رقه " ښار ته راغی نو هغه ځوان ورله ملاقات له رانغی ، ده د خلقو نه پوښتنه وکړه چې دلته يو ځوان وُ کله به چې زه دې ښار ته راغلم نو هغه به زما ملاقات له راتلو ، اوس خو ما هغه اونه ليدو ، هغه څه شو ؟ خلقو ورته ووېل : په هغه باندې د يو کس لس زره (۱۰۰۰۰) ديناره قرضه جمع شوی ، دده سره څه نشته نو هغه دې نيولی دی او په جيل ( محبَس ) کې اوس بَندي دی .

عبدالله بن مبارک رحمه الله چې دا خبره واوريده نو ډير خفه شو ، د خلقو نه ددې قرض خواه د کور معلومات وکړو ، کله چې ورته خلقو د قرض خواه کور اُوخود نو دې هلته ورغی او هغه ته يې ووېل : زمونږ يو دوست دی ستا په هغه باندې لس زره ديناره قرضه ده او تا هغه په جيل کې اچولې دی ، نو زه تاته د هغه قرضه درکوم خو په يو شرط باندې چې " ته به د ماسره دا کلکه وعده او قسَم کوې چې ترڅو پورې زه ژوندی يم ته به هغه ته دا راز نه ښکاره کوې چې ستا قرضه چا اداء کړې " . دې قرض خواه کلکه وعده او قسَم وکړو ، نو ده ورله لس زره ديناره ورکړه ، او ورته وې ويل چې اوس ورشه هغه د جيل نه راخلاص کړه .

(۱) وروي أنّ شعبةَ جاءه سائلٌ وليس عنده شيءٌ . فنَزَعَ خَشَبَةً مِن سقفِ بَيْتِهِ فَأعطاهُ ثُمّ اعتذرإليه . احياء العلوم ج ۳ ص ۲۴۶ .

دا قرض خواه جيل ته لاړو او هغه ته يې وويل : ستا قرضه ماته يو چا راکړې نو ته اوس آزاد يې .

کله چې دا ځوان د جيل نه راووت ، نو د خلقو نه خبر شو چې دې ښار ته حضرت عبدالله بن مبارک رحمه الله راغلی ؤ خو اوس وخت شي چې دوباره لاړو ، دا ځوان په منډه منډه د دوی پسې راروان شو ، په لاره کې يې رالاندې کړو ، ملاقات يې ورسره وکړو . عبدالله بن مبارک رحمه الله ورنه پوښتنه وکړه : داسې خبر شوم چې تاسو په جيل کې وی ؟ ده ورته وويل : آو ، د يو کس را باندې لس زره ديناره قرضه وه ، زما د اداء کولو قدرت نه ؤ ، نو په جيل کې يې اچولې ووم ، اوس الله ﷻ رحم وکړو ، يو غيبي فرښته يې راوليږله ، زما قرض خواه ته يې دا ټوله قرضه ورکړه ، هغه معلوم هم نه شو چې څوک ؤ ؟ زه دا دې اوس د جيل نه راخلاص شوم . عبدالله بن مبارک رحمه الله ورته وويل : اوس د الله تعالی شکريه اداء کوه ، د هغه عبادت کوه ، زه به تاسو ته دُعا کوم ، تاسو ماته دُعا کوی . بيا ورنه عبدالله بن مبارک رحمه الله رخصت شو .

دغه ځوان وايي چې ماته په ټول عُمر کې دا پته نه لږيده چې زما دا قرضه چا اداء کړې ، ځکه عبدالله بن مبارک رحمه الله دې قرض خواه ته قسَم ورکړې ؤ چې زما په ژوند به چاته دا راز نه ښکاره کوی . کله چې عبدالله بن مبارک رحمه الله وفات شو نو بيا هغه قرض خواه دې ځوان ته وويل : چې ستا قرضه ماته عبدالله بن مبارک رحمه الله راکړې وه . (۱)

**فايده** : ديته اعلى درجه سخاوت وايي چې دومره ډيره قرضه يې ورخلاصه کړه ، او خپل نوم ښکاره کول يې هم نه غوښته .

## ۵ . د عبدالله بن عامر رحمه الله سخاوت

۱ . عبدالله بن عامر رحمه الله يو کور د خالد بن عقبه رحمه الله نه په اويازره يا اتيا زره ( ۸۰۰۰۰ ) درهمه واخيست ، کله چې شپه شوه نو د خالد دکور نه د ژړا آواز راتلو ، ده د خپلې بي بي نه پوښتنه وکړه چې دا د ژړا آواز ولې راځي ؟ هغې ورته وويل : د خالد بن عقبه کور واله د کور خرڅولو په غم کې ژاړي . عبدالله بن عامر رحمه الله چې دا خبره واوريده نو

(۱) تاريخ بغداد .

خپل غلام يې ورولېږل، چې ورشه، هغوی ته ووايه چې دا ټول درهم هم ستاسو شو، او کور هم ستاسو شو. (۱)

۲. عبدالله بن عامر بن کُريز رحمه الله يو کرت د جُمات نه راووت او کورته ځان له روان وُ (غالبًا چې دا شپه وه)، په لاره کې د بني ثقيف د قبيلې يو ځوان هلک ورسره ملګرې شو، او ورسره روان وُ، عبدالله بن عامر ورنه پوښتنه وکړه: ستا څه ضرورت دی که څنګه د ماسره روان يې؟ هغه هلک ورته وويل: زما هيڅ ضرورت نشته خو چونکه ته مې اُوليدې چې يوا ځې روان وی نو ما د ځان سره وويل: هسې نه چې تاته په لاره کې څه تکليف اورسي نو زه به ستا مدد وکړم، او تکليف نه به تاسو اوساتم، نو صرف ستاسو د حفاظت د پاره تاسو سره روان يم.

ده چې دا خبره واورېده نو دا ځوان يې د لاس نه اونيوه او د ځان سره يې کورته بوتلو، هلته يې ورته زر (۱۰۰۰) ديناره انعام ورکړو، او ورته وې ويل: ستا مشرانو تاته ډير بهترين اَدب درخُودلی (او ستا يې بهترين تربيت کړی، چې د دومره بهترينو اخلاقو خاوند يې). (۲)

## ۶. د وفات نه روستو سخاوت کول

امام غزالي رحمه الله ليکلي دي چې د عربو څه خلق د يو سخي د قبر زيارت له راغله، دوی چونکه د ډير لرې نه سفر راکړې وُ، نو همدلته د قبر سره يې شپه راغله، په دې خلقو کې يو کس د شپې خُوب وليد، په خُوب کې ورته دا د قبر واله سخي کس وايي:

آيا ته د ماسره دا سپَيا څورب اُوښ په يو بهترين اَس باندې بدلوی؟ چې زه په دې اُوښ باندې د دې راغلي ميلمنو ميلمستيا وکړم، او تاته به د دې په عوض کې بهترين اَس ملاوْ

(۱) شعب الايمان ۷ / ۴۳۷.

(۲) خَرَجَ عبدُالله بنُ عامر بن کُريز مِنَ المسجد يُريدُ منزله وهو وَحْدَهُ، فقام إليه غلامٌ من ثقيف فمشى إلى جانبه فَقَال له عبدُالله: أَلَکَ حاجةٌ يا غلامُ؟ قال: صلاحک وفلاحک، رأيتُک تَمْشِيْ وحدَک فقلتُ أَقِيْکَ بِنَفْسِيْ وأعوذُ بالله إنْ طارَ بجناحک مکروهٌ. فأَخَذَ عبدُالله بيده ومشى معه إلى منزله، ثمّ دَعَا بألفِ دينارٍ فَدَفَعَهَا إلى الغلام وقال: استنفق هذا فَنِعْمَ مَا أَدبک أهلُک. احياء العلوم ج۳ ص ۲۳۳.

شي. ده ورته وويل: آو، دا اُوښ ستا شو، کله چې د دوی په مينځ کې سره دا تبادله اوشوه نو دغه د قبر واله کس راپاڅيد او دا اُوښ يې په خوب کې حلال کړو.

دغه خوب ليدونکي کس وايي چې کله زه د خوب نه راويدار شوم نو يقيني زما د اُوښ د مرې نه وينې روانې وې. نو زه په جلتۍ ورپاڅيدم او هغه مې حلال کړو، بيا مې ددې غوښه په موجوده ټولو مسافرو باندې تقسيم کړه.

کله چې په صبا باندې مونږ ددې ځای نه روان شو، او څه اندازه سفر مو وکړو، نو څه کسان راته په مخه راغله، په اسونو باندې سواره وو، هغوی د مونږ نه پوښتنه وکړه: آيا په تاسو کې د فلاني نوم واله کس شته؟ ددې کس نوم يې واخيست چا چې اُوښ حلال کړې ؤ.

خلقو ورته وويل: آو، دا دی. په هغوی کې يو کس ورته وويل:

تا خو د فلاني قبر واله مړي سره څه تبادله نه ده کړې؟ او په هغه باندې خو دې څه نه دي خرڅ کړي؟ ده ورته وويل: آو. ما د هغه سره اُوښ په آس باندې بدل کړی، خو زمونږ دا معامله په خُوب کې وه.

نو په هغوی کې يو کس وويل: زه د هغه ځوي يم، دا د هغه آس دی، هغه اوس وفات شوی، هغه ماته په خُوب کې وويل: که ته زما ځوي يې نو دا آس فلاني سړي ته ورکړه، او ستا نوم يې راته واخيست. (نو ده ورنه دا آس واخيست، او په سفر روان شو). (۱)

---

(۱) وحكي أنّ قومًا مِنَ العرب جاؤُوا إلى قبرِ بَعْضِ أَسخيائِهِمْ لِلزّيارةِ. فَنَزَلُوا عند قبره وبَاتُوا عنده. وقد كانُوا جاؤُوا من سفرٍ بعيدٍ. فرأى رجلٌ منهم في النّوم صاحبَ القبرِ. وهو يقولُ لهُ: هَلْ لَكَ أَنْ تبادلَ بعيرَكَ بنَجِيْبِيْ؟ وكان السّخيُّ الميّتُ قد خَلَفَ نَجِيْبًا مَعْرُوْفًا به. ولهذا الرّجل بعيرٌ سمينٌ. فقال له في النّوم: نعم. فبَاعَهُ في النّوم بعيرَه بنَجِيْبِهِ. فلمّا وَقَعَ بينهما العقدُ عمد هذا الرجلُ إلى بعيره فَنَحَرَهُ في النّوم. فَانْتَبَهَ الرّجلُ من نَوْمِهِ فإذا الدّمُ يثج من نحر بعيرِه. فقام الرّجلُ فنحرَه وقسمَ لحمَه فطبخُوه وَقَضَوا حاجتَهم منه. ثمّ رَحَلُوا وسَارُوْا. فلمّا كانَ اليومُ الثّاني وهو في الطريقِ استقبلهم ركبٌ. فقال رجلٌ مِنْهُمْ: مَنْ فُلَانُ ابْنُ فُلَانٍ مِنْكُمْ؟ ـ باسم ذلك الرجل ـ فقال: أنا. فقال له: هَلْ بِعْتَ مِنْ فُلَانِ ابْنِ فُلَانٍ شَيْئًا؟ وَذَكَرَ الميّت صاحبَ القبر. قال: نعم بِعْتُ بَعِيْرِيْ بِنَجِيْبِهِ فِي النّوم. فقال: خُذْ هَذَا نَجِيْبُهُ. ثمّ قال: هو أبي وقد رَأَيْتُهُ فِي النَّوْمِ وهو يقولُ: إِنْ كُنْتَ إِبْنِيْ فَادْفَعْ نَجِيْبِيْ إِلى فُلَانِ ابْنِ فُلَانٍ وَسَمَّاهُ. احياء العلوم ج۳ ص ۲۳۳.

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

﴿ إِنَّ فِيْ خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ وَاخْتِلَافِ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ لَاٰيٰتٍ لِّأُولِي الْأَلْبَابِ ﴾ آل عمران آیت

# په مخلوقاتو کې د الله ﷻ د قُدرت نخې

تَالِيف :


اَبُوالشَّمْس مولانا نُوْرُالْهُدیٰ عُفِيَ عَنْهُ

مُدَرِّس دَارُالعلوم فيض القرآن اکاخیل کالونی مردان

# ﴿ نوټ ﴾

دا آينده موضوع " په مخلوقاتو کې د الله ﷻ د قدرت نخې " که چيرته په داسې ځاى کې بيان شي چيرته چې تعليم يافته او پوهه خلق زيات وي ( لکه علماء ، طلباء ، ډاکټران ، انجينران ، سائنسدانان او نور پوهه خلق ) نو فايده به يې ډيره زياته وي ، ځکه صرف په همدې يوه موضوع باندې څه سائنسي ، طِبّي او ډاکټري رنګ غالِب دى .

وجه داده چې په دې موضوع کې په مخلوقاتو کې او خاصکر د انسان په بدن کې د الله ﷻ د قدرت عجيبه نخې بيان شوي ، چې د پوهه خلقو دِماغ ورته زر رسيدګي کوي .

اګر چې د عامو خلقو د ورانډې بيانول هم فايده لري خو ډيره فايده يې د تعليم يافته خلقو د وړاندې په بيانولو کې ده .

لهذا مقررين حضرات دې د ځاى او موقعې مناسب ځانته ددې موادو نه انتخاب وکړي .

ابوالشمس عفي عنه

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

# په مخلوقاتو کې د الله ﷻ د قدرت نخې

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ وَحْدَهُ ، وَالصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ عَلٰى مَنْ لَّا نَبِيَّ بَعْدَهُ ، وَلَا رَسُوْلَ بَعْدَهُ ، وَهُوَ خَاتَمُ النَّبِيِّيْنَ ، وَعَلٰى آلِهٖ وَأَصْحَابِهٖ اَجْمَعِيْنَ ، وَعَلٰى مَنْ تَبِعَهُ وَتَبِعَهُمْ بِاِحْسَانٍ إِلٰى يَوْمِ الدِّيْنِ .

اَمَّا بَعْدُ فَأَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ ، بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ . قَالَ اللّٰهُ تَبَارَكَ وَتَعَالٰى فِي الْقُرْآنِ الْمَجِيْدِ وَالْفُرْقَانِ الْحَمِيْدِ :

﴿إِنَّ فِيْ خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ وَاخْتِلَافِ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ لَاٰيٰتٍ لِّأُولِي الْأَلْبَابِ . الَّذِيْنَ يَذْكُرُوْنَ اللّٰهَ قِيَامًا وَّقُعُوْدًا وَّعَلٰى جُنُوْبِهِمْ وَيَتَفَكَّرُوْنَ فِيْ خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ رَبَّنَا مَا خَلَقْتَ هٰذَا بَاطِلًا سُبْحَانَكَ فَقِنَا عَذَابَ النَّارِ﴾(۱)

وَقَالَ تَعَالٰى : ﴿وَفِي الْأَرْضِ اٰيَاتٌ لِّلْمُوْقِنِيْنَ . وَفِيْ أَنْفُسِكُمْ أَفَلَا تُبْصِرُوْنَ﴾ .(۲)

صَدَقَ اللّٰهُ الْعَظِيْمِ .

زما خوږو قدرمنو او عزت مندو مسلمانانو ورونو ! د الله تعالی په مخلوقاتو کې غور او فکر کول ، په دې کې د الله ﷻ د قدرت نخې کتل او د دینه عبرت حاصلول هم یو اعلی عبادت دی ، ځکه چې څوک د الله تعالی په دې عجیبه مخلوقاتو کې تدبّر او تفکّر کوي او د الله تعالی دې کاملې کاريګرۍ ته ګوري نو په دې سره دده ایمان او یقین نور هم مضبوطیږي ، په زړه کې یې د الله تعالی عظمت او معرفت پیداکیږي ، او په خپله په دې نتیجه رسي چې دا ټول هر څه الله ﷻ عبث نه دي پیدا کړي ، بلکه د دې په پیدا کولو کې یې بې شماره حکمتونه ایښي ، چې یو غټ حکمت په کې دا هم دی چې د دې مخلوقاتو نه د خالق

---

(۱) آل عمران آیت ۱۹۰ و ۱۹۱ .

(۲) الذاريات آيت ۲۰ ، ۲۱ .

په موجود والي باندې دليل اُونيوې شي ، ځکه ددې کائناتو ذره ذره د الله ﷻ په وجود ، وحدانيت او قدرت باندې دلالت کوي .

بل دا چې دا ټول هر څه د انسان د خدمت د پاره پيدا دي او انسان صرف د الله رب العزت د عبادت د پاره پيدا دی ، او همدا د انسان د ژوند مقصد هم دی .

دغه وجه ده چې په قرآن کريم او احاديثو کې ځای په ځای بندګانو ته د کائناتو په هر شي کې د تفکّر او تدبّر کولو دعوت ورکړې شوی ، او دا د عقلمند انسان اعلى صفت ګرځول شوی ، دغه وجه ده چې په قرآن کريم کې څه د پاسه اووه نيم سوه ( ۷۵۰ ) آيتونه داسې دي چې په هغې کې د الله د قدرت اِظهار شوی .

**اول آيت** : الله ﷻ فرمايي :

﴿إِنَّ فِي خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ وَاخْتِلَافِ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ لَآيَاتٍ لِّأُولِي الْأَلْبَابِ . الَّذِينَ يَذْكُرُونَ اللّٰهَ قِيَامًا وَّقُعُودًا وَّعَلٰى جُنُوبِهِمْ وَيَتَفَكَّرُونَ فِي خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ رَبَّنَا مَا خَلَقْتَ هٰذَا بَاطِلًا سُبْحَانَكَ فَقِنَا عَذَابَ النَّارِ ﴾ (۱)

ترجمه : بيشکه د آسمانونو او زمکې په پيدا کولو ، او د شپې او ورځې په تلو راتلو کې خامخا نښې ( د قدرت ، او دلايل د توحيد ) دي د خاوندانو د عقل د پاره . ( او دا عقل مند هغه خلق دي ) کوم چې په ولاړه ، په ناسته او په اړخونو ( يعنی په هر حالت کې ) الله تعالى يادوي ، او د آسمانونو او زمکې په پيداوښت کې فکر کوي ( او دا وايي چې ) اې زمونږه ربه ! تا دا ( مخلوقات ) عبث نه دي پيدا کړي ( بلکه په دې کې دېر حکمتونه ايښي ) ته ( د هر عيب نه ) پاک يې ، پس ته مونږه د اُور د عذاب نه اوساته .

## د آيت شانِ نزول

ددې آيت په شانِ نزول کې علامه ابن حبان په خپل صحيح او علامه ابن عساکر په خپل تاريخ کې نقل کړي چې حضرت عطاء بن ابي رباح ﷫ حضرت عائشې رضی الله عنها ته ورغې او ورته وې ويل :

---

(۱) آل عمران آيت ۱۹۰ ، ۱۹۱ .

تا چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم په حالاتو کې کوم شی زیات عجیبه لیدلې وي هغه راته بیان کړه. حضرت عائشې رضی الله عنها ورته وویل:

تاسو د هغوی د کوم شان باره کې پوښتنه کوئ؟ ځکه د هغوی خو هر یو شان عجیبه وُ، البته زه به درته یوه واقعه بیان کړم، هغه دا چې یو ځل رسول الله ﷺ زما خواته تشریف راوړو، بیا یې راته وفرمایل: اجازت راکړه چې د خپل پروردګار عبادت وکړم، د بسترې نه پاڅیده، اودس یې وکړو، بیا د لمونځ د پاره اودریده، او په ولاړه یې دومره اُوژړل چې اُوښکې مبارکې یې په سینه را اُوبهیدې، بیا یې رکوع وکړه په هغې کې یې هم اوژړل، چې سجده یې وکړه نو په هغې کې یې هم همدغه شان اُوژړل، چې سَر یې راپورته کړو نو همداسې مسلسل یې ژړل تر دې پورې چې صبا شو.

حضرت بلال رضی الله عنه راغلو او رسول الله ﷺ ته یې د لمونځ اِطلاع ورکړه. حضرت بلال رضی الله عنه وایي چې ما عرض وکړو: تاسو ولې دومره ژاړئ؟ الله تعالی خو ستاسو وړاندیني او روستني ټول لغزشونه معاف کړي. هغوی ﷺ راته وفرمایل:

آیا زه شکر گزار بنده جوړ نه شم؟ او په شکریه کې ژړا او فریاد اونه کړم؟ حالانکه الله تعالی نن شپه په ما باندې دا آیتِ مبارکه نازل کړی:

﴿إِنَّ فِي خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ وَاخْتِلَافِ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ لَآيَاتٍ لِّأُولِي الْأَلْبَابِ ....﴾ (۱)

بیا یې وفرمایل: وَيْلٌ لِّمَنْ قَرَأَهَا وَلَمْ يَتَفَكَّرْ فِيهَا. لویه تباهي (هلاکت) دی هغه چالره چې دا آیتونه یې اولوست، او په دې کې یې غور اونه کړو. (۲)

(۱) آل عمران آیت ۱۹۰ و ۱۹۱.

(۲) معارف القرآن سورة آل عمران آيت ۱۹۰، وهكذا في نزهة الناظرين في الأخبار والآثار المروية عن الأنبياء والصالحين ص ۶۰۲. علامه قرطبي رحمه الله د دې آیت شانِ نزول داسې بیان کړی: لَمَّا نَزَلَتْ هٰذِهِ الْآيَةُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَامَ يُصَلِّي. فَأَتَاهُ بِلَالٌ يُؤْذِنُهُ بِالصَّلٰوةِ. فَرَآهُ يَبْكِي فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ! أَتَبْكِي وَقَدْ غَفَرَ اللهُ لَكَ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِكَ وَمَا تَأَخَّرَ. فَقَالَ: يَا بِلَالُ! أَفَلَا أَكُونُ عَبْدًا شَكُورًا. وَلَقَدْ أَنْزَلَ اللهُ عَلَيَّ اللَّيْلَةَ آيَةً "إِنَّ فِي خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ وَاخْتِلَافِ اللَّيْلِ..." ثُمَّ قَالَ: وَيْلٌ لِمَنْ قَرَأَهَا وَلَمْ يَتَفَكَّرْ فِيهَا. اخرجه ابن حبان ۶۲۰ من حديث عائشة، وقال الأرناؤط: اسناده قوي على شرط مسلم، تفسير قرطبي ج۴ ص ۳۰۰ سورة آل عمران آيت ۱۹۰.

**فايده** : په دې آيت الله ﷻ د عقلمندو نښه دا هم اوخوده چې " وَيَتَفَكَّرُونَ فِي خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ " دوی د آسمانونو او زمکې په پيدا وښت کې فکر کوي.

بل ځای همدا تفکّر کول صفت د متقينو خودلې شوی، الله تعالی فرمايي :

﴿وَفِي الْأَرْضِ اٰيَاتٌ لِّلْمُوقِنِينَ﴾ . (١)

ترجمه : او په زمکه کې د يقين کوونکو دپاره ډيرې نخې دي.

تفسير مظهري واله وايي چې د مُوْقِنِيْن نه مراد همدغه متقيان دي.

## په کائناتو کې د الله ﷻ د قدرت نخې

په کائناتو کې چې د الله ﷻ د قدرت او وحدانيت کومې نخې دي هغه خو ډيرې زياتې دي هغه ټولې راجمع کول خو د هيچا د وَس خبره نه ده، البته زه به درته يو څو غټې نخې اجمالي بيان کړم.

که چيرته انسان سوچ وکړي نو په زمکه کې دا مختلف قِسمه فصلونه، ميوې، اُونې.

بيا د هر يو رنګ جدا، بُوی جدا، خاصيت جدا او اَثر جدا.

بيا په دې زمکه دا نهرونه، کوهيان، چينې، غرونه، غارونه او زر (١٠٠٠) قسمه د زمکې، د هوا، او اُوبو ځانله ځانله مخلوقات (٢).

بيا په دې کې د هر يو ځانله ځانله قِسمونه، ځانله ځانله حالات، خوراک او فوايد.

بيا په مخ د زمکه د مختلفو قبيلو او مختلفو علاقو انسانان چې د هر يو رنګ د بل نه جدا، ژبه يې جدا، اخلاق يې جدا، او عادات يې جدا.

بيا دا وسيع او اُوچت آسمانونه کوم چې بغير د ستنو ولاړ دي.

(١) الذاريات آيت ٢٠، ٢١.

(٢) قَالَ عُمَرُ ﷺ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ: إِنَّ اللهَ خَلَقَ أَلْفَ أُمَّةٍ سِتَّ مِائَةٍ مِنْهَا فِي الْبَحْرِ، وَأَرْبَعَ مِائَةٍ فِي الْبَرِّ. اخرجه البيهقي في شعب الايمان، مشكوة شريف ص ٣٧٢، نزهة الناظرين في الأخبار والآثار المروية عن الأنبياء والصالحين ص ٦١٥

بیا په دې کې دا عظیم نمر چې د دې غټ والې د زمکې نه یو سل او شپیته (۱۶۰) چنده زیات دی.

بیا په دې کې سپوږمۍ او بې شماره ستوري چې وړو کې ستوري په کې د زمکې نه یو په اته (۸) چنده غټ دی.

بیا د نمر سپوږمۍ او ستورو دا محکم نظام چې د زرګونو کلونو نه راپه دېخوا په ټاکلي وخت سره روان دي، نه خرابیږي، نه ...یږي، او نه یې د څه مرمّت کولو ته ضرورت شته، بلکه یو سیکنډ هم مخکې روستو کیږي نه.

بیا د زمکې او آسمان په مینځ کې دا چلیدونکې هواګانې، بارانونه، او ددې دا مخصوص نظام. بیا د زمکې په خیټه کې دا مختلف قسمه معدنیات.

نو که چیرته انسان په دې کې غور او فکر وکړي نو په هر یو شي کې به د الله ﷻ د قدرت او حکمت د ومره نخې او ګوري چې د هغې شمیرل به مشکل شي، او دا به د الله تعالی د معرفت سبب وګرځي کوم چې مستقل عبادت دی. ځکه خو یو شاعر وایي:

برګِ درختان سبز در نظرِ هوشیار * هر ورقے دفتریست معرفتِ کردګار

د هوښیار سړي په نظر کې د شنو ونو هره پاڼه د الله ﷻ د معرفت یو عظیم دفتر دی.

(چې هره پاڼه د الله ﷻ په وجود، او دهغه په قدرتونو دلالت کوي)

**دویم آیت**: الله ﷻ فرمایي:

﴿ إِنَّ فِي خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ وَاخْتِلَافِ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ وَالْفُلْكِ الَّتِيْ تَجْرِيْ فِي الْبَحْرِ بِمَا يَنْفَعُ النَّاسَ وَمَآ أَنْزَلَ اللهُ مِنَ السَّمَآءِ مِنْ مَّاءٍ فَأَحْيَا بِهِ الْأَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا وَبَثَّ فِيْهَا مِنْ كُلِّ دَآبَّةٍ وَّتَصْرِيْفِ الرِّيٰحِ وَالسَّحَابِ الْمُسَخَّرِ بَيْنَ السَّمَآءِ وَالْأَرْضِ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يَّعْقِلُوْنَ ﴾. (۱)

ترجمه: بیشکه د آسمانونو او زمکې په پیدا کولو کې، او په تللو راتلو (یا لوییدو او وړو کې کیدو) د شپې او ورځې کې، او په هغه کشتۍ کې چې په دریاب کې روانه وي د خلقو د فایدې شیان وړي راوړي، او په هغه اُوبو کې چې الله تعالی د آسمان نه نازلې کړي،

(۱) البقرة آیت ۱۶۴.

بيا يې په دې اُوبو سره مړه (يعنى اُوچه) زمکه ژوندى کړه، او په دې زمکه کې يې هر قسمه ځناور خواره کړه، او د هواګانو په ګرځولو کې، او په هغه وريځو کې چې د آسمان او زمکې په مينځ کې زوړندې ولاړې دي (يعنى د الله ﷻ د حکم تابعدارې دي) په دې ټولو شيانو کې د عقل مندو خلقو د پاره نخې (د قدرتِ کامله او دلائل د توحيد) دي.

**فائده** : په دې آيت کريمه کې هم انسان ته په ګير چاپيره کائناتو کې د غور و فکر دعوت ورکړې شوى، او د الله ﷻ په وحدانيت، د هغه په قدرتِ کامله کيدو باندې دا سې دلايل بيان شوي چې په دې کې فکر کولو سره انسان ته دا په خپله واضحه کيږي چې د دې ټولو نظام خالق او چلوونکي داسې عليم و خبير او حکيم ذات دى چې د هغه هيڅ مِثل نشته.

دغه وجه ده چې قرآن کريم موقع په موقع انسان ته په مخلوقاتو کې د غور و فکر کولو دعوت ورکړى، ځکه په مخلوقاتو کې په تفکّر او تدبّر کولو سره د انسان ايمان کامل کيږي او په زړه کې يې د الله ﷻ عظمت پيدا کيږي.

**دريم آيت** : الله رب العزت فرمايي :

﴿ أَوَلَمْ يَنظُرُوا فِي مَلَكُوتِ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَمَا خَلَقَ اللَّهُ مِن شَيْءٍ وَأَنْ عَسَىٰ أَن يَكُونَ قَدِ اقْتَرَبَ أَجَلُهُمْ فَبِأَيِّ حَدِيثٍ بَعْدَهُ يُؤْمِنُونَ ﴾ . (۱)

ترجمه : آيا دوى نظر ( غور و فکر ) اونه کړو په حکومت ( بادشاهى او انتظام ) د آسمانونو او زمکې کې، او څه چې الله ﷻ پيدا کړي دي د هر څيز نه. او ( ديته يې هم فکر نه دې کړى ) دا چې شايد د دوى نيټه رانژدې شوې وي، (پس کله چې د قرآن کريم غوندې اَثر لرونکي کلام سره د دوى فکر نه راپورته کيږي ) نو د قرآن نه پس به دوى په بله کومه خبره ايمان راوړي ؟

**فايده** : په دې آيت کې هم انسان ته د الله ﷻ په مخلوقاتو کې د فکر کولو بلنه ورکړې شوى چې که د معمولي عقل خاوند هم د الله ﷻ دې عجيبه کاريګرى ته نظر وکړي نو په هر

---

(۱) الاعراف آيت ۱۸۵ .

شي کې به ورته د الله ﷻ د قدرتِ کامله کیدو ننداره ښکاره شي ، او که د ژوَر نظر خاوند په دې مخلوقاتو کې سوچ و فکر وکړي نو په ذره ذره کې به ورته د الله ﷻ قدرتونه په نظر راشي ، او د جهان ذره ذره به درب العزت ثنا خوان ، تسبیح ویونکې او حمد ویونکې او مومې چې په دې سره د انسان د ایمان ډوخوالې ، او په زړه کې د الله ﷻ د عظمت یو فطري تقاضا جوړه شي . (۱)

لکه یو شاعر وایي :

هر گیاهے که از زمین روید * وحده لاشریک له گوید

هره گیاه چې د زمکې نه راټوکیږي نو هغه "وحده لاشریک له " وایي .

---

(۱) معارف القرآن سورة آل عمران آیت ۱۹۱ . ددینه علاوه هم نور دیر آیتونه شته چې په هغې کې انسان ته د الله ﷻ په مخلوقاتو کې د غور او فکر کولو دعوت ورکړې شوی لکه : ﴿وَمِنْ آيَاتِهِ خَلْقُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَمَا بَثَّ فِيهِمَا مِن دَابَّةٍ وَهُوَ عَلَىٰ جَمْعِهِمْ إِذَا يَشَاءُ قَدِيرٌ . سورة الشورى آیت ۲۹ .﴾ . ﴿أَفَلَمْ يَنظُرُوا إِلَى السَّمَاءِ فَوْقَهُمْ كَيْفَ بَنَيْنَاهَا وَزَيَّنَّاهَا وَمَا لَهَا مِن فُرُوجٍ . سورة ق آیت ۶﴾ . ﴿أَفَلَا يَنظُرُونَ إِلَى الْإِبِلِ كَيْفَ خُلِقَتْ . وَإِلَى السَّمَاءِ كَيْفَ رُفِعَتْ . وَإِلَى الْجِبَالِ كَيْفَ نُصِبَتْ . وَإِلَى الْأَرْضِ كَيْفَ سُطِحَتْ . الغاشية آیت ۱۷ تر ۱۹﴾ . ﴿أَأَنتُمْ أَشَدُّ خَلْقًا أَمِ السَّمَاءُ بَنَاهَا . رَفَعَ سَمْكَهَا فَسَوَّاهَا . وَأَغْطَشَ لَيْلَهَا وَأَخْرَجَ ضُحَاهَا . وَالْأَرْضَ بَعْدَ ذَٰلِكَ دَحَاهَا . أَخْرَجَ مِنْهَا مَاءَهَا وَمَرْعَاهَا . وَالْجِبَالَ أَرْسَاهَا . مَتَاعًا لَّكُمْ وَلِأَنْعَامِكُمْ . النازعات آیت ۲۷ تر ۳۳﴾ . ﴿أَلَمْ تَرَ أَنَّ اللَّهَ أَنزَلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً فَأَخْرَجْنَا بِهِ ثَمَرَاتٍ مُّخْتَلِفًا أَلْوَانُهَا وَمِنَ الْجِبَالِ جُدَدٌ بِيضٌ وَحُمْرٌ مُّخْتَلِفٌ أَلْوَانُهَا وَغَرَابِيبُ سُودٌ . وَمِنَ النَّاسِ وَالدَّوَابِّ وَالْأَنْعَامِ مُخْتَلِفٌ أَلْوَانُهُ كَذَٰلِكَ إِنَّمَا يَخْشَى اللَّهَ مِنْ عِبَادِهِ الْعُلَمَاءُ إِنَّ اللَّهَ عَزِيزٌ غَفُورٌ . سورة فاطر آیت ۲۷ ، ۲۸﴾ . ﴿يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِن كُنتُمْ فِي رَيْبٍ مِّنَ الْبَعْثِ فَإِنَّا خَلَقْنَاكُم مِّن تُرَابٍ ثُمَّ مِن نُّطْفَةٍ ثُمَّ مِنْ عَلَقَةٍ ثُمَّ مِن مُّضْغَةٍ مُّخَلَّقَةٍ وَغَيْرِ مُخَلَّقَةٍ لِّنُبَيِّنَ لَكُمْ وَنُقِرُّ فِي الْأَرْحَامِ مَا نَشَاءُ إِلَىٰ أَجَلٍ مُّسَمًّى ثُمَّ نُخْرِجُكُمْ طِفْلًا ثُمَّ لِتَبْلُغُوا أَشُدَّكُمْ وَمِنكُم مَّن يُتَوَفَّىٰ وَمِنكُم مَّن يُرَدُّ إِلَىٰ أَرْذَلِ الْعُمُرِ لِكَيْلَا يَعْلَمَ مِن بَعْدِ عِلْمٍ شَيْئًا وَتَرَى الْأَرْضَ هَامِدَةً فَإِذَا أَنزَلْنَا عَلَيْهَا الْمَاءَ اهْتَزَّتْ وَرَبَتْ وَأَنبَتَتْ مِن كُلِّ زَوْجٍ بَهِيجٍ . ذَٰلِكَ بِأَنَّ اللَّهَ هُوَ الْحَقُّ وَأَنَّهُ يُحْيِي الْمَوْتَىٰ وَأَنَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ . سورة الحج آیت ۵ ، ۶﴾ . ﴿مَرَجَ الْبَحْرَيْنِ يَلْتَقِيَانِ . بَيْنَهُمَا بَرْزَخٌ لَّا يَبْغِيَانِ . سورة الرحمن آیت ۱۹ ، ۲۰﴾ . ﴿هَلْ أَتَىٰ عَلَى الْإِنسَانِ حِينٌ مِّنَ الدَّهْرِ لَمْ يَكُن شَيْئًا مَّذْكُورًا . إِنَّا خَلَقْنَا الْإِنسَانَ مِن نُّطْفَةٍ أَمْشَاجٍ نَّبْتَلِيهِ فَجَعَلْنَاهُ سَمِيعًا بَصِيرًا . سورة الدهر آیت ۱ ، ۲﴾ . ددینه علاوه نور هم دیر آیتونه شته چې په دې ټولو کې انسان ته د الله ﷻ په مخلوقاتو کې د تفکر او تدبر کولو دعوت ورکړې شوی .

# په مخلوقاتو کې غور او فکر کول

په قرآن کريم کې د عقلمندو خلقو يوه نښه دا هم خودلې شوې چې: ''وَيَتَفَكَّرُونَ فِي خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ'' دوی د آسمانونو او زمکې په پيدا وښت کې فکر کوي.

**د فکر تعريف**: د فکر لفظي معنی ده غور کول، او د يو شي حقيقت ته د رسيدو کوشش کول.

## د الله ﷻ په ذات کې تفکُر نه دې په کار

خو دا فکر او تدبّر د الله ﷻ په مخلوقاتو کې په کار دی چې په دې سره د الله ﷻ په وحدانيت او قدرت باندې د انسان يقين پوخ شي، او د الله ﷻ عظمت يې په زړه کې پيدا شي. ليکن دا فکر د الله ﷻ په ذات او صفاتو کې نه دې په کار، ځکه د الله ﷻ د ذات او صفاتو معلومول د انسان د عقل نه ډيره لوړه خبره ده.

دغه وجه ده چې که هر څومره د الله ﷻ په ذات او صفاتو کې فکر او سوچ وکړې شي نو نتيجه يې بغير د حيرانتيا نه بل هيڅ نه راڅي.

بل دا چې بعضې وخت ناقِصُ العقل انسان لره د الله ﷻ په ذات او صفاتو کې زيات سوچ او فکر کول د ګمراهۍ سبب جوړيږي، ځکه د دې حقيقت ته رسيدل د انسان د رَسايي او قدرت نه ډيره لرې خبره ده.

په احاديثو مبارکه وُ کې هم د الله ﷻ په ذات کې د فکر کولو نه منع راغلې، حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما فرمايي چې څه خلقو د الله ﷻ په ذات کې فکر کولو نو رسول الله ﷺ ورته وفرمايل:

تَفَكَّرُوْا فِيْ خَلْقِ اللهِ وَلَاتَفَكَّرُوْا فِي اللهِ فَإِنَّكُمْ لَنْ تقدرُوْا قدره . (۱)

تاسو د الله ﷻ په پيدا وښت (مخلوقاتو) کې فکر کوئ، او د الله ﷻ په ذات کې فکر مه کوئ ځکه تاسو د هغه اندازه معلومولو باندې قادِر نه يئ . (۲)

دغه وجه ده چې د الله ﷻ د ذات او صفاتو په مسئله کې لويو لويو ماهرينو فلسفيانو او د معرفت خاوندانو بالاخر دا نصيحت کړی چې:

نه هر جاے مرکب توان داختن * که جاها سپر بايد انداختن . (۳)

په هر ځای کې ځوک آسونه نشي زغلولی، ځکه په ډيرو ځايونو کې د ال غورځول په کار دي.

## په مخلوقاتو کې تفکّر کول عبادت دی

کله چې په دې کائناتو کې د الله ﷻ په قدرتونو او حکمتونو کې سوچ کولې شي نو دا د الله ﷻ د معرفت او پيژندګلو ذريعه ګرځي چې دا هم لوي عبادت دی.

حسن بصري رحمه الله وايي:

تَفَكُّرُ سَاعَةٍ خَيْرٌ مِّنْ قِيَامِ لَيْلَةٍ . (۴)

---

(۱) ذكره الزبيدي في الاتحاف (۱۰/۱۶۲) و (۶/۵۳۶)، نزهة الناظرين في الأخبار والآثار المروية عن الأنبياء والصالحين ص ۶۰۲ .

(۲) قاضي ثناء الله پاني پتي رحمه الله په خپل تفسير کې د څه تحقيق نه پس ليکي: قلت ورد في الحديث تفكّروا في كلّ شيءٍ ولاتفكّروا في ذات الله تعالى فإنّ بين السّماء السّابعة الى كرسيّه سبعة آلاف نُورٍ وهو فوق ذلك . رواه ابوالشيخ في العظمة عن ابن عباس. وعنه بلفظ تفكّروا في الخلق ولاتفكّروا في الخالق فإنكم لاتقدرون قدره . وعن أبي ذر نحوه بلفظ تفكّروا في خلق الله ولاتفكّروا في الله فتهلكوا . وروي ابونعيم في الحلية عن ابن عباس تفكّروا في خلق الله ولاتفكروا في الله ... فهذه الاحاديثُ تدلّ على المنع عن التفكّر في مرتبة الذّات واقتصاره في مراتب الافعال والصّفات والاسماء . تفسير مظهري ج ۲ ص ۱۹۹ سورة آل عمران آيت ۱۹۱ .

(۳) معارف القرآن سورة آل عمران آيت ۱۹۱ .

(۴) تفسير ابن كثير، معارف القرآن سورة آل عمران آيت ۱۹۱، نزهة الناظرين في الأخبار والآثار المروية عن الأنبياء والصالحين ص ۶۰۳ كتاب التفكر .

د قدرت په نخو نخانو کې يو ساعت فکر کول د ټولې شپې د عبادت نه ډير بهتر دی.
او حضرت عمربن عبدالعزيز رحمه الله هم دې غور او فکر ته غوره عبادت ويلې دی. (۱)

# په مخلوقاتو کې د تفکر کولو نور فوايد

حضرت حسن بن عامر وايي: ما د ډيرو صحابه کرامو نه اوريدلي چې ټولو به دا فرمايل:
د ايمان نُور او رڼا تفکر دی.

سفيان بن عيينه رحمه الله وايي: غور او فکر يو نُور دی چې ستا په زړه کې داخليږي. (۲)

حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما فرمايي:

الفكرة تذهب الغفلة وتحدث للقلب الخشية كما يحدث الماء للزرع النبات. (۳)

په مخلوقاتو کې فکر کول غفلت ختموي، او په زړه کې (داسې) خشيت (او يَره) پيدا کوي لکه څرنګې چې اُوبه فصل راز رغونوي.

وهب بن منبه رحمه الله وايي: کله چې څوک په مخلوقاتو کې ډير ډير غور او فکر کوي نو هغه به په حقيقت پوهه شي، او څوک چې په حقيقت پوهه شو نو هغه ته صحيح علم حاصل شو، او چا ته چې صحيح علم حاصل شو هغه به خامخا په دې عمل هم کوي. (۴)

بشر حافي رحمه الله وايي:

لَوْ تَفَكَّرَ النَّاسُ فِيْ عَظَمَةِ اللهِ لَمَا عَصَوْهُ. (۵)

که چيرته خلقو د الله ﷻ په لويي کې تفکر کولې نو دده نافرماني به يې نه وه کړې.

---

(۱) ابن كثير، معارف القرآن سورة آل عمران آيت ۱۹۱.

(۲) معارف القرآن سورة آل عمران آيت ۱۹۱.

(۳) تفسير ابن كثير، معارف القرآن سورة آل عمران آيت ۱۹۱، نزهة الناظرين في الأخبار والآثار المروية عن الأنبياء والصالحين ص ۶۰۳ كتاب التفكر.

(۴) تفسير ابن كثير، معارف القرآن سورة آل عمران آيت ۱۹۱.

(۵) نزهة الناظرين في الأخبار والآثار المروية عن الأنبياء والصالحين ص ۶۰۳ كتاب التفكر، معارف القرآن سورة آل عمران آيت ۱۹۱.

# د عالم ذره ذره د الله ﷻ په وجود او قدرتونو دلالت کوي

محترمو ! ددې عالَم ذره ذره د الله ﷻ د وجود ، د هغه د قدرتونو او معرفت يو عظيم مَظهر او يو لوی باب دی ، ځکه که چيرته مونږ د دُنيا يو مصنوع او گورو نو زمونږ ذهن خامخا د هغې صانِع طرفته ځي ، داسې کيدې نشي چې يو شی په خپله باندې اتوميټک بغير د صانِع نه جوړ شي . لکه مولانا روم وايي :

هيچ چيزے خود بخود چيزے نه شد * هيچ آهن خود بخود تيغے نه شد

هيڅ شی په خپله نه موجوديږي ، او د هيڅ اُوسپنې نه پخپله تُوره نه جوړيږي ( بلکه ددې د پاره د لوهار ضرورت دی ) .

نو که چيرته يو آبادي بغير د گلکار نه نشي جوړيدې ، يو دُکان بغير د دُکاندار نه نشي چليدی ، يو موټر بغير د ډرائيور نه نشي چليدی نو بيا دا دومره وسيع کائنات بغير د صانِع او جوړوونکي نه څنگه پيدا شو ؟ بيا د نمر او سپوږمۍ ، د ورځې او شپې ، اُوريځ او ژمي دا محکم او منظَّم نظام بغير د چلوونکي نه څنگه چليږي ؟

بلکه ددې د پاره خامخا يو خالِق ، قادِر او حکيم ذات په کار دی چې ددې نگراني کوي او هغه ذات الله ﷻ دی .

ځکه خو يو سالِک وايي :

اَلْبَعْرَةُ تَدُلُّ عَلَى الْبَعِيْرِ ، وَآثَارُ الْأَقْدَامِ عَلَى الْمَسِيْرِ فَالسَّمَآءُ ذَاتُ أَبْرَاجٍ وَالْأَرْضُ ذَاتُ فِجَاجٍ كَيْفَ لَاتَدُلَّانِ عَلَى اللَّطِيْفِ الْخَبِيْرِ .

کله چې يوه پچه په دې باندې دلالت کوي چې په دې لاره باندې اُوښ تللی ، او د قدمونو نخې په دې باندې دلالت کوي چې په دې لاره څوک تلونکې تللی نو بيا دا د برجونو واله آسمانونه او دا د فراخه اُوږدو لارو واله زمکه به څنگه په لطيف او خبير ذات باندې دلالت نه کوي ؟ ( بلکه خامخا به يې کوي ) .

## د الله ﷻ په وجود او د هغه په قدرت باندې يو څو دلايل

که انسان سوچ وکړي نو په مخلوقاتو کې قدم په قدم داسې دلائل موجود دي چې هغه د الله ﷻ په وجود ، معرفت ، وحدانيت او د هغه په عظيمو قدرتونو باندې دلالت کوي . د هغه وجود د هيڅ دليل محتاج نه دی بلکه د هر انسان په زړه کې فطرتًا دا خبره شته چې هغه د الله ﷻ په وجود او قدرتونو باندې پخپله اقرار وکړي .

خو بيا هم ددې په باره کې درته د ائمه اربعهؒ يو څو دلائل ذکر کوم :

## د امام ابوحنيفه رحمه الله او يو دَهري مناظره

د اموي خليفه ''مهدي'' په دربار کې يو دهري دا اعلان وکړو چې زه د الله ﷻ وجود نه منم ، دا جهان په خپله پيدا شوی ، او که څوک د ماسره ددې په باره کې بحث او مناظره کول غواړي نو زه دادې حاضريم .

امام ابوحنيفه رحمه الله په دې وخت کې يو لوي عالِمؒ ، مهدي دده پسې يو کس ور وليږلو چې زما دربار ته ددې دهري د چپ کولو او مناظرې د پاره راشه ، امام صاحب دې کس ته وويل : چې ته ځه ، زه درپسې درځم ، اَستازې دربار ته واپس راغلو ، او دوی ته يې د امام صاحب د راتلو خبر ورکړو ، خلقو ټولو انتظار کولو ، چونکه په بغداد کې د دريای دَجله په يو طرف باندې شاهي محلات وو ، او بل طرف ته ددې ښار آبادي وه ، امام صاحب په دې ښار کې اوسيده ، ده دربار ته په تللو کې قصدًا تاخير وکړو ، په دربار کې ټولو خلقو انتظار کولو ، او دَهري هم په خوشحالۍ سره د خپلې کاميابۍ دعوی کوله ( چې ما درته نه ويل چې زه په حقه يم ، او دا جهان په خپله پيدا شوی ، ددې څوک خالِق نشته ) .

تر دې چې امام صاحب د شپې ناوخته دربار ته راغلو ، بادشاه او نورو حاضرينو يې ډير تعظيم وکړو ، خليفه مهدي ورته پوښتنه وکړه : امام صاحب ! څنګه ناوخته راغلې ؟ ده ورته وويل : د ما سره خو عجيبه واقعه اوشوه ، هغه دا چې : کله زه دربار ته د راتلو په غرض راروان شوم ، او د دریاب غاړې ته راورسيدم نو کشتۍ نه وه ، زه حيران شوم چې اوس به په کومه طريقه پورې وځم ، په دې کې ناڅاپه د دریاب نه تختې په خپله راووتې ، هغه په ځپل

مینځ کې سره یو ځای شوی ، میخونه پرې ټک وهلې شو ، کشتۍ ترې جوړه شوه ، او زما طرفته رارو انه شوه ، د ماسره نزدې اودریده ، ګویا دا ما خیجول غواړي ، زه په کې کیناستم ، دا کشتۍ په خپله رارو انه شوه ، ددې محل سره اودریده ، زه ترینه راکوز شوم ، بیا هغه کشتۍ غائبه شوه . زه اوس په دې سوچ کې پروت یم ، چې دا څه قصه وه ؟ نو ددې د وجې ناوخته راورسیدم .

دهري وویل : امام صاحب ! دا خو تا صریح دروغ وویل ، او د ماشومانو خبرې دې وکړې ، دا څنګه کیدې شي چې تختې دې سره پخپله یو ځای شي ، په دې دې میخونه پخپله ټک وهلې شي ، کشتۍ دې ترې جوړه شي ، بیا دې په خپله رارو انه شي او تا دې د دریار سره کوز کړي ، آخر ددې دپاره څوک جوړوونکې او چلوونکې په کار دی ، ځکه بغیر د جوړوونکي او چلوونکي نه دا د سره ممکن نه ده .

امام صاحب ورته جواب ورکړو : چې کله یوه وړه کشتۍ بغیر د جوړوونکي نه نشي جوړیدی ، او بغیر د چلوونکي نه نشي چلیدی ، نو بیا دا دومره لوي کائنات چې په دې کې بې شماره مخلوقات دي ، نمر دی ، سپوږمۍ ده ، ستوري دي ، انسانان دي ، پیریان دي ، ځناور دي ، آسمانونه دي او زمکه ده ، آیا دا ټول په خپله پیدا شو ؟ آیا دا بغیر د یو چلوونکي نه چلیدې شي ؟ هیڅکله نه ، بلکه ددې د پاره خامخا یو خالِق او ددې نظام چلوونکې شته او هغه د الله ﷻ ذات دی . نو د ماشومانو خبرې ته کوی او که زه ؟

دې اوریدو سره دَهري مغلوبه (پَړ) شو ، او مناظره هم ختمه شوه .

## د امام شافعي رحمه الله د یو زندیق سره خبرې

یو زندیق د امام شافعي رحمه الله سره مخامخ شو ، ورته وې ویل : اې شافعي ! د تاسره د الله ﷻ په وجود او قدرت باندې څه دلیل دی ؟ ده ورته وویل : د تُوت پاڼه . زندیق ورته وویل : دا څنګه ؟ ده ورته وویل :

ګوره ، ددې پاڼې رنګ یو دی ، خوند یې یو دی او بُوی یې یو دی ، خو که چیرته دا پاڼه د وریښمو چینجې او خوري نو پاسته وریښم ورنه جوړیږي ، که د شهد و مچۍ یې او خوري نو

صفا شهد ورنه جوړيږي، که هوسۍ يې او خوري نو خُوشبودار مشک ورنه جوړيږي او که چيلۍ يې او خوري نو بدبوداري پچې ورنه جوړيږي.

اوس په حيواناتو کې دننه دا صلاحيتونه پيدا کول خو ددې پاڼې کمال نه دی، ځکه پاڼه خو صرف يو کار کولې شي. معلومه شوه چې ددينه پورته يو خالِقُ الکائنات شته چې هغه د رب العالمين ذات دی. نو هغه زنديق حيران شو. (۱)

## د امام احمد بن حنبل رحمه الله نه پوښتنه

د امام احمد بن حنبل رحمه الله نه چا پوښتنه وکړه: تا ته څنګه معلومه شوه چې الله ﷻ موجود دی، دا عالَم يې پيدا کړی او د لوي قدرت مالک دی؟ ده ورته وويل: ما په دُنيا کې د سپينو زرو يو محل اوکته چې په هغې کې هيڅ قِسمه سوري او دروازه نشته، بيا په هغې کې دننه د سرو زرو محل دی، په هغې کې هم هيڅ قِسمه سوري نشته، دې دواړو محلونو ته نه څوک دننه ورتلې شي، او نه د دننه نه څوک بهر راتلې شي، ما اوکته چې يو څو ورځې پس نا څاپه دا محل اُوچاؤد، او ددينه يو ژوندې حيوان راووت، او د تجربه کار حيواناتو په شان کار کول يې شروع کړه، زه پوهه شوم چې ضرور داسې يو ذات شته چې هغه په دې محل کې ددننه دا حيوان جوړ کړو، دده تربيت يې وکړو، او ده ته يې تعليم ورکړو او هغه ذات ربُّ العالمين دی.

خلقو ورته وويل: حضرت! دا محل چيرته دی؟ ده ورته وويل: دا هګۍ (اندا) ده، چې دا د سپينو زرو محل دی، دننه زيړ په کې د سرو زرو محل دی، شل (۲۰) ورځې پس چې کله دا هګۍ ماته شوه نو چرګوړې ورنه راووت، فوراً يې د زړو چرګانو په شان خوراک

---

(۱) التقى زنديقٌ بالامام الشافعي يومًا فقال له: ياشافعيُّ! ما الدّليلُ على وجود الله؟ فقال الشافعي: ورقةُ التّوت. فقال الزنديق: كيف ذلک؟ قال الشافعي: انظر إليها. أليس لونُها واحدًا؟ وطعمها واحدًا؟ وريحها واحدًا؟ قال الزنديقُ: بلى. فقال الشافعي: تأكلها دودة القز فتُخرج حريرًا ناعمًا. وتأكلها النحلة فتخرج عسلًا صافيًا. وتأكلها الظباء فتخرج مسكًا طيبًا. وتأكلها الحيوانات فتخرج بعرًا منتنًا. مَنِ الّذِيْ أوجد هذه المصانع في تلک الحيوانات؟ إله الله خالقُ البريّات: ﴿فَبُهِتَ الَّذِيْ كَفَرَ وَاللهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظَّالِمِيْنَ. البقرة آيت ۲۵۸﴾. الطريق الى الجنة ص ۲۵۵.

شروع کړو ، ماته پته ولګیده چې په دې بَنده هګۍ کې دې چرګوړي ته تعلیم ورکول صرف د الله ﷻ کار دی . (بل دا چې چرګه په هګو باندې د ناستې پابند کول ، په هګۍ کې دننه د بچي جوړول ، هغه ته خوراک ورکول ، او بیا چرګې ته د بچي جوړیدو وخت معلومول چې په هماغه وخت هګۍ ماته کړي کله چې بچې جوړ شوې وي ، دا ټول د ربُ العالمین الهامي خبرې دي چې ددې خالِق الله ﷻ دی .

## د امام مالک رحمه الله نه پوښتنه

د امام مالک رحمه الله نه چا د الله ﷻ د ثبوت او قدرتونو په باره کې پوښتنه وکړه . ده ورته وویل : د هر انسان په شکل ، عُمر ، اَخلاقو او آواز کې فرق کول ، او بیا د دوی د ژوند اسباب او ضروریات برابرول صرف او صرف د خالقِ کائنات کار دی ، دا د بل هیچا د وَس خبره نه ده .

بل دا چې که سړې سوچ وکړي نو په غونډه دُنیا کې په یوه ګنهټه کې تقریبًا شپږویشت زره ( ۲٦۰۰۰ ) کسان پیدا کیږي ، او اتلس زره ( ۱۸۰۰۰ ) کسان وفات کیږي ،ګویا په شوا روز کې په ټوله دُنیا کې شپږنیم لکه ( ٦۵۰۰۰۰ ) خلق پیدا کیږي ، ددې نه علاوه نور بې شماره مخلوقات دي ، دې ټولو ته رزق ورکول او د ژوند اسباب ورته برابرول ، بیا ددې دومره ډیرو انسانانو په شکلونو ، رنګونو او آوازونو کې فرق کول دا صرف د الله رب العزت کار دی .

## د هر شي په پیدا کولو کې خامخا څه حِکمت شته .

الله ﷻ حکیم ذات دی ، په مخ د زمکه یې چې څومره شیان پیدا کړي په دې هر شي کې د الله ﷻ ډیر حکمتونه پټ دي اګر چې په ظاهره باندې مونږ ته په دې کې هیڅ حکمت او مصلحت په نظر نه راځي خو په حقیقت کې په دې کې ډیرې فائدې او حکمتونه شته ، لکه په دې زهریله شیانو ( مار ، لړم ، مچۍ وغیره ) کې یوه فائده دا هم ده چې په هوا کې کوم زهریله اثرات وي کوم چې د انسان د وجود د پاره نقصاني وي هغه دا زهریله شیان راکاږي چې په دې سره هوا صفا شي .

# د ګونګټ په پيدا کولو کښې حکمت

امام قزويني رحمه الله وايي چې يو سړي ګونګټ وليد (کوم ته چې په عربۍ کښې خنفساء وايي)، ده وويل:

ما ذا يريد الله من خلق هذه؟ لاحسن شکلها ولاطيب رائحتها.

الله ﷻ دا ولې پيدا کول؟ نه خو يې څه ښکلې شکل دی، او نه يې څه خوشبويي شته.

نو الله ﷻ يې په وجود کښې يوه داسې دانه راوخيجوله چې ټول طبيبان د هغې د علاج نه ستړي شو، علاج يې ورله نه کولو. آخر دا چې داسړی مايوسه شو، او په کور کښې پروت ؤ، يوه ورځ يې بهر په کوڅه کښې د يو حکيم آواز واوريد، ده خلقو ته وويل چې ورشئ، دا حکيم ماله راولئ چې زما علاج وکړي، خلقو ورته وويل: لوي لوي حکيمان ستا د علاج نه ستړي شو، دې به ستا څه علاج وکړي، خو ده ورته وويل: ورشئ خامخا يې راولي.

کله چې هغه حکيم راغی، او هغه دا زخم اوکته نو وې ويل: لاړ شئ، ما له يو ګونګټ راپيدا کړئ زما په کار دی. ناستو خلقو چې داخبره واوريده نو وې خندل، او دا يې هسې عبث اوګڼله، دې مريض چې څنګه د ګونګټ نوم واوريده نو هغه مخکينۍ خبره ورته رايا ده شوه کومه چې ده کړې وه.

دې مريض ناستو خلکو ته وويل: دا حکيم چې څه وايي هغه اومنئ، او لاړ شئ ګونګټ ورله راپيدا کړئ، کله يې چې ورله ګونګټ راوړو، حکيم هغه مړ کړو، بيا يې اوسيزلو، او هغه ايره يې په دې دانه باندې واچوله، څه لږ وخت پس دده دا دانه او زخم ښه شو.

بيا دې مريض خلقو ته وويل چې ما مخکښې يوه خبره کړې وه چې د ګونګټ په پيدا کولو کښې څه حکمت دی؟ دا الله ﷻ ولې پيدا کول؟

نو الله ﷻ د هغې سزا ماته راکړه، او دا يې راته اوخوده چې کوم شی زما په نزد بالکل بې کاره او بې فائدې معلوميده هماغه زما د زخم د پاره بهترينه دَوا وه.(۱)

---

(۱) نزهة الناظرين فى الأخبار والآثار المروية عن الأنبياء والصالحين ص ۶۱۵ كتاب الفكر.

# دا ټول کائنات د انسان د فائدې د پاره پيدا دي

په ټولو مخلوقاتو کې الله ﷻ انسان په بهترين شکل و صورت پيدا کړی ، لکه الله تعالى فرمايي :

﴿ لَقَدْ خَلَقْنَا الْإِنسَانَ فِي أَحْسَنِ تَقْوِيمٍ ﴾ . (۱)

ترجمه : بيشکه مونږ انسان په ډير ښايسته شکل پيدا کړی .

بيا يې انسان ته په ټولو مخلوقاتو باندې عزت او شرافت ورکړی ، لکه الله ﷻ فرمايي :

﴿ وَلَقَدْ كَرَّمْنَا بَنِي آدَمَ وَحَمَلْنَاهُمْ فِي الْبَرِّ وَالْبَحْرِ وَرَزَقْنَاهُم مِّنَ الطَّيِّبَاتِ وَفَضَّلْنَاهُمْ عَلَىٰ كَثِيرٍ مِّمَّنْ خَلَقْنَا تَفْضِيلًا ﴾ . (۲)

ترجمه : او بيشکه مونږ د (حضرت) آدم (عليه السلام) اولاد ته عزت ورکړو ، او مونږ دوی په اُوچه او سمندر کې سواره کړل (په څاروو او کِشتو باندې) ، او مونږ دوی ته د پاکيزه څيزونو نه روزي ورکړه ، او مونږ دوی ته فضيلت ورکړو په ډيرو هغه مخلوقاتو باندې کوم چې مونږ پيدا کړي دي ، په ښکار فضيلت ورکولو سره .

او بيا الله رب العزت دا ټول کائنات د انسان دفائدې دپاره پيدا کړل، لکه الله ﷻ فرمايي :

﴿ أَلَمْ تَرَوْا أَنَّ اللَّهَ سَخَّرَ لَكُم مَّا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ وَأَسْبَغَ عَلَيْكُمْ نِعَمَهُ ظَاهِرَةً وَبَاطِنَةً ... ﴾ . (۳)

ترجمه : آيا تاسو اونه ليده چې الله تعالى ستاسو د پاره په کار اُولږول (يعنی ستاسو په خدمت باندې يې ولږول ټول هر) څه چې په آسمانونو کې دي او څه چې په زمکه کې دي ، او الله تعالى په تاسو باندې خپل ښکاره او پټ نعمتونه پوره کړل .

---

(۱) التين آيت ۴ .

(۲) سورة بني اسرائيل آيت ۷۰ .

(۳) سورة لقمان آيت ۲۰ .

**د انسان مقصدِ حيات**: کله چې دا ثابته شوه چې دا دومره لوي نظام الله ﷻ د انسان د فائدې د پاره پيدا کړی، نو اوس سوال دادی چې انسان د څه مقصد د پاره پيدا دی ؟

نو ددې جواب قرآن کريم په خپله بيان کړی، الله تعالى فرمايي :

﴿وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالْإِنسَ إِلَّا لِيَعْبُدُونِ﴾ .(۱)

ترجمه : او ما نه دي پيدا کړي پيريان او انسانان مګر صرف ددې د پاره چې دوی زما عبادت وکړي .

نو د انسان مقصدِ حيات هم معلوم شو چې هغه د الله ﷻ عبادت کول دي .

بيا الله تبارک وتعالى دداسې عبادت ګزار او نيکو اعمالو کوونکو بندګانو سره په دُنيا او آخرت کې د حياتِ طيّبه ( اطمينان او سکون واله ژوند ) وعده هم کړې، لکه الله تعالى فرمايي :

﴿مَنْ عَمِلَ صَالِحًا مِّن ذَكَرٍ أَوْ أُنثَىٰ وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَلَنُحْيِيَنَّهُ حَيَاةً طَيِّبَةً وَلَنَجْزِيَنَّهُمْ أَجْرَهُم بِأَحْسَنِ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ﴾ .(۲)

ترجمه : چا چې نيک عمل وکړو، که هغه سړی وي او که ښځه، خو چې هغه مومن وي، نو مونږ به خامخا ده ته ( په دُنيا کې ) پاکيزه ژوند ورکړو، او خامخا به مونږ دوی ته ( په آخرت کې ) د هغه نيکو کارونو په عوض کې اجر ورکړو کوم چې به دوی ( په دُنيا کې ) کول

## د انسان په بدن کې د الله ﷻ د قدرت نخې

په ټولو مخلوقاتو کې الله ﷻ انسان په ډير ښائسته، عجيبه او حيرانوونکي شکل و صورت باندې پيدا کړی . که چيرته انسان په دې خپل پنځه يا شپږ فټه بدن کې سوچ وکړي نو ده ته به په دې کې هم د الله ﷻ د کامل قدرت عجيبه نخې ښکاره شي، او په هر اندام کې به د الله ﷻ د حکمت دفترونه مومي، څکه په ټول جهان کې چې د الله ﷻ د قدرت څومره نخې دي هغه ټولې الله رب العزت د انسان په دې وړوکي بدن کې راجمع کړي .

(۱) الذاريات آيت ۵۶ .

(۲) النحل آيت ۹۷ .

ددې د وجې نه انسان ته عالمِ اصغر (وړوکې جهان) ويلې شي. يعنی په دې دُنيا (عالمِ اکبر) کې چې الله ﷻ څومره شيان پيدا کړي هغه ټول يې د انسان په دې وړوکي بدن (عالمِ اصغر) کې هم پيدا کړي. (۱)

الله تعالی فرمايي: ﴿وَفِي الْأَرْضِ آيَاتٌ لِّلْمُوقِنِينَ. وَفِي أَنفُسِكُمْ أَفَلَا تُبْصِرُونَ﴾. (۲)

ترجمه: او په زمکه کې د يقين کوونکو دپاره ډيرې نخې دي، او په خپله ستاسو په ځانونو کې هم (ډيرې نخې دي)، نو آيا تاسو دا په غور سره نه ګورئ؟ (او تاسو ته نه ښکاري؟).

بل ځای الله ﷻ فرمايي:

﴿سَنُرِيهِمْ آيَاتِنَا فِي الْآفَاقِ وَفِي أَنفُسِهِمْ حَتَّىٰ يَتَبَيَّنَ لَهُمْ أَنَّهُ الْحَقُّ ...﴾. (۳)

ترجمه: ډير زر به مونږ دوی ته د خپل قدرت نخې په خواوُ شا دُنيا، او د دوی په نفسونو کې هم اوښايو، تر دې پورې چې دوی ته دا واضحه شي چې دا (کتاب) حق دی.

(۱) ونقل الامام فخر الدين الرازي في كتاب أسرار التنزيل ولطائف التأويل عن أبي جعفر الباقر رحمه الله أنه قال: كلّ ما خَلَقَ الله في العالم الأكبر فانظر في العالم الأصغر تجده. وذالك لأنه خَلَقَ في العالم الأكبر شمسًا وقمرًا ونجومًا وخلق في العالم الأصغر الروح. لأنّ الروحَ تضيء الجسد كما أنّ الشمس إذا غربت صار العالم مظلما. والعقلُ كالقمر فكما أنّ القمر يستمد النّور من الشمس فكذلك العقل يستمد النّور من الرّوح. وكما أنّ القمر يزيد ضوؤه تارة وينقص تارة فكذلك العقل. وأما النّجوم الخمسة السيارة فنظيرها في البدن الحواس. ونظير الجبال عظامك. ونظير البحار العروق الكبار. وكما أنه يحصل من البحار حيتان مضطربة فكذلك ترى في بحر فمك لسانًا مضطربًا بذكر الحكمة. وفي بحر مقلتك ترى حدقتك مضطربة بمطالعة العبر. وكما انك ترى في بعض أجزاء الأرض نباتا وفي بعضها ليس كذلك. فكذلك ترى في بعض أجزائك شعرا وفي بعضها ليس كذلك. نزهة الناظرين في الأخبار والآثار المروية عن الأنبياء والصالحين كتاب التفكر ص ٦٠٩. ﴿ **نوټ**: د انسان په بدن کې د غونډو کائناتو نمونه موجود يده و په باره کې تفصيلي او بهترين بحث حکيم الاسلام قاري محمد طيب رحمه الله په خپلو مواعظو " خطبات حکيم الاسلام ج ۸" کې کړی چې شايقين حضرات يې هلته کتې شي ﴾.

(۲) الذاريات آيت ۲۰، ۲۱.

(۳) حم السجده آيت ۵۳.

## په اِنساني ژوند باندې نظر اچول

که چیرته انسان د اول نه نیولی تر د مرګه پورې حالاتو باندې غور وکړي نو ده ته به په هره مرحله کې د الله ﷻ د کامِل قدرت کرشمه ښکاره شي :

چې څنګه انساني نطفه د مختلفو علاقو د غذاګانو نه خلاصه جوړه شوه ، بیا د مور په رحم کې ځای ورکړې شو ، بیا ترې علقه ( چکه وینه ) جوړه شوه ، بیا د هغې نه مضغه ( د غوښې ټکړه ) جوړه شوه ، بیا په هغې کې ساه واچولې شوه ، بیا د معلوم وخت نه پس دُنیا ته راوستې شو ، بیا په قلاره قلاره تربیت نه پس د یو بې عِلمه او بې شعوره بچې نه عقلمند او هوښیار انسان جوړ کړې شو ، بیا د ټولو انسانانو شکلونه او صورتونه مختلف جوړ کړې شو ، د دوی اخلاق او عادتونه مختلف جوړ کړې شو ، بیا که د انسان هر یو اندام او په هغې کې کار کوونکو باریکو مشینونو ته نظر وکړې شي نو انساني عقل حیران پاتې شي ،

ځکه که چیرته انسان د یو فولادي سپرنګونو نه یو شی جوړ کړي نو هغه هم اویا یا اتیا کاله پس سُولیږي او خرابیږي حالانکه د الله ﷻ دې کاملې کاریګرۍ ته ګوره چې په اویا یا اتیا کاله په کار کولو سره د انسان د لاس څرمن او د ګوتو هغه کرخې هم نه سولیږي .

دغه وجه ده چې د ټولې دُنیا سائنس دانان او ډاکټران په دې متفق دي چې د انسان هر اندام چې د کوم مقصد د پاره په کوم شکل و صورت پیدا شوی ، او بیا په کوم ځای کې فِټ شوی نو د دې مقصد د پاره د دینه د بهترین شکل او بهترین ځای تصوّر نشي کیدی .

مثلاً غوږونه ، سترګې ، پوزه او دماغ چې په کوم شکل پیدا شوي ، بیا په کوم ځای کې لږیدلي نو د دې اندامونو د پاره د دینه بهترین بل شکل او بهترین بل ځای نه وُ .

پس کله چې انسان د الله ﷻ په دې قدرتونو باندې سوچ کوي او د عبرت په نظر سره ورته اوګوري نو په دې سره د ده په زړه کې د الله ﷻ عظمت او لویي پیدا کیږي ، الله ﷻ طرف ته متوجه کیږي ، ایمان یې مضبوطیږي ، او بیا د الله ﷻ هر حکم منلو ته په خوشحالۍ تیار وي .

( نوټ : د انسان د بدن په هر اندام کې د الله ﷻ د قدرتونو او حِکمتونو تفصیلي بیان روستو په صفحه ۳۲۱ راروان دی ) .

# د مور په خيټه کې د ماشوم مختلفې مرحلې

کله چې ماشوم د مور په خيټه کې وي او په ده باندې کومې مرحلې تيرېږي هغه مرحلې قرآن مجيد بيان کړي .

۱. الله تعالى فرمايي :

﴿يَآ أَيُّهَا النَّاسُ إِن كُنتُمْ فِي رَيْبٍ مِّنَ الْبَعْثِ فَإِنَّا خَلَقْنَاكُم مِّن تُرَابٍ ثُمَّ مِن نُّطْفَةٍ ثُمَّ مِنْ عَلَقَةٍ ثُمَّ مِن مُّضْغَةٍ مُّخَلَّقَةٍ وَغَيْرِ مُخَلَّقَةٍ لِّنُبَيِّنَ لَكُمْ وَنُقِرُّ فِي الْأَرْحَامِ مَا نَشَاءُ إِلَىٰ أَجَلٍ مُّسَمًّى ثُمَّ نُخْرِجُكُمْ طِفْلًا ثُمَّ لِتَبْلُغُوا أَشُدَّكُمْ وَمِنكُم مَّن يُتَوَفَّىٰ وَمِنكُم مَّن يُرَدُّ إِلَىٰ أَرْذَلِ الْعُمُرِ لِكَيْلَا يَعْلَمَ مِن بَعْدِ عِلْمٍ شَيْئًا﴾ . (۱)

ترجمه : اې خلقو ! که چيرته تاسو د دوباره ژوندي کيدو په حقله په شک کې يئ نو (لږ فکر وکړئ چې ) بيشکه مونږ تاسو (اول) د خاورې نه پيدا کړی ، بيا د نطفې ( يو څاڅکي د اُوبو ) نه ، بيا د وينې د ټوټې نه ، بيا د غوښې د ټوټې نه چې (څنې) مکمله وي او (څنې) نامکمله وي . (۲) (دا انسان مو په دې ترتيب سره ځکه جوړ کړو ) ددې د پاره چې مونږ ستاسو مخې ته (خپل) قدرت واضحه کړو ، او مونږ چې د کومې نطفې باره کې اوغواړو هغه د يوې ټاکلې مودې پورې (د مور) په رحمونو کې ايساروو (او کومه چې حصارول نه غواړو هغه همداسې راا وغورځيږي) ، بيا مونږ تاسو ماشوم (جوړ کړو او د مور د خيټې نه مو ) راا وباسو ، بيا تاسو د خپلې ځوانۍ زور ته اورسئ ، او څنې په تاسو کې داسې دي څوک چې ( د ځوانۍ نه مخکې ) مړه شي ، او څنې له تاسو نه هغه څوک دي چې ( د

(۱) الحج آيت ۵ . همدغه شان مضمون په سورة مومن کې هم راغلی ، الله تعالى فرمايي : ﴿هُوَ الَّذِي خَلَقَكُم مِّن تُرَابٍ ثُمَّ مِن نُّطْفَةٍ ثُمَّ مِنْ عَلَقَةٍ ثُمَّ يُخْرِجُكُمْ طِفْلًا ثُمَّ لِتَبْلُغُوا أَشُدَّكُمْ ثُمَّ لِتَكُونُوا شُيُوخًا وَمِنكُم مَّن يُتَوَفَّىٰ مِن قَبْلُ وَلِتَبْلُغُوا أَجَلًا مُّسَمًّى وَلَعَلَّكُمْ تَعْقِلُونَ﴾ . المومن آيت ٦٧ .

(۲) د احاديثو نه د مُّخَلَّقَةٍ او غَيْرِ مُخَلَّقَةٍ تفسير داسې معلوميږي چې د کومې نطفې نه د انسان پيدا کول مقدّر وي هغه مخلقه ده ، او د کومې نه چې د انسان پيدا کيدل مقدّر نه وي بلکه د هغې ضائع کيدل او غورځيدل مقدّر وي هغه غير مخلقه ده ، او څنې مفسرين يې دا تفسير کوي چې د کوم ماشوم مکمل پيدا کول مقصود وي يعنی اندامونه يې صحيح او سالم وي نو هغه مخلقه ده ، او چې اندامونه يې نيمګړي وي ، يا قد ، رنګ وغيره يې خپل مينځ کې بې سمونه وي هغه غير مخلقه ده . قرطبي ، معارف القرآن الحج آيت ۵ .

بوداتوب) غورزېدلي (بيکاره) عُمر ته اورسيږي، (ددې اثر يا دا وي) چې په يو څيز باندې د پوهيدلو نه پس يې پوهه پاتې نه شي (لکه څرنګې چې د اکثرو بوډاګانو حالت دی چې کله ورته يوه خبره وکړې شي نو بيا بيا د هغې پوښتنه کوي).

۲. په دې آيت کې چې د ماشوم کومې مختلفې درجې بيان شوي دي د هغې تفصيل د بخاري شريف په يو حديث کې داسې راغلی، حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه فرمايي:

حَدَّثَنَا رَسُوْلُ اللهِ ﷺ وَهُوَ الصَّادِقُ الْمَصْدُوْقُ: إِنَّ أَحَدَكُمْ يُجْمَعُ فِيْ بَطْنِ أُمِّهِ أَرْبَعِيْنَ يَوْمًا، ثُمَّ عَلَقَةً مِثْلَ ذٰلِكَ، ثُمَّ يَكُوْنُ مُضْغَةً مِثْلَ ذٰلِكَ، ثُمَّ يَبْعَثُ اللهُ مَلَكًا فَيُؤْمَرُ بِأَرْبَعٍ: بِرِزْقِهِ، وَأَجَلِهِ وَشَقِيٌّ أَوْ سَعِيْدٌ. (۱)

مونږ ته رسول الله ﷺ اوفرمايل چې هغوی صادِق او مصدوق دی (يعنی رښتيا ويونکې دی او رښتيا ګڼلې شي)، چې تر څلويښتو ورځو پورې د انسان ماده د مور په رحم کې جمع پرته وي، بيا څلويښت ورځې پس ترې چکه وينه جوړه شي، بيا په څلويښتو ورځو کې د هغې نه غوښه جوړه شي، بيا الله ﷻ يوه فرښته وراوليږي، او دده باره کې (د مور په خېټه کې) د څلورو خبرو فيصله وکړې شي: دده د رزق متعلق، دده د عمر متعلق، او چې دا بدبخت دی، او که نيک بخت.

## د آيت تحقيق

په پاس ذکر شوي آيت کې الله رب العزت فرمايي:

﴿فَإِنَّا خَلَقْنٰكُمْ مِّنْ تُرَابٍ﴾ بيشکه ما تاسو اول د خاورې نه پيدا کړي يې (۲)

---

(۱) صحيح. اخرجه البخاري ۵٦۹۴، کتاب القدر باب في القدر حديث ۱۵۰۷، ومسلم ۲٦۴۵ من حديث ابن مسعود.
وانظر شرح هذا الحديث في فتح الباري ۱۱/ ۴۷۷ وما بعد، ومسلم للنووي ۱٦/ ۱۹۱.

(۲) دا خبره په نورو آيتونو کې هم الله ﷻ بيان کړی، الله تعالی فرمايي: ﴿وَمِنْ اٰيٰتِهٖٓ أَنْ خَلَقَكُمْ مِّنْ تُرَابٍ ثُمَّ إِذَآ أَنْتُمْ بَشَرٌ تَنْتَشِرُوْنَ. سورة الروم آيت ۱۱﴾، ﴿وَاللهُ خَلَقَكُمْ مِّنْ تُرَابٍ ثُمَّ مِنْ نُّطْفَةٍ. سورة فاطر آيت ۱۱﴾، ﴿هُوَ الَّذِيْ خَلَقَكُمْ مِّنْ تُرَابٍ. سورة مومن آيت ٦۷﴾، ﴿وَلَقَدْ خَلَقْنَا الْإِنْسَانَ مِنْ صَلْصَالٍ مِّنْ حَمَإٍ مَّسْنُوْنٍ. سورة حجر آيت ۲٦﴾، ﴿خَلَقَ الْإِنْسَانَ مِنْ صَلْصَالٍ كَالْفَخَّارِ. سورة رحمن آيت ۱۴﴾

(يعنى نطفه چې د کومې غذا نه پيدا شوى هغه غذا د خاورې نه پيدا شوى، يا دا چې زمونږ اصل حضرت آدم عليه السلام د خاورې نه پيدا شوى (۱))

بيا فرمايي: ﴿ثُمَّ مِنْ نُّطْفَةٍ﴾ بيا د نطفې (يو څاڅکي د اُوبو (۲)) نه (کومه نطفه چې د غذا نه پيدا شوى).

﴿ثُمَّ مِنْ عَلَقَةٍ﴾ بيا د ځکه وينې نه (دا چې کله نطفه ټينګه او سُور رنګې شي).

﴿ثُمَّ مِنْ مُّضْغَةٍ﴾ بيا د غوښې د ټوټې نه (دا چې کله دغه ځکه وينه سخته شي).

بيا په دې مضغه کې هډوکي جوړولې شي، او هغې ته بيا غوښه وراغوستولې شي. دا خبره الله ﷻ په سورة مومنون کې داسې بيانوي:

﴿وَلَقَدْ خَلَقْنَا الْإِنْسَانَ مِنْ سُلَالَةٍ مِّنْ طِيْنٍ . ثُمَّ جَعَلْنَاهُ نُطْفَةً فِيْ قَرَارٍ مَّكِيْنٍ . ثُمَّ خَلَقْنَا النُّطْفَةَ عَلَقَةً فَخَلَقْنَا الْعَلَقَةَ مُضْغَةً فَخَلَقْنَا الْمُضْغَةَ عِظَامًا فَكَسَوْنَا الْعِظَامَ لَحْمًا ثُمَّ أَنْشَأْنَاهُ خَلْقًا آخَرَ فَتَبَارَكَ اللهُ أَحْسَنُ الْخَالِقِيْنَ﴾ . (۳)

ترجمه: بيشکه مونږ انسان دخټې د خُلاصې (جَوهر) نه پيدا کړو، بيا مونږ دا نطفه (څاڅکې د اُوبو) په محفوظه قرارګاه (د مور په رحم) کې جوړه کړه (او هلته مو محفوظه اوساتله)، بيا مونږ ددې نطفې نه ځکه وينه (يوه ټوټه د وينې) جوړه کړه، بيا مونږ ددې ځکه وينې نه د غوښې بوټۍ جوړه کړه، بيا مونږ ددې بوټۍ د وينې نه (ځنې برخه) هډوکي جوړ کړه، بيا مونږ دې هډوکو ته غوښه وروا غوسته (يعنى په هډوکو مو غوښه پيدا کړه، او بيا مو په کې رُوح واچول) بيامونږ ورته يو نوې (ژوندې ساه دار) مخلوق جوړ کړو (کوم

(۱) تفسير كبير ج۸ ص ۶۲ سورة طه آيت ۵۵.

(۲) په نورو آيتونو کې دا خبره الله ﷻ داسې بيان کړى: ﴿وَهُوَ الَّذِيْ خَلَقَ مِنَ الْمَاءِ بَشَرًا﴾ . الفرقان آيت ۵۴ ، ﴿فَلْيَنْظُرِ الْإِنْسَانُ مِمَّ خُلِقَ . خُلِقَ مِنْ مَّاءٍ دَافِقٍ . يَخْرُجُ مِنْ بَيْنِ الصُّلْبِ وَالتَّرَائِبِ﴾ . الطارق ۵ تا ۷ . ﴿وَاللهُ خَلَقَ كُلَّ دَابَّةٍ مِّنْ مَّاءٍ﴾ . النور آيت ۴۵

(۳) المومنون آيت ۱۲ تا ۱۴ .

چې د مخکيني حالاتو نه مکمل بدل دی ) ، پس مبارک دی هغه الله ﷻ چې د ټولو نه ښه جوړوونکې دی .

**فايده** : په دې آيت کې د الله ﷻ د کامل قدرت ، او د انسان په پيدا کولو کې د الله ﷻ د کاريګرۍ خاص ننداره بيان شوي ، او د انسان د پيدائش اووه ( ۷ ) دَورونه بيان شوي چې د ټولو نه اول ﴿سُلَالَةٍ مِّن طِينٍ﴾ ، دويم : نطفه ، دريم علقه ، څلورم : مضغه ، پنځم : عظام ( هډوکي ) ، شپږم : په هډوکو باندې غوښه خيجوَل ، او اووم : په هغه ماشوم کې روح پُوک وهل او يو ژوندې انسان ورنه جوړول . (۱)

## په ميږي کې د الله ﷻ د قدرت ننداري

که چيرته انسان دې کمزوري ميږي ته او ګوري چې ده ته د خوراک په جمع کولو ، ذخيره کولو او محفوظ کولو کې څومره زيرکتيا او حيلې ورکړې شوي نو انسان د الله ﷻ قدرتونو ته حيران پاتې شي .

علامه ابن قيم رحمه الله په ميږي کې د الله ﷻ د قدرت څه عجائب ذکر کړي : چې کله ميږي د رزق په تلاش پسې اوځي ، او په يو ځاى کې يې پيدا کړي نو دوی يې خپلې سوړې ته راوړل شروع کړي ، بيا دوی دوه ( ۲ ) ډلې شي : يوه ډله يې راوړي او بله ورپسې ځي ، بالکل په قطار باندې سيده روان وي ، د يو بل سره نه ګډ وَډ کيږي ، بلکه داسې معلوميږي لکه دوه تک تور تارونه چې نيغ پراته وي ، کله چې خوراک دروند وي او يو ميږي يې نشي راوړی نو ټول ورته راجمع شي او په شريکه يې راوړي .

بيا دې هوښيارتيا ته او ګوره چې کله د غنم يا بله دانه خپلې سوړې ته راوړي نو دا يَره ورسره وي چې هسې نه دا راززغونه شي ، نو دوی هغه په مينځ دوه ځايه کړي ، او که بيا يې هم د زرغونيدو خطره وي نو هغه څلور ځايه کړي ، بيا کله چې په سوړه کې څه نمي وي يا د بهر نه څه لوندوالې ورته راشي او په سوړه کې د خوراک د خرابيدو يَره وي نو ميږي دا خوراک نمر ته راأوباسي چې اُوچ شي . دغه وجه ده چې اکثر غرمه کې د ميږو سوړې مخې ته

(۱) معارف القرآن سورة المؤمنون آيت ۱۲ .

ډېرې ماتې ماتې دانې پرتې وي، بيا څه لږ وخت پس ميږو واپس هغه خپلې سوړې ته ننويستي وي.

بلدا چې ميږي خپله سوره په داسې اوچت ځای کې جوړوي چې د سيلاب أوبه وربانديې نه راځي.

د ميږو د هوښيارتيا دپاره دا کافي ده چې په قرآن مجيد کې الله ﷻ د يو ميږي قول نقل کړی، کله چې، ده د حضرت سليمان عليه السلام او دده لښکر وليده نو نورو ميږو ته يې نصيحت کولو:

﴿يَآ أَيُّهَا النَّمْلُ ادْخُلُوا مَسَاكِنَكُمْ لَا يَحْطِمَنَّكُمْ سُلَيْمَانُ وَجُنُودُهُ وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ﴾. (۱)

ترجمه: اې ميږو! تاسو خپلو کورونو ته ننوځئ، هسې نه چې حضرت سليمان عليه السلام او دده لښکر مو چخنړي نه کړي، حالانکه دوی به خبر هم نه وي.

په دې يو نصيحت کې ميږي د کلام لس (۱۰) اقسام جمع کړه:

نداء، تنبيه، تسميه، امر، نص، تحذير، تخصيص، تفهيم، تعميم او إعتذار. (۲)

چونکه دا مختصر نصيحت د کلام په لسو (۱۰) انواعو مشتمل وُ نو ځکه حضرت سليمان عليه السلام په دې تعجب وکړو، وې خندل، او د الله ﷻ نه يې د نعمتونو د شکريې توفيق اوغوښتو.

---

(۱) سورة النمل آيت ۱۸.

(۲) فتكلمتْ بعشرة أنواع من الخطاب في هذه النصيحة. النداء والتنبيه. والتسمية والأمر. والنص. والتحذير. والتخصيص. والتفهيم. والتعميم. والاعتذار. فاشتملتْ نصيحتها مع الاختصار على هذه الأنواع العشرة. ولذلك أعجب سليمان قولها وتبسّم ضاحكاً منه وسأل الله أن يوزعه شكر نعمته عليه لما سمع كلامه. الطريق الى الجنة ص ۳۲۸

. علامه ابن قيم رحمه الله د ميږي د دې کلام باره کې ليکي: فاستفتحت خطابها بالنداء الذي يسمعه مَن خاطبته، ثم أتت بالاسم المبهم. ثم أتبعته بما يثبته من اسم الجنس إرادة للعموم. ثم أمرتهم بأن يدخلوا مساكنهم فيتحصنون من العسكر. ثم أخبرت عن سبب هذا الدخول وهو خشية أن يصيبهم مَعرَّةُ الجيش. فيحطمهم سليمان و جنوده. ثم اعتذرت عن نبي الله وجنوده بأنهم لايشعرون بذلك. وهذا أعجب الهداية. الطريق الى الجنة ص ۲۰۵ عجائب صنع الله فى النمل.

**فايده** : مفتي شفيع رحمه الله په معارف القرآن کې ذکر کړي چې د حضرت سليمان عليه السلام د واقعې نه ثابتيږي چې مارغان، ځناور او ټول حيوانات هم څه ناڅه عقل او شعور لري، خو دومره کامِل نه دي چې د شريعت له مخې پرې مکلف شي، البته پيريان او انسانان مکلف دي، ځکه چې د دوی عقل او شعور کامِل دی. (۱)

ميږې په ټولو حيواناتو کې ډير زيات حريص دی، دې ټول اُوړې د رزق په پيدا کولو کې مصروفه وي، او دومره سخت مشقت برداشت کوي چې د خپل ځان په نسبت ديرش (۳۰) چنده درُوند پيټې راکاږي، او خپلې سوړې ته يې وړي، دا ددې د پاره چې په ژمي کې دا بيا استعمال کړي، ځکه په ژمي کې بارانونه وي، او دوی ته کار کول مشکل وي.

## واقعه

د ميږي د حرص اندازه ددينه لږولې شي چې کله حضرت سليمان عليه السلام ددې ميږو خوراک جمع کول او حرص وليده نو يو ميږې يې رااُوغوښتو، پوښتنه يې ورنه وکړه چې هر ميږې په کال کې څومره خوراک کوي؟

ميږي ورته وويل: د غنمو درې (۳) دانې. سليمان عليه السلام حکم وکړو چې دا ميږې په يوه شيشه کې واچوئ، او د غنمو درې دانې ورسره هم واچوئ، او يو کال يې په دې شيشه کې بند اوساتئ.

يو کال روستو حضرت سليمان عليه السلام دا شيشه کلاؤ کړه نو يوه نيمه دانه غنم بچ پاتې وو. سليمان عليه السلام د ميږي نه پوښتنه وکړه: تا خو ويل: زمونږ خوراک په کال کې درې دانې د غنمو دی، تا خو يوه نيمه دانه خوړلې، دا ولې؟

ميږي ورته وويل: چې کله ته ما وليدی چې د خلقو په خدمت کې مصروفه وی، او ما د خپل باقي عمر حساب وکړو نو هغه د کال نه زيات پاتې ؤ، نو ما ويل چې هسې نه ستا د مصروفيت په وجه د تا نه هير شم، او زما خوراک خلاص شي نو بيا خو زما د مرګ خطره وه، نو ما يوه نيمه دانه اُوخوړه، او يوه نيمه مې ځانله ذخيره کړه چې دا به آينده کال اوخورم،

(۱) معارف القرآن سورة النمل آيت ۱۸.

سليمان عليه السلام چې دا واوريده نو دده د حرص نه يې ډير تعجب وکړو. دا هم د الله ﷻ عجيبه راهنمايي ده ميږي ته.

د ميږو د پاره د شاتو مچو غوندې څوک مشر او رئيس نه وي، بلکه د دوی د پاره د رزق تلاش کولو د پاره يو رائد وي، کله چې هغه څه شی پيدا کړي نو دا نور ميږيان ورباندې خبر کړي، دوی په جمع ورشي او په شريکه هغه شی راوړي، هيڅ ميږی ورنه په لاره کې په پټه خوراک نه کوي.

## ميږيان دروغ او دهوکه نه خوښوي

د ميږو په فطرت کې دا خبره ده چې دروغ او دهوکه نه خوښوي، که په کوم ميږي باندې دروغ ثابت شي نو سخته سزا ورکوي.

## واقعه:

يو کس د خپلو سترګو ليدلې حال بيانوي چې زه په يو ځای کې ناست ووم چې يو ميږي د خپلې سوړې نه راووت، او په يو ځای کې يې د ملخ خپه وليده، سوړې ته يې راښکوده خو نه يې شوه وړلی، خپه يې پرېښوده او لاړو، نور ميږي يې هم د ځان سره راوسته.

دا کس وايي چې د نورو ميږو رارسيدو نه مخکې ما دا خپه ورنه راپورته کړه، کله چې ټول ميږي راغله او تاؤ راتاؤ شو هيڅ يې اونه ليده، نو نور ميږي ورنه واپس لاړه، خو هغه امخکيني ميږي دلته تاويده راتاويده (ځکه دده يقين ؤ چې دلته د ملخ خپه پرته وه).

دا کس وايي ما ورته دا خپه واپس واچوله، ده بيا سوړې ته راښکله خو نه يې شوه وړلی، بيا لاړ، او نور ميږي يې د ځان سره راروان کړه چې په شريکه يې ويسي، خو د دوی د راتلو نه مخکې مخکې ما دا خپه بيا راپورته کړه، ميږي چې راغله، وګرځيده رااوګرځيده خو هيڅ يې بيانه مونده، واپس لاړه، هماغه زړو ميږي پاتې شو، ما ده ته بيا هغه خپه واچوله، هغه چې وليده نو بيا د نورو ميږو پسې لاړو، کله چې هغوی ټول بيا راغله، نو ما هماغه شان خپه ورنه راپورته کړه، په دې ځل ميږو ته پته ولږيده چې دا ميږي دروغ وايي او دهوکه کوي نو ټول ميږي دده نه ګير چاپيره تاؤ راتاؤ شو، دې يې په مينځ کې ګير کړو، او ټوټې ټوټې يې کړو، بيا ورنه واپس لاړ.

دا کس وايي چې ما دا واقعه خپل يو استاذ ته بيان کړه ، هغه راته وويل : ( تاخو يو زياتې کړې ، بل دا چې ) الله ﷻ د ميږو په فطرت کې دا خبره اچولې چې دروغ او دهوکه بده ګڼي ، نو ځکه هغوی دې ميږي ته سخته سزا ورکړه ، اګر چې دا ميږي په حقه وُ ، خو دهوکه ددې سړي د طرفه وه چې ده ورنه د ملخ دا خپه رااوچتوله . (۱)

د ميږي د پوهې اندازه ددېنه هم لږي چې کله يو مار مړ شي ، او ميږي يې اُوخوري نو ده ته سخته تنده ولږي ، خو دې بيا هم اُوبه نه څکي ، ځکه د زهرو پسې روستو اُوبه څکل جسم ته نقصان ورکوي .

## د بيزوګانو حَد جاري کول

ددې ميږي د واقعې پورې د بيزوګانو ( شادوګانو ) يوه واقعه هم رايادہ شوه چې لکه څرنګ چې ميږيان دروغ بد ګڼي دغه شان بيزوګان هم زِنا بده ګڼي .

ددې باره کې درته د بخاري شريف او تهذيبُ الکمال نه يوه واقعه نقل کوم ، کومه چې د رسول الله ﷺ د پيغمبرۍ نه مخکې واقع شوې وه .

عيسى بن حطّان وايي چې زه د کوفې جُمات ته داخل شوم ، هلته مې عمرو بن ميمون الأُودي وليده چې ناست دی او نور خلق هم ورسره دي ، په دې کې يو کس ورته وويل :

اې عمرو بن ميمون ! مونږ ته داسې يوه عجيبه خبره بيان کړه کومه چې تا د جاهليت په دوران کې ليدلې وي ، نو ده ورته وويل : زه يو کرت په يمن کې ووم ، هلته په فصلونو کې مې ډير بيزوګان وليده چې راجمع شوي وو ، بيا مې يو نر او ښځه بيزو وليده چې دواړه څملاست ، دې ښځې بيزو خپل لاس ددې نر بيز د څټ لاندې کړو ، او دواړه اُوده شو .

په دې کې يو بل نر بيز راغی ، او دا ښځه بيزو يې معمولي په لاس اُوسکونډله ، او اِشاره يې ورته وکړه ، دې بيزو خپل لاس د هغه نر بيز نه په قلاره راوويست ، او ددې بيز سره روانه شوه ، څه اندازه لرې لاړه ، هلته دواړو خپل جنسي خواهش پوره کړو .

دا بيزو واپس په قلاره قلاره راغله او د هغه خپل نر بيز سره څملاسته ، چې کله يې د هغه د څټ لاندې خپل لاس واپس وردننه کولو نو هغه وړياندې راويخ شو ، حيران شو ، شک يې

پیدا شو ، ددې بیزو شاته حصه یې بُوی کړه ، وربانديې پوهه شو ، نور بیزوګان ورته راجمع شو ، دې نر بیز دې ښځې بیزو ته بار بار اِشاره کوله ، نور بیزوګان هم پوهه شو ، هغوی په منډه لاړه ، او څه وخت پس یې هماغه مخکینې بیز راوست ، کوم چې دې بیزو سره بَدفِعلي کړې وه .

عمرو بن میمون وایي چې ما پیژنده چې هماغه بیزیې راوست . بیا دې بیزوګانو دا دواړه یو شګلنې علاقې ته بوتله ، هلته یې کنده ورله اوکنیسته او دواړه یې په کې أودرول ( خپې یې ورله په شګه کې ګیرې کړی ) ، او تر هغې وخته پورې یې په کاڼرو ویشته چې ترڅو یې دواړه مړه کړه ( نو بیا ورنه واپس راغله ) . عمرو بن میمون وایي :

وَاللهِ لَقَدْ رَأَيْتُ الرَّجْمَ قَبْلَ أَنْ يَبْعَثَ اللهُ مُحَمَّدًا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ .

قَسَم په الله ﷻ ، ما د نبي علیه السلام د بعثت نه مخکې رجَم ( سنګسار کول ) لیدلی .
د بخاري شریف په روایت کې ورسره دا هم دي چې عمرو بن میمون هم ورسره په رجم کولو کې شریک شو ( او ده هم په کاڼو باندې دغه بیزوګان اوویشته ) . (۱)

## شوده ( پیی ) ور کوونکو څاروو کې د قدرت نخې

په انساني غِذا کې د شُودو ( پیو ) نه علاوه بله بهترینه غذا نشته ، ځکه الله ﷻ دا د هر انسان او اکثرو حیواناتو د پاره وړومبۍ غذا جوړه کړی ، چې دمور د سینې نه ورته ملاویږي .

دغه وجه ده چې رسول الله ﷺ فرمایلي : تاسو د خوراک نه پس دا دُعا کوئ :
اَللّٰهُمَّ بَارِكْ لَنَا فِيْهِ . وَأَطْعِمْنَا خَيْرًا مِنْهُ .
اې الله ! زمونږ د پاره په دې کې برکت واچوی ، او په آینده کې راته ددینه بهترین خوراک راکړی .

او د شُودو څکلو نه روستو نبي ﷺ دا دُعا خودلې :
اَللّٰهُمَّ بَارِكْ لَنَا فِيْهِ . وَزِدْنَا فِيْهِ .

---

(۱) الطریق الی الجنة ص ۳۶۷ .

اې الله! زمونږ د پاره په دې کې برکت واچوې، او نور هم زيات را کړې.

دلته په شودو کې د بهتر والي سوال اونه شو، بلکه د زيادت سوال اوشو، دا ځکه چې د شودو نه بله بهترينه غذا نشته، او دا شوده د حيواناتو نه حاصليږي.

انسان حيران شي چې د غوا، ميښې، چيلۍ وغيره په خيټه کې خو سوټې هم وي، وينه هم وي، بيا د هغې د مينځ نه صفا شوده راوتل، چې په هغې کې د سوټې خوند او وينې هيڅ رنګ نشته، دا ټول د رب العالمين کاريګري او قدرتونه دي.

الله رب العزت په خپله فرمايي:

﴿وَإِنَّ لَكُمْ فِي الْأَنْعَامِ لَعِبْرَةً نُّسْقِيكُم مِّمَّا فِي بُطُونِهِ مِن بَيْنِ فَرْثٍ وَدَمٍ لَّبَنًا خَالِصًا سَآئِغًا لِّلشَّارِبِينَ﴾. (۱)

ترجمه: بيشکه ستاسو د پاره په څاروو کې (لوي) عبرت دی، مونږ په تاسو باندې څکوو هغه څه چې د څاروو په خيټو کې دي، کوم چې د سوټې او وينې په مينځ کې خالصه شوده دي، مزيداره (خوند ورکوونکي) دي څکونکي د پاره (او په آسانه سره په حلق کې تيريږي).

د سوټې او وينې د مينځ نه د صفا شودو راوتلو مطلب حضرت عبدالله بن عباس رضی ﷺ دا بيان کړی: چې کله څاروي ګياه اوخوري نو دده معده دا ګياه پخه کړي، نو ښکته يې سوټه شي، مينځ کې شوده شي او پورته طرف يې وينه شي. بيا الله ﷻ جګر (اينه) په دې باندې مقرر کړی هغه ورته وينه جدا کړي رګونو ته يې اوسپاري، شوده غُلانځې ته راوليږي، او سوټې په معده کې پاتې شي (چې د څاروي په شاته لاره راووځي). (۲)

مفسرينو نور مطلبونه هم بيان کړي چې د شودو دا رګ د سوټو او وينې په مينځ کې دی.

(۱) النحل آيت ٦٦.

(۲) قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ ﷺ: إِنَّ الدَّابَّةَ تَأْكُلُ الْعَلَفَ فَإِذَا اسْتَقَرَّ فِي كَرِشِهَا طبخته. فكان اسفله فرثًا. واوسطه لبنًا. وأعلاه دمًا. والكبدُ مُسَلَّطٌ على هذه الأصناف. فتقسم الدّم وتميّزه. وتجريه في العروق. وتجري اللّبن في الضرع. ويبقى الفرث كما هو في الكرش. قرطبي ج۱۰ ص ۱۱۰ النحل آيت ٦٦.

په سورة مومنون کې الله رب العزت انسان دې حيرانوونکې قدرت طرفته متوجه کړی :

﴿ وَإِنَّ لَكُمْ فِي الْأَنْعَامِ لَعِبْرَةً نُّسْقِيكُم مِّمَّا فِي بُطُونِهَا وَلَكُمْ فِيهَا مَنَافِعُ كَثِيرَةٌ وَمِنْهَا تَأْكُلُونَ. وَعَلَيْهَا وَعَلَى الْفُلْكِ تُحْمَلُونَ ﴾ . (۱)

ترجمه : بيشکه ستاسو د پاره په چارپيانو کې عبرت دی ، مونږ څکوُو په تاسو باندې د هغه شودو ( پيو ) نه کوم چې د دوی په خيټو کې دي ، او ستاسو د پاره په دوی کې نورې ډيرې فايدې هم شته ( چې د دوی وينته ، وړی ، څرمن او د بدن هره حصه ستاسو په کار راځي ) ، او ځنې له دې نه تاسو خوری هم ، او په دې څارو او کِشتو باندې تاسو سوَرولې هم شی ( يعنی په څارو و سوريږی هم ، او بارپرې هم وړئ ، او دا کار تاسو د کِشتئ نه هم اخلی ) .

## د شهدو په مچې کې د الله ﷻ دقدرت نخې

د انسانانو نه علاوه په نورو ټولو حيواناتو کې د شهدو مچې غوندې هوښيار او زيرکه بل هيڅ شی نشته ، ځکه داد ښکلي انتظام ، مضبوطو قوانينو او ضابطو په وجه يو خاص امتيازي شان لري .

انسان چې ددې وړوکي مخلوق دې عجيبه نظام ته اوګوري کوم چې د انساني سياست او حکمرانۍ په اصولو باندې چليږي نو بالکل حيران پاتې شي .

دغه وجه ده چې قرآن کريم د نورو ټولو حيواناتو په باره کې دګلي قانون په طريقه داسې وويل : ﴿ أَعْطَىٰ كُلَّ شَيْءٍ خَلْقَهُ ثُمَّ هَدَىٰ ﴾ . (۲)

ترجمه : الله ﷻ هر شي ته دده وجود ( جوړښت ) ورکړی ، بيا يې ورته لاره اوخوده .

او د شهدو د مچې په باره کې يې په خاص طور وفرمايل :

﴿ وَأَوْحَىٰ رَبُّكَ إِلَى النَّحْلِ أَنِ اتَّخِذِي مِنَ الْجِبَالِ بُيُوتًا ... ﴾ . (۳)

---

(۱) المومنون آيت ۲۱ ، ۲۲ .

(۲) سورة طه آيت ۵۰ .

(۳) النحل آيت ٦٨ .

ترجمه : او ستا رب د شاتو مچو ته دا اِلهام وکړو ( یعنی په زړه کې یې ورته دا خبره واچوله ) چې ته ځان له کورونه جوړوه په غرونو کې ...

چې په دې کې دې خبرې طرفته اشاره ده چې دا د شعور او پوهې په اعتبار سره یو خاص شان لري.

چې ددې مچو څنې احوال ستاسو وړاندې ذکر کوم :

د دوی دانظم او نسَق چې برابر دی نو دا ځکه چې ددې مچو ټول اختیارات د یوې غټې مچۍ سره وي چې هغې ته " ملکه " وایي ، دا د نورو مچو په نسبت غټه وي ، نورې ټولې مچۍ ددې حکم په سر سترګو مني ، دده هیڅ مخالفت نه کوي ، که چیرته دویم سردار راپیدا شي نو دوی هغه ختم کړي ، ځکه چې مشران دوه شي نو بیا بې اتفاقي پیدا کیږي ، هغه اتفاق او اتحاد بیا ختمیږي ، نو ځکه د دویم سردار اجازت نه ورکوي ، البته که چیرته دې ظلم او فساد شروع کړي نو بیا یې په شریکه وژني .

دا ملکه په درې هفتو کې د شپږو زرو نه تر د دولس زرو پورې هګۍ اچوي ، او خپلو ماتَحتو مچو لره یې په مختلفو کارونو مقرر کړي وي :

څنې په څوکیدارۍ مقرر وي چې بهرنۍ پردۍ مچۍ دننه نه راپریږدي ، څنې د هګو حفاظت کوي ، څنې په کې د وړو بچو پالنه کوي ، څنې په کې د ګلکارۍ او انجینرۍ کار کوي ، څنې په کې مُوم جمع کوي او ګِلکارانو ته یې سپاري چې کورونه ورنه جوړوي ، او دا کورونه مسدّس ( شپږ ګوتیز ) جوړوي ، په داسې مهارت یې جوړ کړې وي چې که هر طرف یې ناپ کړې شي نو دوینته په مقدار فرق په کې نه وي ، په دې کې د شاتو د حفاظت دپاره ځانله ځای وي .

او څنې چې په ګلونو او میوو باندې کیني د هغې نه په داسې طریقې سره رَس ( جوهَر ) په څُله راکاږي چې د سائنسي مشینونو په ذریعه هم هغه شان نشي حاصلیدی ، بیا ددېنه په خیټه کې شهد جوړوي چې دا ددې مچۍ او ددې د بچو خوراکه ده ، او زمونږ د پاره خوَندناک خوراک ، غذا ، او د هرې بیمارۍ نه شِفاء ده .

د شهدو خاصه داده چې دا نه په خپله خرابیږي ، او په کوم شي کې چې دا کښ شي هغه شی هم خرابیدو ته نه پریږدي .

بیا دا مچۍ د ځان سره صرف د شهدو ماده نه راوړي ، بلکه په خپلو خپو کې مُوم هم راوړي چې په هغې کې بیا شهد محفوظ ساتي ، ځکه د شهدو د حفاظت د پاره دمُوم نه علاوه بل بهترین شی نشته.

بیا دا د صفائي دومره لحاظ ساتي چې که چیرته یوه مچۍ بهر په یو ګنده شي باندې کیني او بیا راشي نو څوکیداره مچۍ یې دننه نه پریږدي ، بهر یې حصاره کړي وي ، بیا ملکه یې اوو ژني .(۱)

الله رب العزت په قرآن مجید کې د شاتو د مچۍ او هغې ته د الهامي هدایاتو متعلق فرمایي :

﴿ وَأَوْحَىٰ رَبُّكَ إِلَى النَّحْلِ أَنِ اتَّخِذِي مِنَ الْجِبَالِ بُيُوتًا وَمِنَ الشَّجَرِ وَمِمَّا يَعْرِشُونَ . ثُمَّ كُلِي مِن كُلِّ الثَّمَرَاتِ فَاسْلُكِي سُبُلَ رَبِّكِ ذُلُلًا . يَخْرُجُ مِن بُطُونِهَا شَرَابٌ مُّخْتَلِفٌ أَلْوَانُهُ فِيهِ شِفَاءٌ لِّلنَّاسِ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً لِّقَوْمٍ يَتَفَكَّرُونَ ﴾ .(۲)

ترجمه : او ستا رب د شاتو مچو ته دا الهام وکړو ( یعنی په زړه کې یې ورته دا خبره واچوله ) چې ته ځان له کورونه جوړوه په غرونو کې ، په اُونو کې ، او په هغه اُوچتو عمارتونو ( چوپالونو او څپرونو ) کې چې خلق یې ځان له جوړوي .

بیا هر قسمه میوې خوره ( یعنی د هغې نه رس راچوپه ) ، بیا د خپل رب په آسانو لارو باندې ( خپل کورته واپس ) ځه ، ددې شاتو مچو د خیټې نه د څکلو شی ( شات ) راووځي ، چې ( د مختلف میوو او موسمونو د تبدیلۍ په وجه ) ددې شاتو رنګونه مختلف وي ، په دې کې د خلقو د پاره ( د مرضونو نه ) شِفاء ده ، بیشکه په دې کې نښه ده ( په قدرتونو د الله ﷻ باندې ) د هغه خلقو د پاره چې فکر کوي .

**فایده** : ددې آیت په آخر کې الله ﷻ د خپلو قدرتونو بیانولو نه پس انسان ته په دې باندې د غور او فکر کولو بلنه ورکوي چې که انسان په دې باندې سوچ وکړي چې داسې مچۍ چې هغه سراسري د زهرو نه ډکه ده د هغې په خیټه کې اعلی شهد پیدا کول چې هغه

(۱) معارف القرآن النحل آیت ۶۸ ، ۹۶ .

(۲) النحل آیت ۶۸ ، ۶۹ .

بهترين خوراک او د ټولو بيمارو علاج دی دا صرف او صرف د داسې رب کار دی چې هغه د بې مثله قدرتونو او حکمتونو مالک دی. (۱)

(نوټ: د شهدو مچې په باره څه نور عجائبات او د الله ﷻ قدرتونه ددې موضوع په آخر کې په صفحه ۳۱۷ کې ذکر دي هلته يې اوګوره. ابوالشمس).

## د " اُور اُورکي " په وجود کې د الله ﷻ قدرتونه

که چيرته انسان د " اُور اُورکي " (اُوربلکي، کوم چې يو قسم حشره ده او د شپې رڼا کوي) په پيدائش باندې غور وکړي نو حيران به پاتې شي چې څومره بناټسته رڼا د وجود نه خارجوي، سائنس دانانو د ډيرې زمانې نه مسلسل په دې باندې تحقيق وکړو چې د " اُور اُورکي " په شان رڼا پيدا کړي خو د ډير تحقيق باوجود يې ددې نقل تيار نه کړو.

ډيره د حيرانتيا خبره داده چې دا " اُور اُورکي " د جسم نه کومه رڼا پيدا کوي ددې سره يې په وجود کې څه کمې هم نه راځي، او نه ددې رڼا په وجه ده ته څه نقصان رسي.

حالانکه که مونږ دا نورې رڼاګانې اوګورو نو د رڼا په وجه ګرمائش هم پيدا کيږي، لکه د بجلۍ ليټ څه وخت پس ګرم شي، دا ځکه چې " اُور اُورکي " کومه رڼا پيدا کوي هغه يخه ده، او دا نورې رڼاګانې ګرمې دي.

بل دا چې ددې رڼا په سلو کې سل فيصده خالصه رڼا ده، هيڅ ګرمايش په کې نشته، او دا نورې رڼاګانې په دې کې لس (۱۰) فيصده رڼا وي او باقي نوي (۹۰) فيصده په کې ګرمايش وي.

دا رڼا ددې ". اُور اُورکي " دپاره د رابطې ذريعه هم وي، د ښائست ذريعه هم وي، او د خپل دشمن نه د حفاظت ذريعه هم ده، ځکه ددې رڼا په وجه ډير حيوانات دا نه خوري، هغوی ته پته ده چې د " اُور اُورکي " خوَند صحيح نه دی. ددې نه علاوه نور ډير زيات حکمتونه په کې هم شته.

---

(۱) معارف القرآن النحل آيت ۶۸، ۶۹.

همدغه شان په سمندري مخلوقاتو کې هم ډير داسې ژيوانات شته چې هغوی هم دا رڼا پيدا کوي، خو د هر يو د رڼا پيدا کولو طريقه جدا ده، داسته مال ځای او وخت يې جدا دی، او رڼا يې جدا ده.

خلاصه دا چې په يو ژوندي جسم کې رڼا پيدا کول اتفاقي نشي کيدی، بلکه دا د خالقِ کائنات د تخليق کامله نمونه ده، او د رب العالمين په قدرت او حکمت باندې ښکاره ثبوت دی.

## د ښېلو ليدلو سترګو حال

په اُوړي کې به چې ما (ابوالشمس) کله د شپې د ډيوې لاندې کتاب مطالعه کولو نو اکثر به داسې وړوکي نري ميږيان په کتاب باندې راغورځيده، يوه شپه په کتاب باندې يو ډير زيات وړوکې نرې شی رااوغورځيده، چې صرف په سترګو ليدې شو، په پانه روان ؤ، ما ورته مخې ته ګُته کيښوده، هغه د ګُتې نه اَخوا طرف روان شو، بيا مې اَخوا ورته ګوته کيښوده هغه بل طرف روان شو.

ما د ځان سره سوچ کولو چې ددې شي به سترګې، غوږونه، پوزه، سَر او خپې خامخا وي ځکه د ګُتې نه اَخوا روان شو، په ګُته نه راختو، او دايې ضررناک شی ګڼلو.

بيا خامخا به الله ﷻ ده ته رزق هم ورکوي، بيا د فُضله شيانو خارجولو د پاره به څه لاره هم وي، چې کله دا شيان شته نو ددې د پاره خيټه، کولمې، رګونه او هډوکي وغيره هم په کار دي. دې سوچ کولو سره انسان بالکل حيران پاتې شي چې دومره وړوکې شی او په دې کې هره پُرزه موجوديدل، او بيا دا د يو خاص مقصد دپاره پيدا کول، دا صرف او صرف د داسې خالق او ربّ العالمين کار دی چې په هر شي باندې قادِر او خبردار دی، او په هيڅ شي کې د هغه مِثل نشته. يقيني چې بې اختياره دانسان د خُلې نه دا خبره راووځي:

﴿رَبَّنَا مَا خَلَقْتَ هٰذَا بَاطِلًا سُبْحَانَكَ فَقِنَا عَذَابَ النَّارِ﴾.

# ضائع شوي اندام دوباره پيداکيدل

د الله ﷻ په قدرتونو کې يوه عجيبه حيرانوونکې خبره دا هم ده چې د بعضې حيواناتو څه اندام ضائع شي نو دوباره بيا هم ددې په ځاى بل اندام پيدا کيږي ، لکه د زمکې چينجې چې په مينځ دوه ځايه کټ کړې شي نو هر طرف يې بيا هم دا باقي حصه پوره کيږي .

په دې حيواناتو کې څه نور اقسام دي ( چې په عربۍ کې ورته " جمبيري " او کابوريا وايي ) کله چې د دوی يوه خپه ضائع شي نو ددې په ځاى يې بله خپه راکيږي . (۱)

يو قسم سپين برگ مار دی چې کله دا د لکۍ نه اونيول شي ، او دده د وژلو خطره وي نو په زور کولو سره دده نه لکۍ جدا شي ، دې ځان خلاص کړي ، بيا ددې په ځاى باندې يې بله لکۍ راکيږي .

علماء ليکي چې سمندري يو حيوان دی چې په عربۍ کې ورته " هيدرا " وايي ، که دا حيوان دوه يا درې ځايه کټ شي نو څه وخت پس هره حصه بيا راپوره کيږي ، او د هرې حصې نه مستقل همدغه شان حيوان جوړ شي . (۲)

که چيرته د انسان څه حصه په بليډ (پتري) يا چاړې سره غوڅه شي ، يا هډوکې يې مات شي نو هم د علاج کولو نه روستو دا زخم او دا هډوکې دوباره جوړيږي .

# د بعضې حيواناتو حواس د انسان نه تيز وي

د بعضې حيواناتو حواس الله ﷻ د انسان نه تيز پيدا کړي ، او په دې کې هم د الله ﷻ ډير حکمتونه او رازونه دي :

لکه د انسان قوّتِ سامعه ( د آوريدو قوت ) په څه لږه اندازه کې کار کوي ، او د ګوني (بعضې خلق ورته شِينې هم وايي کوم چې د ښارو پورې شاته نختې وي دده ) قوتِ شامه د څلويښت ( ۴۰ ) ميله پورې کار کوي ، يعنې څلويښت ميله لرې معمولي آواز هم اوري . دغه وجه ده چې پخوا به کله غلو قافلې لوټ کولې نو د ځان سره به يې ګونې واخيست ، او

---

(۱) التدبر في آيات الله وعجائب خلقه ص ۲۹۷

(۲) الطريق الى الجنة ص ۲۹۶

لاره کې به يې پرېښود ، نو چې دې به په کوم طرف روان شو غله به پوهه شو چې د دې طرفه قافله راروانه ده ، نو دوی به په هماغه طرف روان شو ، او قافله به يې لوټ کړه .

اوس که چيرته انسان هم دومره لرې فاصله کې آواز اورېدې شوی نو هيڅ کله به دې د شور د لاسه اُوده شوې نه وی ، ځکه د بازار او لرې ځايونو شور به يې ټول اورېده .

د انسان قوّتِ شامه ( د بُويولو قوت ) هم په څه محدوده فاصله کې کار کوي ، خو مېږي ته په درې ( ٣ ) ميله کې د يو شي بُوی ورځي .

نو که چيرته اوس انسان هم د لرې لرې نه بُوی محسوسولی نو په هيڅ ځای کې به مطمئن نه شو کيناستی ، ځکه د لرې لرې ډيرانونو او گندگيو بُوی به يې محسوسولی .

دغه شان د انسان قوّتِ باصِره ( د ليدلو قوت ) په څه خاصه فاصله کې کار کوي ، او ټپوس د لس ( ١٠ ) ميله بَره نه لاندې مرداره او بل شی گوري .

همدارنگې د انسان نظر په تياره کې کار نه کوي او د پيشو او مېږې نظر په تياره کې هم کار کوي .

اوس که چيرته د انسان نظر ډير زيات تيز وی ، او باريک باريک شيان يې هم کتی ، نو بيا به ورته په دُنيا کې ژوند تيرول ډير گران وو ، ځکه په هر شي کې به ورته جراثيم ښکاره کيده ، او ژوند به يې تريخ وی .

خلاصه دا چې کوم مخلوق الله ﷻ په کوم صفت او شکل پيدا کړی په دې کې د الله ﷻ ډير حکمتونه او رازونه دي ، او د هغه مخلوق په همدې کې فايده ده .

# په حيواناتو کې د الله ﷻ د قدرت ننداري

الله ﷻ د کائناتو هر شی پيدا کړی ، او بيا يې هغه ته د ژوند تيرولو تَکويني راهنمائي هم کړی ، اگر چې د انسانانو او پيريانو غوندې اِدراک او شعور ورسره نشته خو بيا هم الله ﷻ يو خاص قِسم اِدراک او شعور ورکړی چې په هغې سره د خپل ځان د پاره خوراک او د اوسيدو ځای برابروي ، د دې تذکره په قرآن مجيد کې داسې ده :

چې کله فرعون د حضرت موسی عليه السلام نه پوښتنه وکړه : چې ستا رب څوک دی ؟

نو ده جواب ورکړو :

﴿رَبُّنَا الَّذِيٓ أَعۡطَىٰ كُلَّ شَيۡءٍ خَلۡقَهُۥ ثُمَّ هَدَىٰ﴾ . (۱)

ترجمه : زمونږ رب هغه دی چا چې هر شي ته دده وجود (پیداوښت) ورکړی ، بیا یې ورته لاره اوښوده (دیته تکویني هدایت وایي په کوم سره چې ځان له خوراک او د اوسید و ځای برابروي) .

که چیرته انسان په دې مختلف قسمه حیواناتو باندې نظر واچوي چې په هر حیوان کې د الله ﷻ د معرفت او قدرت عجیبه عجیبه ننداري دي ، او چې الله ﷻ دوی ته د خپل ځان او د خپلو بچو د حفاظت ، او په قسما قسم حیلو سره د رزق طلب کولو فطرتًا کوم تدبیرونه ورکړي نو انسان بالکل حیران پاتې شي ، بلکه ډیرو انسانانو د حیواناتو نه داسې کارونه زده کړي چې هغه د دوی په روزمره ژوند کې په کار راځي .

لکه د نمونې د پاره درته دیو څو حیواناتو تذکره کوم :

## هُدهُد په زمکه کې پټ شی ګوري

د هُد هُد په سترګو کې الله ﷻ دا قوت اچولی چې دا د زمکې لاندې یو شی ګوري ، ځکه دده د سترګو شعاع د زمکې د طبقاتو نه تیریږي ، دیر کرت هُد هُد په یو ځای کې کیني ، په خپله ټونګه باندې هغه ځای رااوکني او د لاندې نه چینجې رااوباسي ، او وې خوري ، حالانکه دا چینجې انسان نه ګوري خو هُدهُد د لرې نه لاندې په زمکه کې لیدو .

دغه وجه ده چې هُدهُد به حضرت سلیمان علیه السلام له د زمکې لاندې اُوبه تلاش کولې ، چې دلته اُوبه شته او که نشته ؟

## د کونترې د هګو حفاظت

کله چې کونتره په هګو باندې ناسته وي نو هغه دا هګې څه وخت پس اړوي راوړي ، ددې د پاره چې ددې هګې دواړه اړخونه اُوشاربلې شي .

---

(۱) سورة طه آیت ۵۰ .

بل دا چې، که چیرته دا هګۍ همیشه په همدې یو اړخ باندې پاتې شي نو دا خرابیږي، نو ځکه یې دواړه طرفونه اړوي راړوي.

## چرګه

دغه رنګې چرګه چې کله په هګو باندې ناسته وي، او دې ته اندازه اولږي چې اوس به بچي تیار شوي وي نو صرف هغه هګۍ په ټونګه د بچي راویستلو د پاره وهي چې کومه خرابه شوې نه وي، ځکه خرابه هګۍ په ټونګه نه وهي. او بیا هګۍ په داسې ځای باندې ږدي چې، بچي ته په راوتلو کې تکلیف نه وي.

بیا په دې هګۍ کې د الله ﷻ دې عظیم قدرت ته ګوره چې په دې کې دننه ځه زیړ وي او ځه سپینې اوبه وي، نو په دې کې د بعضې حصې نه دا بچي جوړیږي، او بعضې د همدې بچي د پاره خوراک وي، ځکه د هګۍ نه تر د راوتو پورې خو د بهر نه دې بچي ته غذا نشي رارسولی، بلکه د هم دغه دننه حصې نه بچي هم جوړیږي، او دده د راوتو پورې د همدې نه دده د پاره غذا هم وي. سبحان الله.

## چرګ نورو ته په خپل ځان باندې ترجیح ورکوي

چرګ چې کله په زمکه باندې دانه یا بل د خوراک شی بیامومي نو دې اګر چې ډیر اوږې وي خو بیا هم دې دا دانه نه خوري، بلکه چغې جوړې کړي او نورې چرګې ورته را اوبلي، کله چې یوه چرګه ورته راورسي، نو دې دا دانه هغې ته پریږدي او په خپله یې او نه خوري، دغه وجه ده چې کله چرګ ته ډیرې دانې کیښودې شي نو که دلته نورې چرګې نه وي خو دې بیا هم دا دانې په خپو باندې اخوا دیخوا اوشیندي، ځکه فطرتًا دده طبعیت کې سخاوت پرته دی، او نورو ته په خپل ځان باندې ترجیح ورکوي.

## د مرغانو همت

مرغان همیشه د پاره سهر وختي د رزق په تلاش کې اوځي، نزدې او لرې هر ځای ته ځي، نه ستړي کیږي، او نه د زمکې، هوا او نورو مصیبتونو نه یریږي.

## د ګونګټ همت نه بائيلل

ګونګټ چې کله په ديوال يا اوچت ځای باندې ختيجي نو رااوغورځيږي ، دې يا او ختيجي او يا رااوغورځيږي ، باربار ختيجي او راغورځي ، خو خپل همت د لاسه نه ورکوي ، آخر دا چې په خپل کار کې کامياب شي او بره اوختيجي .

## د رزق طلب کولو د پاره د حيواناتو حيلې

کله چې انسان د حيواناتو دې بې عقلی ته اوګوري چې عقل او پوهه هم ورسره پوره نشته ، او بل طرفته د رزق طلب کولو دپاره د دوی مختلفو حيلو او دهوکه بازی ته اوګوري نو انسان حيران پاتې شي .

پته اولږيده چې دا ټول د خالق کائنات کاريګري ده چې فطرتا يې په دوی کې دا تدبيرونه اچولي . ددې يو څو نمونې ستاسو د وړاندې ذکر کوم :

## د غنې حيله

غنه چې کله ځان له د ښکار د پاره جال جوړوي نو دا په دې کې يو طرف ته پټه شي ، يا ددې په بره طرف کې يو تار بوځي ، او دا په خپله د هغې تار سره نختې وي ، کله چې په دې کې چيرته مچ يا ماشې اونخلي نو دا ورباندې راخبره شي ، په منډه ورله راشي او هغه ښکار کړي . (۱)

## د مچ پړانګ حيله

په دې غنو کې يو قسم دی چې مچ پړانګ ورته وايي ، کوم چې مچان رانيسي (په عربۍ کې ورته لُبب يا سبع الذباب وايي) .

کله چې دا اوګوري چې يو مچ ده طرف ته راروان دی نو دې ځان داسې خاموشه کړي ګويا چې دې مړ دی ، مچ ورباندې هم داګمان وکړي چې ګني دا يا مړ دی او يا مکمل غافل دی ، خو چې مچ ورته رانژدې شي ، او دې پوهه شي چې اوس يې په يو ټوپ سره نيولې شم ،

(۱) مفتاح دارالسعادة ۱/ ۲۸۱ ، الطريق الى الجنة ص ۳۷۰ ، کتاب الاذکياء ، لطائف علميه ص ۳۶۶ .

نو ناڅاپه په هغه باندې د زمري غوندې ورټوپ کړي ، بنه مضبوط يې اونيسي ، تر هغې پورې يې ټينګ نيولې وي چې کله يې حرکت ختم شي نو بيا يې پرېږدي ، او د خپل ضرورت مطابق خوراک ورنه وکړي . (۱)

## د لومبړې حيله

۱ . د لومبړې په باره کې راځي چې کله دا سخته اوږې شي او د خوراک څه ورته نه ملاوېږي نو ځان اوږسوي ، او په صحراء کې ځان داسې اوغزځوي ګويا چې دا يوه مرداره ده ، کله چې مرغان ورته راجمع شي نو دا هيڅ حرکت نه کوي ، او نه ساه اخلي ، مرغان پرې ګمان وکړي چې ګني دا مړه ده ، نو هغویورباندې کيني ، او په ټونګو باندې يې وهي ، چې ناڅاپه دا ورباندې ورټوپ کړي او څه مرغان اونيسي او وې خوري .

۲ . د لومبړې باره کې دا واقعه ډيره مشهوره ده چې يو کرت دا ډيره اوږې شوه نو داسې يوې جزيرې ته راغله چې هلته ډيرې مرغۍ وی ، دې څه حيله وکړه چې دا مرغۍ اونيسي خو کامیابه نه شوه ، آخر دا چې لاړه ، او څه اندازه اوچه ګياه يې راوړه ، او چيرته چې اوبه وی د هغې سره يې څنګ کې واچوله ، مرغانو چې اول دا ګياه وليده نو هغوی ورنه اويريده او اوتختيده ، کله چې مرغانو ته پته ولږيده چې دا خو اوچه ګياه ده نو هغوی به بيا زړه وَرتله راتله ، آخر دا چې دا لومبړه ورته په دې ګياه کې پټه شوه ، کله چې مرغان د اوبو د پاره راغله نو دې ورباندې ورټوپ کړه ، او څه يې په کې اونيوه ، او وې خواره .

۳ . د لومبړې په باره کې مشهوره ده چې يو سړي سفر کولو ، دوه (۲) چرګې ورسره وی ، لومبړه ورته پټه شوه ، او ناڅاپه يې د شاطرفه ورباندې ورټوپ کړه او يوه چرګه يې ورنه اوتختوله ، او لرې يې اوخوړه .

بيا لومبړې د دې بلې چرګې حاصلولو د پاره حيله جوړه کړه ، نو ډير لرې يې ځان رابنکاره کړو ، چې په خوله کې د چرګې په شان شی نيولې وُ ، هلته يې اوغورځول او نوره لاړه .

---

(۱) کتاب الاذکياء ، لطائف علميه ص ۳٦٦ .

دې سري دا گمان وکړو چې گني دا هغه چرگه ده کومه یې چې د ما نه تختولې وه ، نو ده دلته دا دويمه چرگه کيښوده ، او په منډه باندې د هغې پسې ورغی ، لومبړه د شا د طرفه ورباندې راتاؤ شوه او دا دويمه چرگه يې هم ورنه اوتختوله .

۴ . همدغه شان واقعه د امام شافعي رحمه الله نه هم نقل ده ، دې وايي چې يو کرت مونږ د يمن سفر کولو ، مابنام ته نزدې په يو ځای کې کيناستو ، د خوراک د پاره مو دستر خوان خور کړو ، په دستر خوان مو دوه (۲) يَخ شوې وريتې چرگې د خوراک دپاره کيښودې ، په دې کې د مابنام آذان اوشو ، مونږ دسترخوان همداسې کلاؤ پريښود ، او لمانځه ته اودريدو ، په دې کې ناڅاپه لومبړه راغله او دا يوه يخ شوې چرگه يې ورنه اوتختوله او لاړه ، کله چې مونږ لمونځ وکړو ، او دا معامله مو وليده نو سخت خفه شو ، په دې کې ناڅاپه دا لومبړه لرې رابنکاره شوه په خُله يې ورسره د چرگې په شان شی ؤ ، هغه يې هلته واچول او لاړه ، مونږ گمان وکړو چې گني هغه يخ شوې چرگه يې واپس راوړه نو مونږ ورمنډه کړه ، چې راوايې خلو ، کله چې مونږ هلته ورغلو نو لومبړه په دې بل طرف راتاؤ شوه او د دسترخوان نه يې هغه بله يخ شوې چرگه هم اوتختوله ، بيا چې مونږ په کوم شي باندې د چرگې گمان کړې ؤ هلته چې ورغلو نو هغه د قجورو پوستکي وو چې د چرگې په شکل يې راغونډ کړي وو .

## د بنکاري سپي حيله

۱. علامه ابن جوزي رحمه الله په خپل کتاب " کتاب الاذکياء " کې نقل کړي چې بنکاري سپې کله هوسۍ اوگوري نو دې په کې د لرې نه روغه او ناروغه ، نر او ښځه پيژني ، خو دا سپې د نرې هوسۍ پسې منډه وهي ، اگر چې ده ته پته لږي چې د نرې هوسۍ ټوپونه او منډه د ښځې هوسۍ نه ډيره تيزه ده ، خو دې بيا هم د دې نرې هوسې د نيولو کوشش کوي ، دا ځکه چې دې سپي ته معلومه ده چې کله دوی منډه وهي نو د يَرې د وجې نه ورته تشې متيازې ډيرې زر ورځي (او دا خبره په هر حيوان کې شته چې کلهورباندې يَره راشي نو تشې متيازې ورله ورشي) .

او دا نره هوسۍ د ډيرې تيزې منډې په وجه په روانه کې تښې متيازې نښې کولی، نو د څه لږې منډې نه پس ددې تښې متيازې بندې شي، چې ددې په وجه ددې په منډه کې کمزوري راشي، او سپې يې راونيسي.

او ښځه هوسۍ اگر چې د نر په نسبت تيزه منډه نه وهي خو بيا هم د هغې منډه تر آخره پورې شان جاري وي، ځکه که هغې ته تښې متيازې ورشي نو په روانه روانه کې يې په آسانۍ سره کولې شي، نو سپې يې په آسانه نشي نيولی. (۱)

۲. بل دا چې کله په غرونو کې واوره اوشي نو دا سپې گوري چې کوم ځای واوره کمه وي او ويلې شوې وي نو دې پوهه شي چې ددې ځای لاندې د سَوُو (خرگوش) سوړه ده، نو دې هغه ځای راأوکني، او سوَه ښکار کړي. دا ځکه چې سپي ته پته ده چې د سَوو د ساگانو د گرمايش په وجه واوره ويلې کيږي، نو چيرته چې واوره کمه وي او ويلې شوې وي نو دې پوهه شي چې دلته لاندې د سوو سوړه ده. (۲)

## د مار حيله

په حيوة الحيوان کې ليکلي دي چې يو قسم مار دی، کله چې دې وږې شي، او د خوراک د پاره ورته څه نه ملاويږي، نو دې د غرمې په وخت کې په يو فراخه ميدان کې په خپلې لکۍ باندې أودريږي، خُله آسمان طرفته تاوّ کړي او ځان داسې جوړ کړي چې د لرې نه يو لرگې يا يو ښاخ معلوميږي، بعضې مرغۍ په دې باندې د لرگي گمان وکړي، او پرې کيني، نو دکيناستلو سره متصل دا مار هغه مرغۍ اونيسي او وې خوري. (۳)

## د مږې حيله

علامه ابن قيم رحمه الله ليکلي چې کله په يو لوخي کې غوړي وي، او مږه هغه غوړي څکل شروع کړي نو چې کله دا غوړي کم شي او دا مږه بيا هغې ته نشي وررسيدی، نو دا مږه ددې غوړو څکلو د پاره دا حيله جوړه کړي چې دا په خُله کې مسلسل أوبه راوړي او په

(۱) کتاب الاذکياء، لطائف علميه ص ۳۶۲.
(۲) کتاب الاذکياء، لطائف علميه ص ۳۶۲.
(۳) کتاب الاذکياء، لطائف علميه ص ۳۶۷

دې لوخي کې يې اچوي، چې په دې سره دا غوري پورته راشي او اُ به بنځيت لاندې شي. (ځکه د اوبو درَوندوالې د غوړو په نسبت ډير دی)، بيا دا مېږه دا غوړي او ځکي.(۱)

## د مرغانو حيلې

۱. " شيکره " يوه مرغۍ ده چې کله دا د شمشتی ښکار کوي نو شمشتی ورته ځان داسې بې حِسه او مړ کړي ګويا چې يو کانړې پروت دی، او س چونکه د دې ښکار کول مشکل شي، نو دا مرغۍ دا شمشتی په خپلو پَنجو کې اونيسي، او پاس په هوا کې يې اوچته کړي، او د هغه ځای نه يې په يو غټ کاڼي يا غَرباندې رااُوغورځوي، چې په دې سره شمشتی ټوټې ټوټې شي، بيا دا شمشتی هغه اُوخوري. دا د ربّ العالمين د رزق ورکولو او قدرت عجيبه ننداره ده.

۲. په هګۍ شاربَلو کې د مرغانو مختلف عادتونه وي، خو د شُترمُرغ دا عادت دی چې دې خپلې هګۍ په درې (۳) تقسيمه کړي، يو ځای په شګو کې خَښې کړي، بل ځای نمر ته واچوي، او باقي شاربَل شروع کړي.

کله چې د دې هګو نه بچي رااُوځي نو په نمرې چې کومې هګۍ پريخې وي شُتر مُرغ د هغې نه نرۍ ماده رااُوباسي او په خپلو بچو باندې يې څکي، کله چې بچي څه نا څه طاقت مند شي نو په شګه کې يې چې کومې هګۍ خښې کړې وې هغه رااُوباسي، ماتې يې کړي، بيا دې ته چې کوم مچان، ماشي او چينجي راجمع شي نو دا شتر مرغ دا شيان رانيسي او دې بچو ته يې د خوراک د پاره ورکوي.

کله يې چې دا بچي نور هم هوښيار شي نو بيا په خپلو مخلو کې ځان له په خپله خوراک پيدا کوي.

## د رنګ بدلوونکي حيوان " حرباء " (ګربوڼي) حيله

امام غزالي رحمه الله په خپل کتاب " الحکمة في مخلوقات الله تعالى " کې ذکر کړي چې د حرباء (دا يو قِسم کربوڼي دی چې په عربۍ ورته حرباء وايي) پيدائش هم په څه عجيبه طريقې سره شوی، دې چونکه سست حرکته پيدا شوی، د ښکار د پاره غټ ټوپ

(۱) شفاء العليل ۱/ ۲۰۰، الطريق الى الجنة ص ۳٦٦.

نشي وهلی ، نو په ظاهره ده ته خوراک پیدا کول مشکل وو ، خو الله ﷻ ده ته داسې صلاحیت ورکړی چې خپل رنګ په مختلفو رنګونو سره بدلولې شي .

نو چې د اُونې څنګه رنګ وي دې هماغه شان خپل رنګ جوړ کړي ، او د اُونې سره داسې پیوست اُونخلي ګویا چې دا یو بې ساه شی دی ، چپ چاپ ناست وي ، هیڅوک دا نشي معلومولی ، بیا یې ده ته داسې سترګې ورکړې چې بغیر ده د بدن د خوزیدو نه څلور واړه طرفه لیدل کولې شي ، او داسې ژبه یې ورکړی چې د درې (۳) لویشتو پورې لرې شی ځانته د ژبې په ذریعه راکاږي .

نو چې کله ددې سره نزدې مچ ، پتنګ یا بل شی تیریږي نو د بجلۍ د پړق په شان یې په تیزۍ سره په ژبه را اُونیسي ، او وې خوري ، بیا واپس غلې شي ، او داسې معلومیږي چې لکه ددې اُونې خپل پوستکې (پټ) وي .

نو دې په دې طریقې سره ځانته خپل خوراک حاصلوي ، خو چې کله یو خطرناک شی اوګوري چې ده ته نقصان رسوي نو دا خپل رنګ او شکل دومره بَد رنګ کړي چې د هغه نیوونکي شي ورنه نفرت پیدا شي ، او دا پریږدي . (۱)

ډیره عجیبه خبره داده چې که چیرته ددهٔ د وجود سره د سور رنګ یو شی اولږي ، نو په سیکنډونو کې دننه دننه ددهٔ غونډ رنګ تک سور شي ، او که شین یا تور یا سپین هر قسم رنګ ورسره اولږي نو متصل ددهٔ رنګ هماغه شان شي .

او که چیرته ددې حیوان د لکۍ سره سور شی کیښودې شي ، د خیټې سره یې سپین شی کیښودې شي ، او د سر سره یې شین شی کیښودې شي نو د هماغه مخامخ اندام رنګ د همدې شیانو په شان شي . (۲)

---

(۱) الحکمة في مخلوقات الله تعالی ص ۱۴۲ .

(۲) که چیرته یو کس ددې حیوان دا عجیبه حیرانوونکې ننداره په خپلو سترګو کتل غواړي نو په انټرنټ باندې هم ددې ویډیو د "حرباء" په نوم شته ، او د فیس بک ابوالشمس عفي عنه په نوم آئیډي کې هم دا او څه نورې ویډیوګانې شته ، کومې چې د الله ﷻ په عظیمو قدرتونو دلالت کوي ، شایقین یې کتلې شي .
ابوالشمس عفي عنه . فون نمبر : ۰۳۰٦ ۵۴۴۷۱۷۴

# د ماشي او هاتي مقايسه

ماشي ته دا معلومه ده چې زما خوراک وينه ده ، نو چې کله دې د خوراک د تلاش پسې رااوځي ، او يو حيوان يا انسان اوګوري نو ده ته پته لږي چې ددوی د څرمن لاندې زما خوراک دی نو دې خپل خرتم په څرمن کې دننه ننباسي او وينه ورنه راکاږي .(۱)

امام رازي رحمه الله د ماشي په وجود کې د الله ﷻ د قدرتونو تذکره کړی ، کومه چې څه اندازه امام غزالي رحمه الله هم ذکر کړی :

چې خلق هاتي ته اوګوري نو دده دې غټ والي ته حيران پاتې شي ، حالانکه دا وړوکې ماشې هم د هاتي نه څه کم او حيرانوونکې نه دی ، ځکه د هاتي څلور خپې ، يو خرتم او يوه لکۍ ده ، او د ماشي هر څه د هاتي نه زيات دي ځکه د ماشي شپږ خپې ، يو خرتم ، يوه لکۍ او څلور وزرې وي ، خو ددې وړوکوالي باوجود بيا هم الله ﷻ دا ماشې په هاتي غوندې غټ او زمري غوندې قوي حيواناتو باندې مسلط کړې وي ، هغوی چيچي او هيڅ ځان ورنه نشي خلاصولی .

بيا د ماشي خرتم د هاتي د خرتم په نسبت ډير وړوکې او نازکه دی ، او باوجود ددينه چې د ماشي غاخونه هم نشته خو بيا هم خپل خرتم د هاتي او ميښې په کلکه څرمن کې ننَباسي ، او د هغې نه وينه څکي ، ځکه الله ﷻ د ماشي د خرتم په سَر کې څه زهر پيدا کړي ، نودا ماشی چې په څرمن کيني نو هغه زهر په دې څرمن باندې واچوي ، چې په دې سره دا څرمن په سيکندونو کې دومره نرمه شي چې ماشې په کې خپل خرتم ننَباسي ، او وينه ورنه راکاږي .
بل په دې زهرو کې دا فائده ده چې په دې سره دې دا وينه په آسانه طريقې سره هضمولې شي . بيا دده حواس الله ﷻ په داسې طريقې سره پيدا کړي چې د انسان د حواسو نه تيز دي ، ځکه دده سترګې د شپې هم کار کوي ، د لرې ځای نه ورته د مرداري او انسان بُوي ورځي ، د لاس په معمولي حرکت هم پوهيږي .

(۱) کتاب الاذکياء ، لطائف علميه ص ۳۶۸ .

دغه وجه ده چې د لاس په معمولي حرکت په وجه په تيزۍ سره خپل خرتم د ځرمن نه راأوباسي ، او أوتختي .

دا ټول د رب العالمين عجيبه عجيبه قدرتونه دي . (۱)

## د پيشو حيله

پيشو چې کله پاس په چت باندې مږه اوګوري نو دا خو هلته ورپسې نشي ورختی . نو دا د لاندې نه خپل سَر مسلسل تاووي راتاووي ، مږه چې دې پيشو ته څه لږ وخت اوګوري نو په دې باندې ... ګرځي ، حيرانه او بې هوشه شي ، لاندې راأوغورځيږي او پيشو يې ښکار کړي . (۲)

## د ميږي حيله

کله چې يو کس څه خوږشی د ميږيانو نه ساتي نو اکثر يې په يو لوخي کې واچوي ، او په أوبو کې يې کيدي ، د دې دپاره چې د هر طرف نه ميږي نشي ورتللی .

کله چې ميږې د دې شي بُوی محسوس کړي او هر طرف ته د ورتللو کوشش وکړي خو د أوبو په وجه کامياب نشي ، نو دا ميږې په ديوال اوخيجي ، او په چت رارروان شي ، کله چې دې لوخي ته رابرابر شي نو د هغه ځای نه ځان راأوغورځوي ، او په لوخي کې د ننه خوراک ته ځان ورأورسوي . (۳)

## د زمري د ښکار طريقه

زمرې چې کله حمله کوي نو اول ورته ښه مضبوطه منصوبه جوړوي ، ډير کرته دې نهه نهه ګنټې دې د ښکار نيولو دپاره منصوبه جوړوي ، چې کله ورته سل فيصده يقين اوشي چې اوس رانه دا ښکار نشي بچ کيدی نو بيا ورباندې حمله وکړي ، او کوشش دا کوي چې خپل ځان زخمي نه کړي .

---

(۱) نزهة الناظرين فی الأخبار والآثار المروية عن الأنبياء والصالحين ص ۶۱۲ ، الحکمة فی مخلوقات الله تعالى .

(۲) کتاب الاذکياء ، لطائف علميه ص ۳۶۸ .

(۳) الطريق الى الجنة ص ۳۰۸ .

دغه وجه ده چې کله په يو ځای کې ډيرې غرڅنۍ غواګانې يا ميښې وي نو دې تر هغه وخته پورې پرې حمله نه کوي چې تر څو يې ورنه يوه راجدا کړې نه وي.

کله چې ښکار ورو کې وي نو دې يې په آسانه نيسي، خو که يو څاروی غټ او مضبوط وي نو زمرې د هغه په شاه باندې ورټوپ کړي، او په خپلو ژامبو سره ټينګه د هغه مرۍ اونيسي، ددې د پاره چې دده ساه بنده شي، او دماغو ته اکسيجن تلل بند شي.

بيا زمري ته پته وي چې دومره وخت د يو حيوان ساه بنده شي نو هغه مړ کيږي، کله چې حيوان مړ شي نو بيا د هغه په خوراک شروع وکړي.

د "زرافې" څټ چونکه ډير اوچت وي، زمرې که ورټوپ کړي نو بيا هم د هغې څټ ته نشي رسيدی، اوس چې زمرې ددې ښکار کول غواړي نو الله ﷻ زمري ته فطرتًا دا حيله خودلې چې دا زمرې ددې زرافې شاته پټ پټ روان وي، چې کله داسې د کندو کپرو واله علاقه راشي چيرته چې منډه نشي وهلی نو زمرې د زرافې پسې ورمنډه کړي، هغه چې دا اوګوري نو د يَرې نه تيزه منډه وکړي، نو په دې کندو کپرو سخته علاقه کې خو منډه نشي وهلی نو زرافه آخر راوَلويږي، زمرې ورټوپ کړي او د مرۍ نه يې اونيسي، ساه ورله بنده کړي، کله چې مړه شي نو بيا يې اوخوري.

## د حيواناتو د خپل ځان د حفاظت تدبيرونه

هر حيوان ته فطرتًا الله ﷻ داسې حيلې او تدبيرونه خودلي چې د هغې په وجه د د شمن نه د خپل ځان حفاظت کوي، لکه د نمونې د پاره درته د يو څو حيواناتو تذکره کوم، چې په هر حيوان کې درته د الله تعالى دا عظيم قدرتونه په نظر راشي.

## ليوه په يوه سترګه خوب کوي

علامه ابن جوزي رحمه الله ليکلي چې ليوه کله اُوده کيږي نو د ډير احتياط د وجې يې يوه سترګه پټه کړې وي او دويمه يې غړولې وي، بيا چې کله د يوې سترګې خُوب يې پوره شي نو هغه بيا اوغړوي او دا بله پټه کړي.

(يعنى ليوه د خُوب په شروع کې د ډير احتياط د وجې داسې کوي اګر چې خوب ورباندې غلبه وکړي نو بيا يې دواړه سترګې پټې کړې وي) .

عرب دليوه متعلق يوه محاوره استعمالوي چې " اَحْذَرُ مِنْ ذِئْبٍ " د ليوه نه زيات محتاط دغه رنګې يو شاعر د ليوه باره کې وايي :

يَنَامُ بِإِحْدَى مُقْلَتَيْهِ وَيَتَّقِيْ ❁ بِأُخْرَى الْمَنَايَا فَهُوَ يَقْظَانٌ نَائِمُ

ترجمه : ليوه په يوه سترګه اُوده کيږي ، او په بله سترګه د مرګ (او دشمن) نه ځان ساتي، نو دې په يو وخت ويخ هم وي ، او اُوده هم وي . (۱)

## د لومبړې حيلې

د لومبړې د خپل ځان د حفاظت ، د حيلو او چلونو دومره واقعات دي چې د هغې په اوريدو انسان حيران پاتې شي ، بلکه ډير هوښياران خلق ددې په حيلو باندې د پوهې نه عاجزه دي .

۱ . لومبړه چې ځانله په زمکه کې غار جوړوي نو په هغې کې دوه (۲) لارې پريږدي ، يوه د تلو راتلو دپاره ، او بله د خطرې په وخت د تختيدو د پاره .

خو ددې سره سره دې ځانته د زمکې څه حصه د دننه طرفه نرمه کړي هم وي ، دا ددې دپاره چې که چيرته څوک ددې دواړو لارو نه ددې تلاش شروع کړي نو دا په دغه نرمه زمکه کې سر وهلو سره بهر اووځي ، او ځان خلاص کړي .

دا د قدرت فطري تعليم دی چې په ليدو سره يې عقلمند حيران پاتې کيږي .

۲ . يوه پيره يو ليوه د لومبړې بچي اوخواره ، لومبړې چې دا وليده نو ډيره خفه شوه ، او ليوه ته يې څه حيله جوړه کړه ، چې په يو ځاى کې د همدې ليوه بچي هم وو ، او ورسره نزدې يو غټ دوغل وُ (چې خلقو د درندګانو د ښکار د پاره جوړ کړې وُ) .

نو دې لومبړې دې دوغل ته ورټوپ کړه ، بيا يې ځان له په کې دومره سورې اُوويست چې صرف دا پرې وتې شوه . بيا دا لومبړه راغله او د ليوه بچي يې مړه کړه ، او ورسره څنګ کې يې کيناسته ، او د ليوه د راتلو انتظار يې کولو .

---

(۱) الطريق الى الجنة ص ۲۹۲ ، کتاب الاذکياء ، لطائف علميه ص ۳۶۴ .

کله چې ليوه راغی او خپل بچي يې مړه وليده ، او يو طرف ته دا لومبړه هم ناسته وه ، ليوه پوهه شو چې دا کار دې لومبړې کړی ، نو د لومبړې د نيولو پسې يې رامنډه کړه ، لومبړه مخکې وه او دا ورپسې وُ ، تر دې چې دې لومبړې دې دوغل ته ورټوپ کړه ، د شاته نه ليوه هم ورپسې ورټوپ کړه ، لومبړه ورته په هغه سوري باندې اخوا اُووته ، ليوه په کې حيران پاتې شو ، نه خو ددې دوغل نه وتې شو ، او نه په هغه سوري وتې شو .

کله چې خلق راغله او په دې دوغل کې يې ليوه وليده نو هغوی دې مړ کړو . نو لومبړې د ليوه بچي هم مړه کړه ، او ليوه يې هم په خلقو مړ کړو .

۳ . په لومبړه کې چې کله ډيرې وَرکې (براغيث) اوشي نو دا په خُله کې د ځان سره وړی اونيسي ، او اُوبو ته راشي ، په اُوبو کې لږه ورښکته شي ، تر دې پورې چې ټولې ورکې دې وړی ته وراوخيجي ، نو دا لومبړه بيا دا وړی په اُوبو کې وراوغورځوي ، او د اُوبو نه پاکه صفا د ورکو نه راووځي .

## ميږې

علامه ابن قيم رحمه الله ذکر کړي چې يو لوهار د څه مقصد د پاره د اُوسپنې غټه کړی ګرمه کړه ، بيا يې په زمکه واچوله چې يخه شي ، اتفاقي ددې کړی په مينځ کې ميږې ګير شو ، دې به چې هر طرف ته تللو نو د اُوسپنې هغه ګرمائش به يې محسوسولو .

آخر دا چې دا ددې کړی په بالکل مينځ کې اودريده ، او تر هغه وخته پورې ولاړ وُ چې کله دا کړی يخه شوه نو بيا ورنه اووت . (۱)

## غرځنې هوسې

هوسې چې کله خپلې جالې ته ننوځي نو دا په شا طرف روانه وي (يعنی خپلې سورې ته په شا شا روانه وي او اول خپلې شاته خپې سورې ته داخلوي) . دا ددې د پاره چې په سترګو باندې بهر د خطرې شي اوګوري ، چې هسې نه څوک تکليف راته راورسوي . (۲)

(۱) شفاء العليل لابن قيم رحمه الله ص ۱۰۲ .

(۲) کتاب الاذکياء ، لطائف علميه ص ۳۶۸ .

# ځنګلي منګک (يربوع)

يو قسم ځنګلي منګک دی (کوم ته چې په عربۍ کې يربوع وايي) دې چې کله ځان له سُوره جوړوي نو په اوچت ځای کې يې جوړوي، ددې د پاره چې د اُوبو او د خلقو د قدمونو نه محفوظه وي.

بيا يې ځانته په دې سوره کې هر طرف ته ډيرې دروازې پريخې وي، بعضې يې د تلو راتلو ته پريخي وي، په بعضو کې بهر ګوري، بعضې د خاورې راويشتلو د پاره وي، او بعضې يې د خپل ځان د حفاظت د پاره پريخي وي خو په دې دروازو کې يې د زمکې د سَر او ددې دروازو په مينځ کې څه فاصله خاوره پريخې وي (يعنی هر طرف ته ښکاره سورې نه وي، بلکه څه نا څه خاوره بره پاتې وي).

کله چې دا څه خطره محسوسه کړي نو په آسانه سره هغه دروازه ځان ته په منډه کلاؤ کړي او پرې اووځي.[1]

# باره سنګا (غَرڅه)

کله چې د باره سِنګا ښکرونه او غوږځيږي نو په ظاهره ددې اَسلحه او د حفاظت شی ختم شي، نو دا بيا څه وخت پټه شي او بهر نه ګرځي، بلکه په خپل غار کې وي.

نو تر څو چې ددې ښکرونه پوره کيږي نو دومره وخت کې ددې په وجود کې وازګه هم زياته شوې وي، او څربه شي، چې ددې په وجه بيا منډه نشي وهلی.

نو دا ددې غټ والي ختمولو د پاره په نمر کې ډيره ګرځي راګرځي، کله چې ددې دا زياتي غوښه ختمه شي او منډې ته جوړه شي نو بيا بهر راووځي.

# اپاسم

۱. په جنوبي افريقه کې يو حيوان دی چې آپاسم ( opossum ) ورته وايي، په جسم کې د پيشو هومره دی، او لکۍ يې د منګک په شان ده. کله چې په دې باندې بل شی حمله کول

(۱) کتاب الاذکياء، لطائف علميه ص ۳٦۷.

اوغواړي نو دا د خپل ځان د حفاظت په خاطر ځان بې هوشه او مړ کړي، ددې د پاره چې هغه دشمن حیوان وریاندې د مړ گمان وکړي.

ځکه بعضې شیرونکي حیوانات مرداره نه خوري، نو ځکه دې ځان مړ کړي. بیا شل یا پنځه ویشت مِنټه پس دې د سترگو په کونج کې اوگوري چې څه خطرناک شی خو نشته، چې کله یې یقین راشي چې څه نشته نو راپاڅي او منډه کړي، او اُونې ته اوخیجي.

دې کې چې کوم ښځه حیوان دی هغه په کال کې دوه پیرې بچي زیږوي، او په هره پیره کې اتلس (۱۸) بچي زیږوي، ددې ښځې په خیټه کې د تیلۍ (گوتې) په شان ځای وي، دا په هغې کې تر د سلو (۱۰۰) ورځو پورې خپل بچي ساتي. (۱)

۲. ددې نه علاوه نور ډیر داسې واړه واړه حیوانات او حشرات شته چې څوک ورله معمولي گوتې یا بل شی وَروړي نو ځان مکمل مړ کړي، او د کاڼي غوندې ځان بې حِسه کړي، څه وخت پس چې کله خطر ختم شي نو راپاڅي، او روان شي. دوی دا کار ځکه کوي چې ښکار کوونکې وریاندې د مړ گمان وکړي او پرې یې ږدي.

## زمرې

۱. زمرې چې کله دا محسوسه کړي چې هسې نه څوک زما ددې قدمونو د نښو په وجه د ماپسې شاته راشي او زما ځای معلوم کړي نو هغه په تللو تللو کې په لکۍ باندې د خپلو قدمونو نخې ورانوي، ددې دپاره چې هسې نه څوک ددې قدمونو د نښو په وجه راپسې راشي او نقصان رااُونه رسوي.

۲. زمرې د ځنگل بادشاه وي، دې چې چیرته اوسیږي نو دده د پاره یوه خاصه علاقه وي چې په هغې کې دننه د بل پرَدي نَرزمري د اوسیدو گنجائش نه وي، البته ښځه زمرۍ ورسره اوسیږي.

زمرې چې په کومه خاص علاقه کې اوسیږي نو دې د هغې حدود او بونډرۍ په داسې طریقې سره جوړوي چې په روانه روانه کې ځای په ځای لږې لږې تشې متیازې کوي، نو ددې تشو متیازو نه یو خاص قسم بُوی ځي چې نور حیوانات اوزمرې یې محسوسوي، کله

(۱) عجائبات عالَم ص ۳۵۸.

چې د بلې علاقې زمرې دلته راأورسي نو دا بوی محسوس کړي، پته ورته ولږي چې دلته د بل زمري د علاقې حدود شروع شو، نو که چيرته دې ورداخل شي نو هغه زمرې ورباندې حمله کوي، اوس چې څوک يې ختم کړو نو ددې بل حکومت په دې علاقه شروع شي.

## مرغۍ

۱. بعضې ښکاريان وايي چې کله مونږ يوه مرغۍ په ديوال اوګورو چې ناسته ده، نو مونږ هسې هغې ته په لاس باندې د ويشتلو اشاره وکړو (يعنی په لاس کې مو کاڼړي نه وي خو هسې د ويشتلو اشاره ورته وکړو) نو دا مرغۍ نه آلوځي.

دير کرته په زمکه څه کاڼړي نه وي او مونږ زمکې ته لاس ښکته کړو او هغې ته دا ښايو چې ګني کاڼي راخلم خو دامرغۍ بيا هم نه آلوځي.

او که چيرته په زمکه يقيني کاڼړي پروت وي او مونږ ددې کاڼي د راخيستو اراده وکړو، او لاس ورښکته کړو، نو د کاڼي د راخيستو نه مخکې دامرغۍ والوځي. (۱)

۲. په بعضو علاقو کې يو بوټې کيږي هغې ته سُنبل وايي، او د هغې جَرړو ته چُوبِ چيني وايي، داجرړې د زخم د پاره ډيرې مفيدې دي، او د حکيمانو سره هم پيدا کيږي، کله چې دا ځنګلي مرغۍ زخمي شي نو ددې بوټي جرړې راأوباسي او د خپل زخم سره يې أولږوي چې په دې سره ددې زخم جوړ شي.

دير ښکاريان وايي چې مونږ دا چوب چيني د بعضو مرغو په جالو کې هم ليدلی چې د خپل زخم د پاره يې راوړې وي.

## مکر مچه

کله چې د مکر مچه په غاښونو کې د غوښې ښَتو په وجه چينجي اوشي، او ده ته تکليف ورکوي نو دا د أوبو نه راووځي، او په أوچ ځای کې ځان داسې جوړ کړي لکه مړ. خُله يې وازه کړې وي، مرغۍ ورباندې دا ګمان وکړي چې ګني دا مړ دی، نو مرغۍ ده په غاښونو کې ځان له چينجي راټولوي.

---

(۱) کتاب الاذکياء، لطائف علميه ص ۳٦٥.

کله چې مگرمچه ته پته ولږي چې غابونه مې د چینجو نه صفا شو نو ناڅاپه خُله رابند ه کړي ، او هغه موجوده مرغۍ هم اُوخوري .

مگر مچه د اُوبو په حیواناتو کې بدترین شی دی چې ډیر خطرناک دی ، په هر حیوان باندې زره وَر ورځي او خوري يې ، البته سمندري سپې ددې سخت دشمن دی ، او ددې نه مگرمچه ویریږي هم ، نو دا سمندري سپې ورسره دا حیله وکړي چې ځان په خټه کې اُولړي ، او مگر مچه چې کله اُوده کیږي نو خُله يې وازه کړې وي ، نو دا سپې ناڅاپه په ددې خُله کې ورننوځي ، او ددننه کولمې يې اُوشلوي ، چې په دې سره مگرمچه مر شي ، بیا سپې ددې مگرمچه خیټه اوشلوي او د هغې نه رااُوځي . سبحان الله

## د حیواناتو د خپلو بچو د حفاظت د پاره تدبیرونه

هر حیوان ته الله ﷻ د خپلو بچو د حفاظت فطري تعلیم ورکړې وي ، ددې یو څو نمونې ستاسو د وړاندې بیانوم چې په اوریدو سره يې د انسان په زړه کې د الله ﷻ معرفت پیدا کیږي ، ایمان يې مضبوطیږي او الله ﷻ طرف ته متوجه کیږي .

## د مؤنث هاتي په اُوبو کې لنګیدل

کله چې د مؤنث هاتي ( هاتنې ) د لنګوال ( یعنی بچي زیږولو ) وخت رانزدې شي نو دا اُوبو له لاړ شي ، او هلته په اُوبو کې لنګیږي .

دا ځکه چې په ټولو حیواناتو کې واحد حیوان مؤنث هاتي دی چې دې په ولاړه لنګیږي ، وجه دا ده چې ددې مفاصل د نورو حیواناتو په نسبت بدل دي .

هاتي خو چونکه لوړ وي ، نو اُوس که چیرته په ولاړه ددې بچې اوشي نو ددې سره دا یَره وي چې هسې نه بچې په زمکه راغورځیدو سره مړ شي ، یا خراب شي ، نو ځکه دا د لنګوال په وخت اُوبو ته ځان رسوي . اوس په اُوبو کې که چیرته دا بچي رااُوغورځیږي نو هم نه خرابیږي ، ځکه اُوبه ددې د پاره د نرم فرش په شان دي .

## د مرغو د بچو حفاظت

۱. علامه ابن جوزي رحمه الله ليکلي چې کله د کونترې يا نورو مرغو بچي د هگۍ نه راووځي، نو ددې بچو تالو نختې وي، خوراک په کې لاندې معدې ته نه ځي، نو دا مرغۍ اول خپله مخوکه ددې بچي په مخوکه کې ورکړي، او ترهغې وخته پورې ورله په ځله کې پُوکې وهي چې تالو يې کلاؤ شي، نو بيا دا مرغۍ ځي او دې له نرم او پوست خوراک پيدا کوي، او ورکوي يې. (۱)

۲. بل دا چې دا مرغۍ ځان له په اُونو کې داسې مضبوطې او محفوظې جالې جوړوي چې يو ماهر انسان يې د مشينرۍ په زريعه هم نشي جوړولی.

۳. د چَرچڼې يا نورو مرغو بچي چې اول آلوتل شروع کړي، او په يو ځای کې رااُوغورځيږي نو دا چرچڼره فرياد او مدد طلب کول شروع کړي، خواؤ شا چې څومره چرچڼرې وي هغه ټولې راجمع شي، هغه ټولې ددې وړوکي بچي نه گير چاپيره الوځي، ده ته حرکت ورکوي، او دده نه د آلوتلو مطالبه کوي، تر دې پورې چې دا بچې هم د دوی سره والوځي، نو بيا ټولې خورې شي.

۴. دغه رنگې که چيرته د کارغه يا د بلې مرغۍ بچي انسان اونيسي، نو په شريکه باندې دا مرغۍ د انسان د پاسه گرځي، ددې بچي د خلاصولو کوشش کوي، او يو قِسم اِحتجاجي جلوس هم کوي.

دا ټول د رب العالمين د قدرت عجيبه کرشمې دي.

## د بچي د پيداکيدو نه پس د حيواناتو وهل کول

۱. په کورونو کې خلق غوا، ميښه وغيره ساتي، دوی هيڅ وهل نه کوي، خو چې کله د دوی بچي اوشي نو بيا ددې بچو د حفاظت په خاطر وهل شروع کړي، او اکثر څوک نزدې نشي ورتللی، دا ددې د پاره چې څوک دې وړو بچو ته نقصان اونه رسوي.

۲. دغه رنگې چې کله د چرگې سره بچي وي نو ديته هم څوک نزدې نشي ورتللی، که څوک ورشي نو دا چرگه ورباندې حمله وکړي، دا هم د خپلو بچو د حفاظت په خاطر.

---

(۱) کتاب الاذکياء، لطائف علميه ص ۳۶۵.

۳. دغه رنګې چې کله د پیشو بچي پیدا شي نو د پیش یا نورو خطرو نه د حفاظت د پاره پیشو دا بچي په خُله کښې ګرځوي راګرځوي، او ځایونه ورله بدلوي، دا ددې د پاره چې دیته بل څه شی نقصان او نه رسوي.

## د غرځنې چیلۍ د خپلو بچو سره مینه

د ځنګلي چیلۍ د خپلو بچو سره دومره مینه وي چې که چیرته څوک ددې چیلۍ بچې ښکار کړي او ژوندي یې اونیسي او راروان یې کړي نو دا چیلۍ ددې سړي پسې شته راروانه وي، ګویا د ډیر محبت په وجه دا چیلۍ د خپل ځان پرواه هم نه ساتي خو د خپل بچي سره یو ځای اوسیدل غواړي نو ځکه ورپسې راروانه وي.

بل دا چې په دې ځنګلي چیلو کښې د خپل مور او پلار سره د حُسنِ سلوک ماده هم شته. دغه وجه ده چې ددې چیلو مور او پلار چې کله ډیر کمزوري شي او خوراک نشي میده کولې نو دا چیلۍ یې اول په خپله خُله کښې میده کړي او بیا یې دې مور او پلار له ورکوي.

## ښاپیرَک

په حیوة الحیوان کښې لیکلي چې د ښاپیرک (توتکرکې - چې په عربۍ کښې ورته خطّاف وایي، او اکثر په جُماتونو د ختې نه ځان له جاله جوړوي، ددې) بچو ته چې کله د یَرقان (زیړي) بیماري اُولږي، نو دا لاړه شي، او یو خاص قِسم کاڼې دی (چې په هندوستان کښې ډیر پیدا کیږي) هغه راوړي، او په دې جاله کښې یې کیږدي، چې په دې سره ددې د بچو یَرقان صحیح شي. بعضې خلق ددې مرغو جالې صرف ددې کاڼي د پاره لټوي، ځکه دا کاڼې د یَرقان بیمارۍ د پاره ډیر مفید دی.

بعضې خلق ددې کاڼي حاصلولو دپاره دا حیله کوي چې د ښاپیرک په بچو باندې زعفرانو زیړ رنګ اوسړي، کله چې ښاپیرک دا خپل بچي په زیړ رنګ کښې اوګوري نو داګمان وکړي چې ګني په دوی باندې د ګرمۍ نه یرقان راغلی، نو دا لاړ شي او دغه ورو کښې کاڼي راوړي (کوم چې د سنونو په نوم سره مشهور دی، په دې کښې سرې توربخنې کرخې وي)، بیا دا کاڼی په جاله کښې کیدي چې دا د یرقان د پاره فایده مند دی، نو دغه حیله کوونکي خلق ورشي او دا کاڼې د جالې نه راواخلي، او په خپل استعمال کښې یې راولي.

ارسطو په خپل کتاب " كتاب النعوت " کې ليکلي چې کله دابابيل د سترګو نظر کمزورې شي نودا د عين الشّمس نومې اُونې نه خوراک وکړي چې په دې سره ددې نظر واپس خپل ځای ته راشي ، ځکه په دې اُونه کې د سترګو د قوت اجزاء دي .

## په نورو حيواناتو او مخلوقاتو کې د الله ﷻ د قدرت نخې

## د کارغه بچي ته خوراک رسول

د کارغه په باره کې راځي چې کله دده بچي اول دهګۍ نه راووځي نو هغه په رنګ کې سره او سپين وي ، ځکه لا تر اوسه پرې بنړې نه وي راختلي . کارغه چې دا اوګوري نو داګمان وکړي چې دا خو زما بچي نه دي ، نو دا ورنه لاړ شي ، اوس دا بچي په ظاهره بې پالنې پاتې شو ، ربّ العالمين د دوی د خوراک د پاره دا ذريعه جوړه کړی چې ددې بچي د مخو کې په غارو کې يې زير بخَنه غوبنه پيدا کړی ، ده خُله وازه کړې وي ، کله چې ماشې يا بل شی دا غوبنه اوګوري نو دوی دا ګمان کوي چې ګني دا زمونږ د خوراک څه شی دی ، هغه پرې کيني ، د کارغه دا بچي پرې خُله رابنده کړي ، او وې خوري ، په دې طريقې سره ده ته خوراک رسولې شي ، څو ورځې پس چې کارغه راشي نو په دوی باندې بنړې راختلي وي ، نو بيا ورله هغه خوراک راوړي .

## د حيواناتو بچو ته فطري تعليم

کله چې په ځنګل يا صحرا کې د يو چيلۍ يا بل حيوان بچې پيدا شي نو دوه (۲) ګنټې پس دا بچې د شودو ( پيو ) څکلو د پاره ددې چيلۍ لاندې په داسې عجيبه طريقې سره ګنډې اولړوي چې ډير ماهِر کس هم هغه شان نشي کولی .

بيا د هغې تيونه په خُله کې ونيسي ، او شوده ورنه څکي ، عجيبه داده چې دا بچې ولې ددې چيلۍ لکۍ په خُله کې نه نيسي ؟ ددې غوږ يا بل ځای ولې په خُله کې نه نيسي چې صرف تيونه يې نيسي ؟ دا ټول د رب العالمين د قدرت ننداري دي .

## د حضرت عقبه بن نافع رضي الله عنه د ځنګل حيواناتو ته خطاب کول

کله چې حضرت عقبه بن نافع رضي الله عنه اِراده وکړه چې د قيروان ښهر فتح کړي نو خلقو ورته وويل چې دې ښهر ته لاره په دې ځنګل ورغلې، او په دې کې قِسما قسم خطرناک حيوانات دي، سړي تللو ته نه پرېږدي. ده ورته وويل: دا حيوانات د الله ﷻ د لښکرو (مخلوقاتو) نه يو لښکر دی، او مونږ د دوی نه بهترين لښکر يو، بيا په يو اُوچت ځای باندې اُودرېده، او دا آوازې يې وکړو:

أيتها الوحوش. أيتها الأسود. أيتها الأفاعي. إنا أصحاب محمد صلى الله عليه وسلم جئنا لإعلاءِ كلمة "لا إله إلّا الله" فأفسحوا لنا الطريق.

اې د ځنګل وحشي ځناورو، اې زمريانو، او اې اَژدهاګانو! مونږ د محمد رّسول الله ﷺ صحابه يو، د دې د پاره راغلي يو چې د "لا إله إلا الله" کلِمه اوچته شي (يعنی اعلاء د کلمة الله اوشي)، تاسو مونږ ته لاره کلاؤ کړئ.

د دې اعلان اوريدو نه روستو د ځنګل وحشي ځناور، زمريان او ماران ټول د ځنګل نه ووت، د ځانونو سره يې خپل بچي هم اخيستي وو، او د الله ﷻ لښکر (صحابه کرامو) ته يې لاره کلاؤ کړه. تر دې چې صحابه کرام دې ښهر ته داخل شو. (۱)

---

(۱) وهذا عقبة بن نافع رضي الله عنه الذي لما أراد أن يفتح مدينة القيروان. فأخبروه أن بها سباعًا و وحوشًا على مداخل المدينة. ولن تستطيع دخولها. فقال: كلّا إنّ هذه الدّواب جندٌ من جنود الله. ونحن خير جند الله. فقام على صخرةٍ عاليةٍ. ونادى. وقال: أيتها الوحوش. أيتها الأسود. أيتها الأفاعي إنا أصحاب محمد صلى الله عليه وسلم جئنا لاعلاء كلمة "لا إله إلا الله" فأفسحوا لنا الطريق. فخرجت الوحوش والأسود والحيات تحمل ولدانها وأفسحت الطريق لجند الله. فدخلوا المدينة. الطريق الى الجنة ص ۴۰۰. / همدغه شان يو بله واقعه هم نقل ده: **قصة الاسد مع "سفينة" مولى رسول الله ﷺ**: وخلاصة القصة أنّ "سفينة" مولى رسول الله ﷺ قال: ركبت البحر فانكسرت بي سفينتي التي كنتُ فيها. فركبتُ لوحًا من ألواحها. فطرحني اللوح الى أجمة فيها الأسد. فدخلت. فخرج الي الأسد. فأقبل الي. فقلتُ: يا أبا الحارث! أنا مولى رسول الله ﷺ فطأطأ رأسه. وأقبل الي يدفعني بمنكبيه. فأخرجني من الأجمة. ووقفني على الطريق ثم همهم. فظننتُ أنه يودعني فكان هذا آخر عهدي به. الطريق الى الجنة ص ۳۹۸.

## يوه عجيبه اُونه

۱. صاحب د "نوادر الكتب" په خپل كتاب كې دا خبره ذكر كړې چې په جنوبِ چين كې يوه نا آشنا اُونه ده چې په عامو حالاتو كې ددې پاڼې د نورو اُونو د پاڼو په شان شنې وي، خو د آسمان نه د باران، يا ګلې وغيره راتلو نه مخكې مخكې ددې اُونې پاڼې تكې سرې شي.

ګويا چې دا اُونه د هغې ځاى د خلقو د پاره د فضائي اَحوالو معلومولو د پاره يوه بهترينه آله ده. (۱)

۲. په برما كې يو بوټي دى چې د هغې ځاى خلق ورته "پيډانګ" وايي، دا بوټې د سائنسي آلاتو بيرو ميټر په ځاى كار وركوي، ځكه چې كله ددې غوټې كلاؤ شي نو دا غټه علامه ددې وي چې په دې آينده شواروز كې به باران كيږي، او دا خلقو په خپلو سترګو ليدلې هم دى.

## د انسانانو د ويښتانو په شان پاڼې

په استريليا كې يوه اُونه ده چې د هغې پاڼې بالكل د انسانانو د ويښتانو په شان دي، چې ورته د ويښتانو واله اُونه وايي. (۲)

## ګوشت خُور اُونه

۱. په دې اُونو كې يو قِسم اُونه ده چې هغې ته ګوشت خور يا كوزه ګر اونه وايي (په انګلش كې ورته picher plants وايي)، ددې پاڼې د جَګ يا كوزې په شان دي، په دې پاڼو كې يو قسم مواد پيدا كيږي چې د هغې په وجه دا د زمكې حشرات هغې ته د ورتللو كوشش كوي، خو چې څنګه دا حشرات هغې موادو ته اورسي نو هملته مړه شي، او دا پاڼې دا حشرات د خپلې غذا په طور جذب كوي.

---

(۱) الطريق الى الجنة ص ۳۵۴.

(۲) عجائباتِ عالَم كا انسائكلو پيډيا ص ۲۵۶، ۴۱۴.

۲. دغه شان يوه بله اُونه ده وينس فلايي تريپ ورته وايي، اَزغي داري پاڼې يې دي. کله چې په دې باندې څه شی کيني نو دا پاڼې پرې د شکنجې غوندې رابندې شي، او دا شی بيا ددې اُونې خوراک جوړ شي. (۱)

## زهريله اونه

د دُنيا د ټولو نه خطرناکه اُونه "کوکومبر" ده چې څوک ددې سره لاس اولږوي نو دا ورباندې خپل تخم او زهريله ماده رااُوشيندي چې په هغې سره انسان فورًا مړ کيږي. (۲)

## د پَتري (بليډ) په شان تيره ګياه

د براعظم افريقا په يو ملک "يوګنډا" په ځنګلاتو کې يو قسم ګياه ده چې بالکل د تار په شان نرۍ او د پَتري (بليډ) په شان تيره ده، د هغې علاقې خلق دا د بليډ په ځای استعمالوي، او ويښتان پرې خرَيي.

## عجيبه کاڼې

د سرانديب په جزيرو کې يو قسم ښائسته کاڼي پيدا کيږي چې د هغې ځای خلق ورته "ذربارا" وايي، او په فارسۍ کې ورته "جاذِب موشان" وايي، چونکه په دغه جزيرو کې مَنګکان زيات دي، او پيشوګان نشته، نو خلق په کورونو کې دا کاڼي ساتي، ددې کاڼي خاصيت دادی چې کله منګک ددې سره نزدې تير شي نو فورًا بې هوشه شي، او يو څو مِنټه پس مړ شي. (۳)

## عجيبه ماهي

۱. په درياب کې يو قِسم ماهي دی چې "جيلي فِش" ورته وايي، ددې ماهي د بدن نهه نوي (۹۹) فيصده حصه اُوبه وي، که چيرته دا ماهي بهر نمر ته واچولې شي، نو څه لږ وخت پس ټول وِيلي کيږي، تر دې چې وجود يې بالکل ختم شي.

(۱) عجائباتِ عالَم کا انسائکلو پيڈيا ص ۳۳۶، ۳۶۱.

(۲) عجائباتِ عالَم کا انسائکلو پيڈيا ص ۳۴۷.

(۳) عجائباتِ عالَم کا انسائکلو پيڈيا ص ۳۲۲

ددې ماهي د سختې حصې نه د جړو په شان نري تارونه تللي وي، په هغې کې زهريله ماده وي چې ددې په وجه نور حيوانات دا ماهي نه خوري.

کله چې په سمندر کې غټ ماهي راشي نو د سمندر دا واړه ميان اکثر د خپل ځان د حفاظت د پاره ددې جيل ماهي په تارونو کې پناه اخلي، او ددې په وجه يې د غټ ماهي نه ځان بچ کړې وي.

۲. دغه شان په درياب کې يو بل ماهي دی چې "شارک ماهي" ورته وايي، دې ډير تيز رفتاره او خطرناک ماهي دی، دې د پنځه سوه او پنځوس (۵۵۰) گزه فاصلې نه آواز په آسانۍ سره اوري، د نيم ميل فاصلې نه د ښکار بُوی ورځي.

که چيرته دده ښکار دده نه په شگه کې هم پټ شي نو دده د جسم نه داسې برقي شعاوی اُوځي چې دې د شگو لاندې هم خپل ښکار طلب کولې شي.

۳. دغه رنگې د جنوبي امريکه په سمندري علاقو کې داسې يو ماهي دی چې هغې ته پرانا ( piranha ) وايي، د بليډ (پَتري) غوندې تيره او مضبوط غابښونه يې دي، او دومره خطرناک دی چې کله انسان يا حيوان مخې ته ورشي نو په څو منټونو کې دننه دننه ورنه ټوله غوښه اُوشلوي او ختم يې کړي.

## عجيبه ليوه

په مغربي امريکه کې يو ليوه دی چې هغه د خپلې لکۍ رنګ بدلولې رابدلولې شي، په ګرمۍ کې يې يو شان رنګ وي، او په يخنۍ کې يې بل شان رنګ وي.

## عجيبه مار

۱. د امريکې په رياست د آرکنساس په يوه علاقه لټل راک کې يو قسم ماران دي چې نور ټول مار وي خو سَر او مخ يې د انسان په شان وي.

۲. د اندونشيا په يو پارک کې يو غټ مار دی چې د هغه وزن څلور نيم سوه (۴۵۰) کلو دی، پنځلس (۱۵) فټه اُوږد، او څلويښت (۴۰) اِنچه پلن دی، غټ مار دی، دې د سپُو خوړلو شوقي دی، په يو وخت کې پنځه (۵) سپي په آسانه خوړلې شي.

# عجیبه مرغۍ

۱. مولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله په خپله یوه رساله "اَلْاِلْتِبَاهَاتُ الْمُفِیْدَة عَنِ الْاِشْتِبَاهَاتِ الْجَدِیْدَة" کې، او دغه رنګې صاحب د "فیروز اللغات" دواړو د یوې مرغۍ "قُقْنُسْ" متعلق عجیبه خبره لیکلې:

چې "قُقْنُسْ" یوه خوش آوازه مرغۍ ده، ددې په مخوکه کې ډیر سُوري دی، کله چې ددې د مرګ وخت رانزدې شي نو دا د اُوچ خشاک (وَښو) د پاسه کیني، او یو قِسم ښائسته آواز د خُولې نه را اُوباسي، دې آواز سره ددې د مخوکې نه اُور رااُوځي چې په دې سره دا اُوچ خشاک اُور واخلي، نو دا مرغۍ د همدې خشاک د پاسه اُوسوزي او اِیره شي. کله چې په دې اِیره باندې باران اُوشي نو د الله ﷻ په قدرت سره په دې اِیره کې اتهومیتک هګۍ پیدا شي، او د هغې نه بیا نور بې شماره "قُقْنُسْ" پیدا کیږي. (۱)

۲. په فلپائن کې یوه مرغۍ ده چې هغې ته "بیا" وایي، ددې په جاله کې د شپې تیاره نه وي، بلکه همیشه په کې رڼا وي، ځکه دا همیشه د اُور اُورکي د نیولو کوشش کوي، چې کله دا مرغۍ دا اُور اُورکي اونیسي نو خپلې جالې ته یې راوړي، دې مرغۍ د خپلې جالې پورتنۍ حصه په داسې انداز باندې د نري نري دکو نه جوړه کړې وي چې دا اُور اُورکي د هغې نه نشي راوتې، په داسې طریقې سره یې ډیر اُور اُورکي راوړي وي، هغوی رڼا کوي، او دا ورته لاندې پرته وي. (۲)

---

(۱) الالتباهات المفیده عن الاشتباهات الجدیدة ص ۱۸ اصول موضوعه اصل نمبر ۳، رنګین فیروز اللغات اُردو جامع ص ۱۰۱۸. مولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله په همدې رساله کې یوه بله عجیبه خبره هم لیکلې کومه چې د الله ﷻ په عظیمو قدرتونو دلالت کوي، دې وایي چې کله چینډخه مره شي او دا اُوچه شي، بیا ته هغه داسې اُوتکوی (او میده یې کړی) چې مکمل اِیره شي، کله چې د پَشه کال باران اوشي او ته د اُوبو یو ډَنډ ته دا اِیره وَر واچوی نو د الله ﷻ په قدرت سره به ددې نه په سوونو چینډخان پیدا شي. الالتباهات المفیده عن الاشتباهات الجدیدة ص ۱۸

(۲) عجائباتِ عالَم کا انسائکلو پیدیا ص ۱۵۷.

# اوږده ورځ ، او اوږده شپه

۱. د ناروې په ښهر " هميرفسټ " کې د څوارلسم (۱۴) مئ نه تر د ديرشم (۳۰) جولائي پورې مسلسل ډُهوپ وي يعنې نمر نه ډوبيږي.

يا د اتلسم (۱۸) نومبر نه تر د ديرشم (۳۰) جنورې پورې مسلسل تياره وي ، نمر نه راخيجي.

۲. دغه شان د سويډن يو ښار "کرناتوې" هم دی چې په دې کې نمر پنځوس (۵۰) ورځې نه ډوبيږي ، او چې کله ډوب شي نو بيا پنځوس (۵۰) ورځې نه راخيجي. (۱)

# د مرګ په وخت د ځناورو يو طرف ته کيدل

ځنګلي ځناور چې کله سخت ناروغه شي ، او محسوسه کړي چې مرګ نزدې دی ، نو يو پټ ځای ته ځان اورسوي ، او بيا هم هلته مړ شي ، ګويا چې دوی هم د انسانانو غوندې خپل مړه لاشونه څه نا څه پټوي.

که داسې نه وی نو بيا به په ځنګل کې په سوونو ډانچې پرتې وی ، حالانکه ځنګل د مختلف قسمه ځناورو نه ډک وي ، او د ورځې په کې په سل هاؤ ځناور مري ، خو بيا هم په مشکله د دوی ډانچې او هډوکي پيدا کيږي.

# خلاصه

خلاصه دا چې الله ﷻ په مخ د زمکه مختلف قِسمه حيوانات پيدا کړي ، بعضې په کې داسې دي چې شپه او ورځ محنت کوي ، او د رزق پيدا کولو دپاره مختلف حيلې کوي ، او بعضې په کې متوکّلين دي چې هيڅ حيله نه کوي.

بعضې په کې داسې دي چې د انسانانو سره مانُوس وي او محبت ورسره کوي ، او بعضې داسې دي چې د انسانانو نه سخت نفرت لري او تختي ورنه.

بعضې په کې صرف پاکيزه خوراک کوي ، بعضې خالصه مرداره خوري ، او بعضې دواړه خوري.

(۱) عجائباتِ عالَم کا انسائکلو پيڈيا ص ۸، ۳.

بعضې په کې په ډيرو کارونو پوهيږي، او بعضې په هيڅ شي نه پوهيږي.

بعضې په کې ډير زر تعليم قبلوي، بعضې يې لږ وخت پس، او بعضې يې د سره تعليم نه قبلوي.

بعضې په کې هغه دي چې تکليف ورنکړي نو ضرر نه در رسوي، او بعضې په هر حالت کې ضرر در رسوي.

بعضې په کې داسې کينه لرونکي دي چې تکليف ورکړې هغه نه هيروي، او بعضو ته د سره تکليف ورکول ياد نه وي.

بعضې په کې د سره غُصه کيږي نه، بعضې چې غصه شي نو بيا يې غصه نه په آرام کيږي، او بعضې د غصې نه پس ډير زر راضي کيږي.

بعضې په کې داسې دي چې اِحسان او ښيګړه پيژني، او بعضې په هيڅ شي نه پوهيږي.

بعضې په کې داسې دي چې د خوراک ځاۀ او مومي نو د خپل ځان په نسبت نورو ته ترجيح ورکوي، او بعضې په کې ځان ته نژدې هيڅوک نه پريږدي.

بعضې په کې شپه او ورځ د خپلو بچو تربيت کوي، بعضې خپل بچي ضائع کړي او د نورو د بچو تربيت کوي، او بعضې د سره خپل بچي پيژني نه.

بعضې په کې نر او ښځه دواړه د بچو تربيت کوي، او بعضې صرف ښځه د بچو تربيت کوي.

بعضې حشرات په کې ځان له د يو کال خوراک ذخيره کوي، او بعضې په کې توکل کوي صرف د يوې ورځې خوراک برابروي.

دا ټولې خبرې د الله ﷻ په خالقيت، د هغه په عظيمو قدرتونو او حکمتونو باندې دلالت کوي.

## د غونډ تقرير خلاصه :

د ټول تقرير خلاصه دا شوه چې کله يو انسان د الله ﷻ په مخلوقاتو کې غور او فکر کوي، او په دې کې د الله ﷻ د قدرت نخې ګوري، نو په دې سره دده په زړه کې د الله ﷻ عظمت پيدا کيږي، ايمان يې مضبوطيږي، او زړه يې د الله ﷻ د معرفت نه ډکيږي.

او دا يو لوي عبادت دی، ځکه په دې سره انسان ته د الله ﷻ صحيح معرفت ورنصيبه کيږي، او حديث کې راځي:

رَأْسُ الْعِلْمِ مَعْرِفَةُ اللهِ . د ټولو نه لوي علم د الله ﷻ معرفت دی (چې دا دغونډ علم خلاصه او نچوړ دی).

## دُعا

الله تبارک وتعالی دې مونږ ته په دې مخلوقاتو کې د عبرت د پاره د غور او فکر کولو توفيق رانصيبه کړي، او زمونږ په زړونو کې دې هم الله ﷻ خپل عظمت او معرفت واچوي، او د صحيح عبادت کولو توفيق دې راته رانصيبه کړي.

آمِيْن يَارَبَّ الْعَالَمِيْن .

وَآخِرُ دَعْوَانَا أَنِ الْحَمْدُ لِلهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ

# د شهدو په مچۍ کې د الله د قدرت څه نور عجائب

علامه ابن قيم رحمه الله د شهدو په مچۍ کې د الله ﷻ د قدرتونو او حکمتونو عجيبه نخې نخانې ذکر کړې:

دې وايي چې د شهدو مچو معامله ډيره عجيبه ده ځکه د دوی يوه "ملکه" وي چې هغه ته يعسوب وايي، دا د دې نورو مچو نه د شکل و صورت په اعتبار سره ډير غټ او ښائسته وي، هګۍ صرف دې اچوي، او اکثره بچي يې ښځې وي، او که نر بچې په کې پيدا شي نو د څه مخصوصې ډلې نه علاوه نور يا اوشړي او يا يې مړه کړي، ځکه دا نارينه بچي څه کار کسب نه کوي، نو ځکه يې نه پرېږدي.

دا مچۍ په څو ډلو تقسيم شوې وي، څه په کې د دې ملکې سره هميشه وي د ده نه نه جدا کيږي، څه په کې موم تياروي، څه په کې کورونه جوړوي، څه په کې د اُوبو راوړلو او څکوولو د پاره وي، څه په کې دا کورونه د ګندګۍ نه صفا کوي، او کومه مچۍ چې د ځان سره څه ګند راوړي نو هغه قتلوي.

د ټولو نه اول په دې ګبين (ډوب، ګګ) کې د ملکې د پاره کور جوړولې شي، د کټ او تخت په شان مربع (څلور ګوټيزه) کور ورله جوړ کړې شي، دا ملکه په هغې ناسته وي، د ده ګير چاپيره د امراؤ، خواصو او خادمانو په شکل هميشه د مچو څه ډله وي، بيا د دې مخې ته د حوض په شکل يو ځای جوړ کړې شي چې په دې کې د امچۍ صفا شهد اچوي، دا صرف د دې ملکې او خواصو مچو خوراک وي.

بيا دا مچۍ د نورو کورونو په جوړولو شروع وکړي، خپل کورونه د مسدّس په شکل داسې محکم، برابر او مضبوط جوړوي چې د يو وبښته په مقدار فرق په کې هم نه وي، هيڅ ځای په کې خالي نه وي، او د دُنيا يو انجينير هم داسې کور نشي جوړولی.

بيا دا مچۍ بهر د خوراک په تلاش پسې اوځي، لرې لرې سفر کوي، د پاکيزه ګلانو، ميوو او پاڼو نه رَس چوسي، بيا واپس خپل ځای ته راځي، لاره هم ورنه نه ورکيږي، ځکه الله ﷻ د دې لارو اِلهام او هدايت دوی ته کړی.

بيا الله ﷻ د دوی په خُله کې داسې حرارت اچولی چې کومه ميوه يا رَس دوی چوسلې وي هغه پوخ کړي، په هغې کې خوړوالي او پوخ والې پيدا کړي.

بيا يې چې کوم کور جوړ کړې وي په هغې کې يې واچوي (دا ددې دپاره چې د ژمي د پاره يې ځانله ذخيره کړي).

کله چې دا کور ډک شي نو په هغې مُهر اولګوي، او سَر يې په صفا مومو (شمع) باندې بند کړي، بيا دوی بل کور جوړ کړي، هغه هم همداسې طريقې سره د شهدو نه ډک کړي، او بره سَر يې په مومو (شمع) باندې بند کړي. بيا همداسې مسلسل نور کوز جوړوي او د شهدو نه يې ډکوي، او سَر يې په مومو بندوي.

کله چې هوا يخه شي او بهر د خوراک څه نه پيدا کيږي، نو بيا دوی په خپلو کورونو کې ناستې وي او کوم شهد يې چې جوړ کړي وي هغه خوري.

د کار په ورځو کې دا مچې سهر وختي اوځي، خوراک جمع کوي، او کومې ډلې ته چې کوم قِسم کار په حواله شوې وي هماغه کوي، او مابنام دوباره خپل کور ته راځي.

د دوی ملکه د خپل ځای نه بهر ديره نه اُوځي، او که چَکر ته يې شوق اوشي نو بيا د څه وخت دپاره بهر راووځي، نورې اميرانې او خادمانې مچې ورسره وي، په باغونو، بوټو او ګلانو باندې چکر اووهي، او بيا واپس خپل ځای ته راشي.

ددې ملکې د عجائبو نه يوه دا هم ده چې کله دې ته د يوې مچې، يا يوې خادمې، يا ددې ډوب د نِګرانې مچې د طرفه څه ضرر اورسي نو دا غصه شي، او ددې ډوب (کور) نه بهر اوځي، او چيرته لرې د اُونې په اُوچته حصه کينې (دا ددې د خفګان علامه ده).

کله چې دا نورې مچې دا اوګوري چې زمونږ مشر خو خفه شو او لاړو، نو دوی هم ټولې د هغه پسې روانې شي، دا خپل کور خالي پريږدي، ټولې ددې ملکې نه ګير چاپيره تاويږي او په ده جمع کيږي چې دډېنه د ګړې او غُنچې شکل جوړ شي.

کله چې ددې مچو مالِک (چا چې دا مچې ساتلي وي هغه) دا اوګوري چې پيتۍ خو د مچو نه خالي شوی، يا دا مالِک بل ځای ته دا پيتۍ وړل غواړي نو ددې ملکې د راضي کولو او واپس راوستو دپاره دا حيله جوړه کړي چې: يو اُوږد ډانګ راواخلي، د هغې په سَر پورې خُوشبويه پاکيزه ګلان اوتړي، دا ډانګ دې ملکې ته لږ لږ ورنزدې کوي، او ددې

سرې سره بَاجه يا بل د مستۍ پيدا کولو څه شی وي هغه هم مسلسل وهي . آخر دا چې دا ملکه راضي شي ، غصه يې ختمه شي نو راواګوځي او په دې ګلانو کيني . نورې ټولې مچۍ ددې پسې شاته روانې شي ، د مچو مالِک دا ملکه واپس هغه خپل ځای (پيټۍ) ته راوړي ، او نورې مچۍ هم ټولې واپس راشي.

د شاتو مچۍ هيڅکله په مرداره ، په خراب خوراک او ځاروي باندې نه کيني . ځکه دوی بَدبُويي او ګند نه خوښوي .

په دوی کې چې کومې ورې مچۍ وي او شهد جوړوي هغوی هميشه د هغو مچو سره جنګ کوي په کومو کې چې هيڅ نفع نه وي ، بلکه يا خوږ يې شړي ، او يا يې د ډوب نه بهر وژني ځکه که دننه يې او وژني نو بيا ګندګي جوړيږي .

دا ورې مچۍ د غټو په نسبت ډيرې زياتې خوارې کښې وي او بهترين شهد دوی جوړوي .

## د بهترين شي دشمنان زيات وي

د شاتو مچۍ په حيواناتو کې ډيره زياته نفع منده ده ، ځکه د دوی د خيټو نه چې کوم شهد راووځي په هغې کې د هر مرض شِفاء ده ، خو د خدای شان دی چې اکثر حيوانات ددې مچۍ دُشمنان دي ، دا ځکه چې داد الله ﷻ قانون دی چې کله هم د رښا او د خلقو د هدايت د پاره کوشش شوی نو په مقابله کې يې تيارې او ډير مخالفين پيدا کيږي .

دغه شان دا مچۍ هم ده چې فائده منده زياته ده خو دشمنان يې په حيواناتو کې ډير دي ، او هغه حيوانات ددې دشمنان دي په کوم کې چې اکثر هيڅ فايده نه وي . (۱)

## د شاتو مچې نه حکومتي نظم برابرول

د "اخلاق جلالي" په شرح صفحه ۲۲۴ کې ذکر دي چې د جمشيد بادشاه او ده په اولاد کې چې حکومت د زرهاوُ کلونو پورې چليدلې وُ نو دا ځکه چې دوی د خپل ټول حکومت خاکه د شهدو مچۍ د نظام نه جوړه کړې وه ، يعنی وزيران ، مشيران ، جرنيلان ،

---

(۱) شفاء العليل ص ۱۰۱ ، الطريق الی الجنة ص ۳۰۰ .

خادمين ، قاضيان وغيره دا تولنه نقشه يې د شهدو مچې د نظام په شکل جوړه کړې وه ، نو ځکه دومره اوږده زمانه يې په خاندان کې حکومت چليده . (۱)

د شهدو ددې وړې مچې دومره منظّم نظام او دومره د فائدې شي پيداکول ، دا ټول کارونه صرف ددې وړې مچې د پوهې او هوښيارتيا کار نه دی ، بلکه دا د ربّ العالمين اِلهام او حيرانوونکې کاريګري ده او د الله ﷻ د قدرت عظيم مَظهر دی .

## حيرانوونکې او د عبرت خبره

د انسان ظاهري ترقي اکثر په دې درې (۳) شيانو کې ده :

اول : دا چې ده ته بهترين ، خالصه ، صحت مند خوراک ملاؤ شي .

دويم : دا چې د فخر جامې (کپړې) ورته ملاؤ شي .

دريم : دا چې مال و دولت ورته ملاؤ شي او قيمتي شی په ګټو ورشي .

دحيرانتيا خبره داده چې دا درې واړه شيان معمولي غوندې حشرات تياروي ، ځکه د ټولو نه زيات فايده مند خوراک شهد دي چې داد شهدو مچې تياروي .

د ټولو نه ښائسته جامې د وريښمو دي چې داد وريښمو چنجې تياروي .

او د ټولو نه قيمتي شی ملغلره ده چې دا د سيپۍ چينجې د سمندر په ويخ کې جوړوي . (۲)

---

(۱) خطبات ومواعظ جُمعه ص ٦١٦ .

(۲) الحکمة في مخلوقات الله تعالى .

# د انسان په وجود کې د الله ﷻ قدرتونه او عجائب

که چيرته د انسان په وجود، او په دې کې په مختلفو اندامونو، او بيا د هريو اندام په کار کولو باندې سوچ وکړې شي نو په دې کې به انسان ته د ربِّ کائنات بې شماره قدرتونه، حکمتونه او عجائب په نظر راشي، په زړه کې به يې د الله ﷻ عظمت او لويي پيدا شي، الله ﷻ طرف ته به متوجه شي، او ايمان به يې نور هم مضبوط شي.

دغه وجه ده چې الله ﷻ فرمايي:

﴿ وَفِيٓ أَنفُسِكُمۡۚ أَفَلَا تُبۡصِرُونَ ﴾ .(۱)

ترجمه: او په خپله ستاسو په ځانونو کې هم (ډيرې نخې دي)، نو آيا تاسو دا په غور سره نه ګورئ؟ (او تاسو ته نه ښکاري؟).

نو په همدې خاطر د انسان د بدن د يو څو اندامونو تشريح درته په سائنسي، طِبِّي، او ډاکټري انداز کې کوم چې تاسو ته د انسان په دې وړوکي بدن کې د الله ﷻ عظيم قدرتونه په نظر راشي.

﴿ نوټ: که مقررين حضرات د موقع او ځای مناسب ددې آينده موادو نه ځانته انتخاب وکړي، او بيان يې کړي نو يقيني خبره ده چې د اوريدونکو په زړونو کې به د حيرانتيا سره سره د الله ﷻ عظمت او لويي هم پيدا شي، او الله ﷻ ته به متوجه شي، دغه شان په هر اندام کې به ورته د خالقِ کائنات بې شميره قدرتونه، حکمتونه، عجائب او فوائد هم په نظر راشي ﴾.

## خليات (ژوندي اجسام يا حُجره)

هر ذي روح مخلوق که هغه انسان وي، يا نور حيوانات وي هغه د خلياتو (cells) نه جوړ وي، ګويا خليه د ژوندي اَجسامو دپاره اکايي (unit) ده، خليه (يا: حُجره) ډيره وړه

---

(۱) الذاريات آيت ۲۰، ۲۱.

وي، صرف په خُورد بين (مائکروسکوپ) باندې ليدې شي، او ددې د مجموعې نه جسم جوړيږي.

د يو درميانه قد و قامت انسان جسم د يو کروړ اَرب خلياتو نه جوړ وي، په دې کې په کروړاوُ خليې روزانه ختميږي، او ددې په ځاى نورې پيدا کيږي.

په دې خليو کې د مختلف شکل او مختلفو خصوصياتو والا خليې وي، بيا که هره خليه په خُوردبين اوکتې شي نو په هغې کې ځانله پوره دُنيا آباده ده، په هره خليه کې پوره نظام حيات په پوره نظم و ضبط سره قائم وي، بلکه په هره خليه کې د خوراک او قوت حاصلولو، او د غير ضروري موادو خارجولو د پاره پوره مشينري نصَب وي، هره خليه چې قوي شي نو ددې نه دوه جوړې شي، او ټول عمر داد خلياتو د زياتيدو دا سلسله تر ځوانۍ پورې زياتيږي.

عجيبه خبره داده چې دا ټول خليات او د انسان د جسم ټول اندامونه صرف د يوې خلئيه جوړ شوي.

## سترګې

د انسان د وجود هر اندام عجيبه او حيرانوونکې دى، بيا خاصکر غوږونه، سترګې او زړه نور هم په حيرانوونکو قدرتونو مشتمل دي، الله رب العزت هم ددې خصوصي ذکر کړى

﴿ وَاللّٰهُ أَخْرَجَكُمْ مِّنْ بُطُوْنِ أُمَّهَاتِكُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ شَيْئًا وَّجَعَلَ لَكُمُ السَّمْعَ وَالْأَبْصَارَ وَالْأَفْئِدَةَ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ﴾. (۱)

ترجمه: او الله تعالى تاسو ستاسو د مورانو د خيټو نه راويستلى، په داسې حال کې چې تاسو په هيڅ شي نه پوهيدئ، او ستاسو د پاره يې غوږونه، سترګې او زړونه جوړ کړه، ددې د پاره چې تاسو شکر اداء کړئ.

لهذا سترګې د الله ﷻ په نعمتونو کې يو عظيم نعمت دى، که چيرته انسان ددې په پيدا اوښت او ددې په حکمتونو سوچ وکړي نو حيران پاتې شي.

(۱) النحل آيت ۷۸.

د سترګې وزن عام طور باندې اووه (۷) ګرامه وي، سترګه د اووه (۷) پَردو نه جوړه شوې، د هرې پردې ځانله خاصيت او صفت دی، که چيرته په دې کې يوه پرده هم خرابه شي نو سترګه بيا کار نه کوي.

بيا د سترګو نه ګير چاپيره د بڼو عجيبه چارديوالي جوړه کړې شوې، او هغوی ته تيز حرکت ورکړې شوی، ددې د پاره چې سترګه په آسانۍ سره د ضرري شي نه بچ کړي، ګويا بانړه د سترګو د حفاظت دروازې دي، چې د ضرورت په وخت کلاويږي او بنديږي، او ورسره ورسره د سترګو او مخ ښائست هم په کې دی.

بيا ددې بڼو د ويښتانو غټيدو مقدار هم په ځای اوساتلې شو، د سَر د ويښتانو غوندې ډير نه غټيږي، ورنه بيا به انسان ته تکليف وْ.

بيا په سترګو کې داسې مالګينځَنه ماده پيدا کړې شوه چې دسترګو د وينځلو او صفايي کار ورکوي.

بيا د سترګې دواړه طرفونه د مينځ په نسبت ښکته اوساتلې شو، ددې د پاره چې که چيرته په دې کې څه خطرناک شی اوغورځيږي نو په آسانۍ سره لاندې اوخوييږي.

بيا د سترګونه څلور واړه طرفه دسختو هډوکو غلاف جوړ کړې شوی، ددې د پاره چې سترګه دګوزار او نورو خطرو نه محفوظه اوساتي.

**په سترګو کې کيمرې**: په هره يوه سترګه کې ديارلس کروړه (۱۳۰۰۰۰۰۰۰) کيمرې لږيدلې وي، په دې کې شپيته لکه (۶۰۰۰۰۰۰) کيمرې صرف د رنګ پيژندلو دي، دولس کروړه (۱۲۰۰۰۰۰۰۰) کيمرې صرف د تور او سپين رنګونو خودلو دپاره دي.

او د شپې په تياره کې د کار کولو واله کيمرې ځانله دي، چې هغې ته راډز (Rods) وايي، (دغه وجه ده چې د بعضې خلقو نظر د ماښام نه روستو کار نه کوي، يعنی د شمکورتيا بيماري يې وي، داځکه چې دشپې کار کولو واله کيمرې يې خرابې وي).

د انسان په سترګه کې د رڼا قبلولو د پاره د يو کرَب نه زياتې ريشې وي، چې هغه رڼا قبلوي.

بيا که انسان د سترګو په لينزونو باندې نظر واچوي چې څومره صفا او شفاف دي، او په کومې طريقې سره ليدل کوي نو انسان حيران پاتې شي چې د سترګو دومره ناآشنا باريک

نظام، او په دې وړه سترګه کې د هغې راوستل صرف او صرف د هغه ذات کار دی چې دقدرتونو او حکمتونو خاوند دی.

چې کله په سترګه کې څه فرق راشي نو هغه ډاکټر چې پنځه ویشت (۲۵) کاله یې تعلیم کړې وي، د سترګو سپیشلسټ وي، اوږده تجربه یې وي، هغه صرف په دې پوهه شي چې په دې سترګه کې دا فرق دی او علاج یې کوي، او دده دا علاج هم د ګارنټۍ واله نه وي.

نو چې کله صرف د فرق معلومولو د پاره دومره ډیر تعلیم او تجربه ضروري ده نو نوې سترګه پیدا کول خو صرف د خالقِ کائنات نه علاوه د بل هیچا کار نه دی.

دغه وجه ده چې کله د چا سترګې ختمې شي هغه په کروړنو او اربونو روپو ورکولو ته تیار وي، خو ددُنیا یو ډاکټر هم ده ته سترګې نشي اچولی.

سبحان الله. معلومه شوه چې سترګه دا الله ﷻ د طرفه لوي نعمت دی.

## د انسان هر اندام ډیر قیمتي دی

حضرت یونس بن عبید رحمه الله ته یو چا د غریبۍ ډیر شکایت وکړو چې هیڅ سرمایه راسره نشته، او ډیر خفه وُ، ده ورته وویل: آیا ته په ما باندې دا خپله سترګه په یو لک درهم راخرڅوی؟ هغه ورته وویل: نه. ده بیا ورته بل اندام یاد کړو، چې دا خپل خې لاس راباندې په یو لک درهم راخرڅوی؟ هغه وویل: نه. دغه شان یې هغه ته یو یو اندام یادول، هغه به ویل چې نه یې خرڅوم. ده ورته وویل: ته خو هسې شکایت کوی چې د ماسره هیڅ سرمایه نشته، د تاسره خو د لکونو او کروړونو روپو سرمایه ده.

## زړه:

د ربِّ کائنات د قدرت په عجائبو کې زړه هم عجیبه مشینري ده، دا یو قدرتي پمپ دی چې ټول وجود ته وینه خوَروي، اګر چې په سائز کې د نیم پونډ برابر دی خو د الله ﷻ په عظیمو قدرتونو مشتمل دی.

په زړه کې دوه پَمپه وي: یو پَرپوس (پیرو) ته د وینې د ترسیل د پاره وي چې د هغه ځای نه اکسیجن جذب کړي، او دویم صفا وینه ټول وجود ته د خورولو د پاره وي.

د هر انسان زړه په ټول عمر کې اوسطًا دري لکه (۳۰۰۰۰۰) ټنه وينه پمپ کوي ، او دده زړه په اويا (۷۰) کاله ژوند کې څلور کربه پيرې ټوپ وهي .

ګويا په بل تعبير د اخبره مونږ په داسې ترتيب هم کولې شو چې د يو صحت مند انسان زړه په يو منټ کې اويا (۷۰) پيرې درزيږي (يعنې ټوپونه وهي) ، نو په شوا روز کې څه د پاسه يو لک پيرې درزيدل شو .

او په يو منټ کې پنځه ليټره وينه پمپ کوي ، ګويا په پنځه څلويښت (۴۵) کال ژوند کې د انسان زړه دري لکه (۳۰۰۰۰۰) ټنه وينه پمپ کوي .

د انسان د وجود ټوله وينه په دري (۳) منټه کې د زړه د لارې پمپ کيږي او تيريږي ، او دا سلسله همداسې جاري وي .

بيا ددې مشکل کار سَرته د رسولو دپاره چونکه د بجلي هم ضرورت دی نو ځکه همدا زړه د وينې پمپ کولو سره سره بجلي هم پيدا کوي .

کله چې يو ماشوم د مور په رحِم کې د څلورنيمو مياشتو شي نو دده زړه حرکت کول شروع کړي ، او تر د مرګه پورې بيا دا حرکت کوي ، ځکه که چيرته زړه د څه وخت دپاره حرکت کول بند کړي نو انسان په هماغه ځای مړ کيږي .

بيا الله ﷻ د زړه عضلات په داسې طريقې سره جوړ کړي چې دا نه ستړي کيږي او نه آرام کولو ته ضرورت لري .

بيا عجيبه دا چې د زړه کوم باريکه سُوري او مَسامات دي هغه د پَرپوس (پږو) سورو ته مخامخ دي ، دا ددې دپاره چې تازه هوا زړه ته اُورسي ، او د زړه ګرمايش او بخارات ختم کړي . ګويا داد زړه د پاره د پَکي کار کوي .

که چيرته د پَرپوس سوري د زړه سورو ته مخامخ نه وی ، او تازه هوا زړه ته نه رسيدی ، نو بيا انسان ژوندې نه پاتې کيدو .

## غوږونه

غوږ چونکه د ډيرو نازکو حصو نه جوړ شوی ، نو ځکه ددې د حفاظت په خاطر د کوپړۍ په هډوکي کې دننه ورته ځای جوړ شوی .

په هر غوږ کې يولک، (۱۰۰۰۰۰) سماعتي (تيلفوني) خانې وي چې مختلف قسمه آوازونه اَوري، او د دِماغو په مدد سره يې پيژني، چې: دا د هلک آواز دی، د ښځې آواز دی يا د حيوان، يا د بل شي آواز دی.

دا د پيژندلو کار يولک (۱۰۰۰۰۰) باريک رګونه کوي کوم چې د غوږونو دننه نه دماغو ته تللي وي.

د غوږونو دننه طرف ديوالونه يو قِسم تريخ مواد (لوندوالې او خيرې) پيدا کوي، ددې د پاره چې که چيرته څه ماشی، ميږې، يا بل خطرناک شی د انسان غوږ ته ننوځي نو ددې خيرې په وجه هلاک شي، او مخکې يې نه پرېږدي.

بيا ددې لوندوالي نه مخکې يوه پَرده ده، د هغې نه مخکې د زنځير په شان درې (۳) هډوکي دي چې د يو بل سره پيوست دي.

لکه څرنګ چې د موټر سپرنګان د موټر جَمپونه برداشت کوي نو دغه شان دا درې هډوکي هم اُوچت او سخت آوازونه نَرموي، او بيا يې دننه غوږ ته ليږي.

ځکه که دوی دا آواز په قلاره او نرم نه کړي، او همداسې تيز دننه لاړ شي نو دا غوږونو او دماغو ته نقصان ورکوي.

بيا ددې درې (۳) هډوکو نه مخکې يو طبل (د ډول په شان څيز) دی چې د هغې شاته اُوبه دي، په دې اُوبو کې د درې زره (۳۰۰۰) نه زيات واړه واړه تارونه يا وېښتان دي، کله چې آواز ددې طبل سره ولږي، نو دا تارونه اوخوزوي، هر تار يو خاص آواز په خاصې طريقې سره دماغو ته په يوه نوې لاره رسوي.

دغه وجه ده چې انسان په يو وخت کې درې زره (۳۰۰۰) آوازونه اورېدې شي.

بيا دغوږونو جوړښت د سيپي په شکل شوی، دا ددې د پاره چې آواز اول ددې په دائره کې جمع شي، او بيا ددې ځای نه اُوځي د غوږونو پَردو سره اولږي.

بيا دې غوږونو ته څه موږونه ورکړې شوي، ددې د پاره چې يو خو آواز ځان ته اوچت او صفا کړي، او دويم دا چې دننه غوږ ته کوم ضررناک شی ننوځي هغه ته لاره اُوږده شي، ځکه هر ضرري شی په موږونو نه ورخيجي، بلکه د غوږونو په دې لارو کې روان وي، نو تر

څو پورې چې دا ضرري شی په دې موږونو کې تاویږي او دننه ننوځي نو ترد هغې وخته پورې به دا سړی د غفلت نه راپیدار شوی وي، او د خپل غوږ حفاظت به وکړي.

بیا الله ﷻ د غوږونو په دې پَرده کې دومره تیزه د احساس ماده ایخې ده چې که دده غوږونو سره نزدې یو وړوکې ماشې یا بل ضررناک شی اُوبنګیږي نو ده ته پته لږي.

سړې حیران شي چې د غوږونو دومره پیچیده او غټ نظام الله ﷻ په دې دومره وړوکي ځای کې محفوظ کړی. دا هم د الله ﷻ په لویو قدرتونو او حکمتونو باندې دلالت کوي.

## دِماغ:

دِماغ د الله ﷻ په قدرتونوکې یو عجیبه تخلیق دی چې ددې په وجه د انسان ټول ژوند برابر وي، ددې په وجه انسان د ښه او خراب تمییز کوي، او د همدې د اِشارو او حُکم په وجه انسان نقل وحرکت، خبرې او نور کارونه کوي، دغه رنګې استدلال، غور و فکر کول هم د دماغو صلاحیت دی، دارنګې قوتِ حافِظه هم ده چې بې شماره شکلونه، آوازونه او نور شیان په کې محفوظ وي.

دِماغ چونکه د جسم اهمه حصه ده، دغه وجه ده چې الله ﷻ ددې حفاظت په سختو هډوکو (کوپړې) کې دننه کړی، او هډوکي ددې دپاره دمضبوطې قلعې په شکل دي.

د دِماغو مثال په شان د کمپیوټر دی، د انسان په دماغو کې دومره کنِکشَن دي چې که چیرته دا په زمکه باندې خوَاره کړې شي نو ټوله زمکه به پټه کړي، خو الله ﷻ دا د انسان په وړه کوپړۍ کې راجمع کړي.

د هر انسان دماغ د یو ملین نه زیات مخصوصو خلیو (cells) نه جوړ شوي چې هغې ته نیوران (Neuran) وایي، دا خلیې خپل خاص کار د یو کرَب نه زیاتو حساسو نرې تارونو او رګونو په ذریعه کوي، چې د دماغو نه نیولې په ټول بدن کې خواره شوي.

بعضې ماهرین وایي چې په هر انسان کې زرمیلیونه عصبي خانې دي چې ددېنه نرې تارونه اُوتي دي، او په ټول بدن کې خواره شوي دي.

د ملا تير د دِماغو نه شروع شوی تر د ملا پورې راغلی ، د دينه په سوونو رګونه په جسم کې خواره شوي وي ، لکه څرنګ چې په ټيلفون کې دوه تارونه وي : يو د پيغام وړلو ، او بل د پيغام راوړلو د پاره ، دغه شان په جسم کې هم د پيغام ليږلو او پيغام اخيستلو ځانله ځانله نري نري تارونه دي .

مثلا د انسان په خپه باندې څه خطرناک شی کيني نو فورًا د يو تار په ذريعه دماغو ته خبر ملاؤ شي ( چې په خپه باندې خطرناک شی ناست دی ) . په دې دويم تار کې د دماغو نه لاس ته حکم اوشي چې دا خطرناک شی لرې کړه .

کله چې انسان د دې شي د لرې کولو اِراده وکړي نو د بدن اووه سوه ( ۷۰۰ ) پټې په حرکت کې راشي ، او د لاس په ذريعه دا شی لرې کړي .

دغه رنګې همدا دماغ د انسان د بدن مختلفو حصو ته د وينې د ليږلو او بَندولو حکم کوي . مثلا څوک په مونږ حمله کول اوغواړي نو زمونږ دماغ د بدن هرې حصې ته ځانله ځانله حکم کوي : د دې سرې سترګې سرې شي ، اَننګي يې اوپړسيږي ، زړه يې زر زر حرکت کول شروع کړي ، د دې د پاره چې د بدن هرې حصې ته وينه په مناسب مقدار اورسي .

يا : کله چې يو سړې زخمي شي ، او د وجود نه يې وينه روانه شي نو دماغ د دې وينې د بندلو او د بدن دحفاظت حکم وکړي ، نو د وينې هغه سخت مواد کوم چې په سپينو ذرّاتو مشتمل وي ، دغه ذرّات د دې روانې وينې په ذريعه د دې زخم خُلې ته ځان اورسوي ، او په هغه ځای کې جَم شي ، تر دې پورې چې وينه راتلل بند شي .

نو دا سپين ذرّات د دې وينې د بندلو کار هم کوي ، او د قوّتِ مُدافعت کار هم کوي ، اوس که چيرته کوم جراثيم په دې زخم د بهر نه لږي هغه هم ختموي او د بدن ته يې د ننه تلو ته نه پريږدي .

## ګُردې :

ګُردې د انسان دمعدې او غټو کولمو شاته د ملا د تير خي طرف او چپ ( ګس ) طرفته دي ، د يوې ګُردې وزن تقريبًا پنځه اُونسه وي ، ګردې د جسم د پاره ډير اَهم کارونه کوي .

په یوه ګرده کښې تقریبًا لس لکه (۱۰۰۰۰۰) خُورد بیني یُونټه (حصې) دي چې شپه او ورځ وینه صفا کوي، او زهریله اجزا د جسم نه د تشو متیازو په شکل خارجوي، یعنی ګرده د فلټر پلانټ کار ورکوي (یعنی د صفایي کولو یوه کارخانه ده).

دغه رنګې ګرده په جسم کښې دوینې مقدار، د اُوبو مقدار، د معدني او غذایي اجزاؤ تناسب هم برقرار ساتي.

کله چې انسان خوراک وکړي نو اکثر په دې کښې بې کاره او زهریله جراثیم هم معدې ته لاړ شي، بیا په وینه کښې شامل شي، کوم چې ډیر خطرناک دي. د الله ﷻ شان ګوره چې د زړه نه یو غټ رګ د وینې راغلی، او د دې ګردې د لارې تیر شوی، ګرده په شوارلس کښې اته څلویښت (۴۸) لیټره وینه د دې ضَرري مادو او جراثیمو نه صفا کوي، او دا فاسده ماده د تشو متیازو په شکل خارجوي.

دغه رنګې د انسان د وجود د پاره په یو خاص مقدار کښې سوډیم، پوټاشیم، کیلشیم، میګنیشم، فولاد، شکر او نمک وغیره هم ضروري دي، خو چې کله دغه اجزا د ضرورت نه زیات شي نو ګرده بیا دغه زیاتي اجزا هم د تشو متیازو په شکل د بدن نه خارجه وي.

## وینه:

وینه د انسان د پاره داسې ده لکه د موټر د پاره چې پټرول او ډیزل وي، وینه د انسان د جسم د پاره غذا ده، د دې سره سره وینه جسم ته آکسیجن ګیس هم رسوي، او زهریله ګیس "کاربن ډائي آکسائیډ" د جسم نه خارجوي.

د وینې دا سُور رنګ د دې د سرو ذرّاتو په وجه قائم دی، دا سره ذرات د هډوکو نه پیدا کیږي، او په وینه کښې شاملیږي.

الله ﷻ د دې د پیدایش یو خاص تعداد مقرر کړی، په هر سیکنډ کښې تقریبًا یو ملین سره ذرّات ختمیږي، او د دې په ځای یو ملین نور سره ذرّات پیدا کیږي، او په وینه کښې شاملیږي، او ټول عمر دغه سلسله روانه وي.

ددینه علاوه په وینه کې سپین ذرات هم شته، چې دا سپین ذرات د نورو اجزاوُ سره د يوځاى کيدو په وجه د قوّتِ مدافعت کار کوي، يعنى جسم د جراثيمو او نورو خطرناکو شيانو نه ساتي، او جراثيم وژني.

بيا د وينې د جاري او روان ساتلو د پاره څه نور ذرات هم شته چې هغې ته پليټ ليټ ( platelet ) وايي، دا ذرات وينه مايع او جاري ساتي.

د انسان په وجود کې تقريبًا دوه چمچې شکر هم شته، په زر ( ۱۰۰۰ ) څاڅکي وينه کې يوه قطره شکر وي. دا شکر دانسان د وجود د پاره ډير ضروري دي، ځکه که چيرته شکر په وجود کې کم شي نو بيا په جسم باندې مختلف قِسمه بيمارياني حملې کوي لکه: کمزوري، رپيدل، د زړه ډوبيدل، او ددينه علاوه نورې ډيرې بيمارياني.

د هر انسان په جسم کې دده د وزن په مقدار اووه ( ۷ ) فيصده وينه وي. بيا په وجود کې چې د وينې کوم غټ او واړه ټول رگونه ناپ کړې شي نو هغه د شپيتو زرو نه نيولى تر د يو لک ( ۱۰۰۰۰۰ ) ميله لرې پورې خوَريدې شي.

## هډوکي

د هر انسان په وجود کې دوه سوه او اته څلويښت ( ۲۴۸ ) هډوکي وي ( د ا د وړو وړو هډوکو نه علاوه دي ).

صرف سَر د پنځه پنځوس ( ۵۵ ) هډوکو نه جوړ شوى په کوم کې چې غابښونه هم شامل دي، بيا د هر هډوکي شکل و صورت د بل نه جدا دى. (۱) په لاس او خپو کې يو سل او شپږ ( ۱۰٦ ) هډوکي دي.

بيا انسان په خپل ژوند کې د مختلفو ضرورياتو په وجه جسم ته د حرکت ورکولو ته هم محتاج دى، چې دې جسم ته مختلف حرکتونه ورکړي: کله کيني، کله پاڅي، کله د څه شي رانيول، کله زور کول وغيره. نو الله ﷻ ددې په خاطر د انسان په وجود کې پنځه سوه او

(۱) بيا د سر د مختلفو هډوکو د رايو ځاى کيدو نه گول ( کروي ) شکل جوړ شوى، چې د شپږو ( ٦ ) هډوکو نه کوپړى جوړه شوى، د څلورويشتو ( ۲۴ ) نه پورته ژامبه جوړه شوى، د دوه وُ ( ۲ ) نه لاندې ژامبه جوړه شوى، او دا باقي غابښونه دي.

نهه ويشت ( ۵۲۹ ) عضلات ( برخې ) پيدا کړه . ځکه که چيرته ټول جسم د يو هډوکي نه جوړ وی نو بيا به د انسان د پاره تلل ، نيول ، ښکته کيدل او پورته کيدل مشکل وو .

بيا چې د هر هډوکي نه څومره حرکت مطلوب وُ ، د هغې مطابق هغې ته شکل ورکړې شو ، دغه وجه ده چې څه هډوکي غټ دي ، څه واړه دي ، څه نري دي ، څه پلن دي . څه نيغ دي ، څه کاږه دي ، څه مستطيل دي ، څه ګول دي ، څه ډک دي ، او څه ډډ دي .

که کوم هډوکې ګول او پړسيدلې وي نو ورسره په مخامخ هډوکي کې ددې مطابق کنده جوړه شوي وي ، ددې د پاره چې دا په صحيح طريقې سره په يو بل کې ورشي .

او س که انسان کيناستل ، پاڅيدل ، تلل وغيره اوغواړي نو بغير د څه تکليف نه يې په آسانۍ سره کولې شي .

بيا په هر جسم کې الله ﷻ درې سوه او شپته (۳۶۰) جُوړونه پيدا کړي چې دا انساني جسم ته په حرکت ورکولو کې مدد کوي ، که په دې کې يو جُوړ هم خراب شي نو انسان ته ډير مشکلات جوړيږي . مثلاً که د خپو جوړونه خراب شي نو بيا تلل مشکل شي .

بيا دا جوړونه او هډوکي په مضبوطو تارونو او پټو سره تړلې شوي ، او د دوی په مينځ کې د اعصابو رِشته قائم کړې شوی .

الله رب العزت فرمايي :

﴿ نَحْنُ خَلَقْنَاهُمْ وَشَدَدْنَآ أَسْرَهُمْ ﴾ . (۱)

ترجمه : مونږ دوی پيدا کړل او د دوی جوړونه (بَندونه ) مو مضبوط کړل .

**فايده** : که انسان سوچ وکړو نو دده دا پټې او جوړونه (بَندونه ) اګر چې په ظاهره نرم او نازک معلوميږي خو الله ﷻ دا داسې مضبوط پيدا کړي چې شپه او ورځ د حرکت کولو او سخت کارونو کولو باوجود بيا هم اَتيا يا سل کاله پورې دده په بَندونو او پلو کې هيڅ فرق نه راځي ، نه ماتيږي ، او نه سُوليږي . که چيرته انسان د اُوسپنې او فولاد نه څه شی جوړ

(۱) الدهر آيت ۲۸ .

کړي نو هغه هم د يو څو کالو د استعمال نه روستو سوليږي او ماتيږي ، خو د انسان دا بَند ونه او پتې د ډير استعمال باوجود بيا هم نه سوليږي او نه ماتيږي . فَتَبَارَكَ اللهُ أَحْسَنُ الْخَالِقِيْنَ .

بيا د هر هډوکي د قوت د پاره ددې په نَلو کې مغز هم پيدا شوي چې د قوت سره سره د هډوکو په حرکت کې هم مدد کوي .

بيا غاښونه په داسې انداز باندې جوړ کړې شوي چې بعضې غاښونه پلن دي چې د خوراک ميده کولو کار ورکوي ، او بعضې په کې د تيرو سرونو واله دي چې د خوراک د کټ کولو کار ورکوي .

بيا دا غاښونه په دوه ديرش (۳۲) ټکړو کې تقسيم شوي ، ددې د پاره چې که چيرته يو خراب شي نو د نورو نه کار واخيستې شي ، ځکه که چيرته ټول يو هډوکې وی او فرق په کې راغلې وی نو بيا به خبره ډيره مشکله وه .

بيا ددې غاښونو جرړې مضبوطې جوړې کړې شوي ددې د پاره چې غاښونه د خوزيدو او غورځيدو نه محفوظ شي .

کله چې ماشوم وړوکې وي نو الله ﷻ ده ته عارضي غاښونه ورکړي وي ، خو چې غټ شي نو بيا يې دا عارضي غاښونه اوغورځيږي ، او مستقل داسې پاخه غاښونه يې رااوخيجي چې که انسان ددې حفاظت وکړي نو ټول عمر نه خرابيږي .

بيا دا غاښونه د سرو اُورو په مينځ کې په داسې انداز لږولې شوي چې د ملغلرو غوندې ښائسته معلوميږي ، او د انسان د مخ او خُلې د ښائست سبب گرځي .

بيا که چيرته په دې غاښونو باندې شونډې نه وی نو انسان به څومره بَدرنګ معلوميده ، نو شونډې د غاښونو د ښائست ، د خُلې د پاره پَرده ، او په خوراک کې د مدد کولو ذريعه ده .

خلاصه دا چې هډوکي د انسان د وجود د مضبوطتيا ، او بدن ته په آساني سره د حرکت ورکولو کار ورکوي ، چې دا ټول د ربّ العالمين په عظيمه کاريگرئ باندې دلالت کوي .

## پوستکې (څرمن)

پُوستکې هم د الله ﷻ د قدرتونو نه يوه عجيبه حيرانوونکې نښه ده ، پوستکې د ټول جسم د پاره د غِلاف په شان دی چې جسم يې پټ کړې وي ، او د بهرني خطرناکو جراثيمو نه

يې ساتي ، ځکه که کوم ځای کې پوستکې غوڅ شي نو په زرهاؤ جراثيم په دې لاره وجود ته د ننوتلو کوشش کوي .

بيا د پوستکي اوسطًا وزن څلور (۴) کلو ګرامه دی ، چې په دې کې مختلف خليې ، غدود او د وينې تلو راتلو لارې دي ، زړه چې کومه وينه نور وجود ته پمپ کوي نو په هغې کې څه حصه پوستکي ته هم راځي .

بيا په دې پوستکي کې دوه نيم لکه ( ۲۵۰۰۰۰ ) خانې داسې دي چې کله څه سخ شی ( مثلًا واوره وغيره ) محسوس کړي چې د پوستکي سره اولګيده ، نو فورًا دماغو ته خبر ورکړي ، جسم اُولړزيږي ، او د پوستکي رګونه کلاؤ شي ، فورًا ډيره وينه په تيزی سره په دې رګونو کې دې پوستکي ته راشي ، ددې د پاره چې پوستکي ته ګرمايش ورکړي ، او دا يخ والې جسم ته نقصان او نه رسوي .

او که يو انسان په ګرمۍ کې اُوځي ، او پوستکې يې ګرمي محسوسه کړي نو د ګرمۍ خبر ورکوونکې خليې دماغو ته اطلاع ورکړي ( چې په دې پوستکي باندې ګرمائش لږي ، هسې نه چې ګرمايش ورته نقصان اورسوي ) نو درې مليونه د خوَلې غدود ( Glands ) يَخه خوَله خارجول شروع کړي ،ددې دپاره چې جسم ته راحت اورسي ، او د ګرمۍ نقصان ختم شي . ګويا د خوَلې دا غدود د ائيرکنديشن کار ورکوي .

که چيرته د خوَلې دا غدود خپل کار پريږدي ، او د ګرمۍ په وخت کې کلاؤ نه شي نو انسان بيا د معمولي ګرمۍ برداشت کولو قوت نه لري .

بيا جسم داسې حساس پيدا کړې شوی چې دبهرني ماحول نه ډير زر متأثره کيږي ، او دماغو ته فورًا خبر ورکوي ، دماغ هم بيا د هغې موافق احکامات جاري کوي

## ژبه :

ژبه هم د الله ﷻ په نعمتونو کې يو لوي نعمت دی ، او د الله ﷻ د قدرتونو عظيم مَظهر دی ، ددې په ذريعې سره انسان اِظهار مافی الضّمير کولې شي ، او د زړه پټه خبره د ژبې په ذريعه بيانولې شي .

بل دا چې په ژبه باندې د خوَندونو معلوموَلو د پاره درې زره ( ۳۰۰۰ ) خانې جوړې کړې شوي چې په دې بسره انسان د هر قِسمه خوَند تمييز کولې شي ، که چيرته دا خانې نه وی نو بيا به انسان د خوږ ، تريخ ، پيکه او تُرش په مينځ کې هيڅ فرق نه شو کولی .

بل دا چې د خوراک کولو په وخت ژبه دا نوړی اَړوي راړوي او د ژامبو غاښونو ته يې ورمخې ته کوي ددې د پاره چې دا ښه ميده شي ، او تيرول يې آسان شي .

بيا په حلق کې دوه ( ۲ ) سوري دي :

يو د ساه اخيستو د پاره دی ، په دې باندې يوه پَرده ده چې د ساه اخيستو په وخت دا کلاويږي او د خوراک کولو په وخت په خپله بنديږي . ځکه که د ساه په نالی کې خوراک لاړ شي نو په انسان باندې سخت توخې اولږي او اکثر انسان ددې د لاسه مړ شي .

او دويم سوري د خوراک د پاره دی ، چې په دې لاره باندې معدې ته خوراک ځي .

## پوزه

د مخ په مينځ کې الله ﷻ پوزه په داسې ښائسته طريقې سره اوچته پيدا کړی چې په دې سره د مخ ښائست هم دی ، او ورسره په دې کې يې دوه سوري هم پيدا کړي چې په هغې کې په پورته حصه کې الله ﷻ د بُويَولو داسې حِس او ماده ايښې چې په دې سره انسان د خُوشبويي او ښو خوراکونو بُوی معلوم کړي ، او فايده ورنه واخلي ، او د بدبُويي او خرابو خوراکونو نه ځان اوساتي .

همدارنگې په دې سره انسان تازه هوا راکاږي کومه چې د زړه او نورو وجود غذا ده ، او د زړه د گرمايش ختميدو او بدن ته د راحت رسولو سبب دی .

بيا د الله ﷻ دې عظيم قدرت ته گوره چې په دې پوزه کې يې ويښتان پيدا کړه ، ددې د پاره چې که چيرته په دې هوا کې څه گرد و غبار ، يا جراثيم وي نو د ساه اخيستلو په وخت به هغه په دې ويښتانو کې بهر پاتې شي ، او دننه پَرپوس ( پيپړو ) ته به داخل نه شي .

بيا که چيرته څه جراثيم يا گرد دننه لاړ شي نو الله ﷻ د ساه په نالی کې څه رطوبت او نري ويښتان پيدا کړي چې هغه دا جراثيم راحصار کړي ، او دننه يې نه پريږدي .

خو که بيا هم جراثيم ښکته لاړ شي نو انسان پرنجي (اَنکريشي) وکړي چې په دې سره هغه جراثيم واپس بهر راووځي، ګويا پرنجې هم د جسم حفاظت کوي، دغه وجه ده چې په شريعت کې د پرنجي کولو نه پس د الله ﷻ د تعريف يعنی " الحمدلله " ويلو حکم دی.

اوس که چيرته دا جراثيم يا ګرد د پرنجي په وجه هم رابهر نه شي نو په انسان باندې ټوخې اولږي چې په دې سره دا جراثيم واپس رااوځي. سبحان الله.

بيا د پوزې دننه هډوکې باريکه جوړ کړې شوی ددې د پاره چې دا د آواز په پيدا کولو کې مدد وکړي.

# جِګر (اينه)

جِيګر داسې يوه لويه کارخانه ده، او دومره ډير کارونه کوي چې ددې مثال دُنيا نشي پيش کولی، په يوه جِګر کې په اَربونو خليې وي چې هره خليه د بلې نه مختلفه وي، جِګر په يو وخت کې پنځه سوه (۵۰۰) جدا جدا کارونه کوي، لکه: جسم د زهريله اثراتو نه محفوظ ساتي، په وينه کې د شکر مقدار معتدل ساتي، زياتي اجزاء د جسم نه خارجوي، خوراک هضم کوونکي مواد (انزائم) هم پيدا کوي، صفراء او کوليسټر برابروي، او ورسره په يو منټ کې د يو ليټر نه زياته وينه صفا کوي، ګويا په يوه ګهنټه کې شپېته (۶۰) ليټره وينه صفا کوي.

د جِګر چې کوم خليات دي په هغې کې ځنې شکر جوړوي، ځنې لحميات جوړوي، ځنې نمکيات جوړوي او ځنې وِټامن جوړوي. ددينه علاوه جِګر بې شماره کارونه کوي. حالانکه د جګر ټول وزن يو نيم يا دوه (۲) کلو ګرامه دی.

سائنس دانان حيران دي چې يو اندام دومره ډير کارونه څنګه کوي؟ دوی د ډيرو کوششونو باوجود داسې يو مشين جوړ نه کړو چې د جګر غوندې پنځه سوه (۵۰۰) کارونه په يو ځل وکړي. سبحان الله.

# تريخې

د جِګر په لاندې حصه کې تريخې دی، دا د يوې تيلۍ غوندې شی دی، د جِګر نه چې کومه صفراء (Bile) پيدا کيږي هغه په دې تيلۍ کې جمع کيږي، بيا چې کله د خوراک

هضمولو کار شروع شي نو ددې تريخې نه يو يو څاڅکې صفراء لاندې څڅيږي ، او غوړ خوراک هضموي . ددينه علاوه تريخې په کولمو کې موجوده خوراک خراييدو ته هم نه پرېږدي ، او د اُودس ماتې خارجولو تحريک هم پيداکوي .

## معده او د هاضمې نظام

د انسان په معده کې څه درې نيم کروړه داسې غدود دي چې هغه د خوراک هضمولو يوه خاصه کيميائي ماده راخارجوي . کله چې انسان خوراک کوي نو د خُلې نه د هضمولو کار شروع شي ، ځکه په لاړو کې د هضمولو ماده شته ، بيا چې خوراک معدې ته اورسي نو د ټولو نه اول ددې معدې د ديوالونو نه چې کومه تيزابي مالګه ( هائيډروکلورک ايسډ ) راووځي هغه ددې خوراک جراثيم ختم کړي ، او د خوراک هضمولو کار هم ورکوي ، ددې تيزابي مادې سره څه نور مواد هم يو ځای شي هغه دا خوراک هضم کړي .

بيا دا هضم شوې خوراک ديوې اُوږدې نالۍ په ذريعه کولمو ته داخليږي ، خو په دې لاره کې ددينه شکر ، نشاسته ، چونا ، چربي ، لحميات او نور غذائي اجزاء پاتې کيږي .

بيا دا غذايي اجزاء د همدې اُوږدې نالۍ په ديوالونو کې جذب کيږي او په وينه کې شامليږي چې د بدن اَهم ضروريات پوره کوي . او د خوراک هغه حصه چې هغه د جسم د پاره فايده منه نه وي هغه د اُودس ماتې په شکل راخارجولې شي .

**حيرانوونکې خبره** : ډيره حيرانوونکې خبره داده چې د معدې د ديوالونو نه کومه تيزابي مالګه راووځي هغه دومره قوي ده چې که هر څومره مضبوط او سخت خوراک وي ( که هغه غوښه وي ، وازګه وي يا بل سخت خوراک وي ) نو دا تيزابي مالګه په هغې باندې خپل اَثر کوي او هضموي يې ، خو ليکن د معدې خپل پوستکې اګرچې نرې دی خو په دې باندې هيڅ اَثر نه کوي ، او ديته نقصان نه ورکوي ، دا ځکه چې د معدې په پوستکي باندې يو قِسم غوړ والې او ليس داره ماده پرته ده چې د هغې په وجه دا تيزابي مالګه په هغې باندې هيڅ اثر نه کوي .

انسان چې د معدې او هاضمې دې پيچيده نظام ته اوګوري نو حيران پاتې شي . يقيني خبره ده چې دا د ربّ العالمين هغه عظيمه کاريګري او قدرتونه دي چې د الله ﷻ په وحدانيت او عَظمت باندې دلالت کوي .

## خلاصه

خلاصه دا چې د انساني بدن د جوړښت ، او د هر اندام په مختلفو کارونو کولو کې د الله ﷻ د قدرت بې شماره نخې دي .

دا خو مې درته د بدن د يو څو مشهورو اندامونو په باره کې سَر سَرې د الله ﷻ قدرتونه بيان کړه ، که د بدن په هره هره پُرزه کې د الله رب العزت قدرتونه ، حکمتونه او فوائد بيان کړې شي نو د دينه به په څو څو جلدونو کې کتاب جوړ شي .

او څومره چې د يو اندام متعلق سائنسي انکشافات کولې شي ، او د دې کارونه او حکمتونه بيانولې شي نو هماغومره په انسان باندې د الله ﷻ قدرتونه نور هم ښکاره کيږي ، او په زړه کې يې د الله ﷻ عظمت نور هم پيدا کيږي .

بيا عجيبه داده چې دا ټول وجود او دا ټولې پُرزې صرف د معمولي نطفې د منې نه پيدا شوي .

معلومه شوه چې د انسان دا وړوکې بدن ، او په دې کې دا مختلف باريکې او قوي پُرزې د ربِّ کائنات د قدرتونو او حکمتونو ښکاره دليل دی .

# د انساني جسم متعلق ډېر حيرانوونکي معلومات

* د هر انسان په جسم کې درې لکه رګونه وي چې په ټول وجود کې خواره شوي دي.

* د دې رګونو پيغام دومره تيز دی چې په هر سيکنډ کې د څلور ميله په رفتار دی، نو دا په يوه ګهنټه کې د څوارلس زره او څلور سوه (۱۴۴۰۰) ميله په رفتار شو، اوس که يو سړی ګرمې سکروټې له ګوتې ور وړي نو د يو سيکنډ په سلمه (۱۰۰) حصه کې دا خبر دماغو ته اورسي، دماغ ورته د ګوتې راديخوا کولو حکم وکړي، نو انسان خپلې ګوتې د سکروټې نه را لرې کړي.

* انسان په يو منټ کې د شپاړس (۱٦) نه نيولې تر د اتلس (۱۸) پيرو پورې ساه اخلي، ګويا په شوا روز شپږ ويشت زره (۲٦۰۰۰) پيرې ساه اخلي.

* بيا په هره ساه اخيستو کې د پنځه ويشت (۲۵) نه نيولې تر د ديرش (۳۰) اِنچه پورې هوا دننه ځي، دا هوا د پړپوس (پيپړو) په پنځلس (۱۵) مربع فُټه ځای کې چکر لګوي.

* د انسان په پړپوس کې څه شپږ لکه (٦۰۰۰۰۰) واړه واړه د هوا سوري دي يعنې يو قِسم بَټۍ دي، او هوا د دې د پاره خشاک دی.

* د انسان پړپوس (پيپړې) په ټول عمر کې اوسطا پنځوس کروړه پيرې کلاوېږي او بنديږي. د دُنيا د ټولو نه مضبوط مشين هم دومره د مشقت واله کار نشي برداشت کولی، او نه بغير د څه مرمت نه دومره اُوږده زمانه کار کولې شي.

* د پړپوس د معمولي کلاويدو په وخت په دې کې يو ګيلن هوا ځائيږي، ګويا په يوه ورځ کې انسان د ساه اخيستو په ذريعه باندې څوارلس زره او څلور سوه (۱۴۴۰۰) ګيلنه هوا راکاږي.

* د انساني جسم د پاره روزانه د پړپوس په ذريعه پنځلس سوه (۱۵۰۰) معکب اِنچه، او د پوستکي په ذريعه درې سوه (۳۰۰) معکبه صفا هوا ضروري ده، چې الله ﷻ يې په خپلو قدرتونو سره هر چاته پوره کوي.

* د هر انسان په يو اِنچ پوستکي کې درې نيم (۳۵۰۰) مسامات وي، او په ټوله څرمن کې د هوا تلو راتلو د پاره دوه لکه (۲۰۰۰۰۰) واړه واړه سوري وي.

* د انسان په جسم کې چې روزانه څومره بجلي پیدا کیږي په هغې سره دوه ویشت (۲۲) سيره وا وره وِيلې کيدې شي.

* هر انسان روزانه د تشو متيازو او خَوَلو په شکل د سلو (۱۰۰) نه نيولې تر دوه سوه (۲۰۰) تولو پورې اُوبه د جسم نه بهر اوباسي.

* د انسان زړه په یو کال کې درې کروړه (۳۰۰۰۰۰۰۰) پيرې درزيږي (يعنې ټوپونه وهي)، او وجود ته صفا وينه پمپ کوي.

* د تللو په وخت چې کله انسان قدم اوچتوي نو په يو سيکنډ کې د انسان پنځه څلويښت (۴۵) پټې استعماليږي.

* د ځوان او صحت مند انسان د دِماغو وزن او سطًا پنځه څلويښت (۴۵) اُونسه وي، په دِماغو کې بې شماره رګونه وي، دا رګونه سره د نورو ټولو شاخونو تقريبًا د يو کروړ نه زيات دي، دا ټول رګونه د جاسوسۍ او اِطلاع ورکولو کار ورکوي، چې د جسم په هر قسمه حرکت کولو سره فورًا دماغو ته خبر رسي.

* د انسان سترګې په يو کال کې کم از کم څلويښت لکه (۴۰۰۰۰۰۰) پيرې کلاويږي او بنديږي.

* د انسان زړه عام طور باندې شپږ (٦) اِنچه اُوږد وي، دا په يو منټ کې اويا (۷۰) پيرې حرکت کوي (يعنې ټوپونه وهي)، او په هره پيره ټوپ وهلو کې دوه نيم اُونسه وينه وجود ته خوَروي، ګويا په درې (۳) مِنټه کې د انسان د وجود ټوله وينه د زړه د لارې يو پيرې تيريږي.

* پړپوس (پيپړې) د سينې په خَلاء کې دواړه طرف واقع دي، دا د اَسپنج په شکل وي. د خي طرف پړپوس وزن شپږ سوه او پنځه ويشت (٦۲۵) ګرامه وي، او د چپ طرف پړپوس وزن پنځه سوه او اووه شپيته (۵٦۷) ګرامه، او د سړي د پړپوس وزن اکثر د ښځې د پړپوس نه درُوند وي.

* پړپوس چې کله کلاؤ شي نو په دې کې درې زره او اووه سوه (۳۷۰۰) سي سي خَلا پيدا کيږي. نو په يو ځل ساه اخيستو سره پنځلس سوه (۱۵۰۰) سي سي هوا دننه ځي او واپس راووځي.

* د ګردو خاص کار دادی چې په وینه کې کومې ګنده اُوبه او ضرري اَشیاء دي هغه د وینې نه راجدا کړي ، او د تشو متیازو په شکل یې د بدن نه خارجوي ، ځکه که ګرده دا ضرري اشیاء د وینې نه راجدا نه کړي نو خطرناکې بیمارياني د دینه پیدا کیږي .

* په هر انسان کې د اَس اوومه ( ۷ ) حصه طاقت موجود وي .

* د انسان جسم په دیرش کروړه ( ۳۰۰۰۰۰۰۰۰ ) کیمیاوي اجزاؤ مشتمل دی ، که دد غه اجزاؤ بیان په الفاظو سره ولیکلې شي نو د دینه به لس زره ( ۱۰۰۰۰ ) کتابونه جوړ شي .

* د هر انسان وینه په سلو ( ۱۰۰ ) ورځو کې د ننه مکمل بدلیږي .

* د ناست سړي زړه په یو منټ کې یو اویا ( ۷۱ ) پیرې درزیږي ، د ولاړه کس یو اتیا ( ۸۱ ) پیرې درزیږي ، او د ملاست کس شپږ شپیته ( ٦٦ ) پیرې درزیږي .

* د صحت مند انسان زړه په یو پیره ساه اخیستلو دوران کې څلور ( ۴ ) پیرې درزیږي .

* د انسان د زړه اوسطا وزن تقریبا دولس ( ۱۲ ) اونسه دی .

* په یو عام انسان کې شپږ ( ٦ ) پونډه وینه وي ،

* په وینه کې یو شپیته فیصده ( ٦۱ % ) اُوبه وي ، او په ټول جسم کې پنځه شپیه فیصده ( ٦۵ % ) اُوبه وي .

* د روغ سړي په سَر باندې تقریبا پنځه زره ( ۵۰۰۰ ) ویښتان وي ، او په ټول وجود کې پنځه لکه ( ۵۰۰۰۰۰ ) ویښتان وي ، ویښتان په ګرمۍ کې زیات او په یخنۍ کې کم غځیږي .

* د سړي د دماغو وزن اوسطا ۱۵.۲۱ اونسه وي ، او د ښځې ۱۴.۵۲ اونسه وي .

* کله چې انسان خبرې کوي نو دده د بدن یو سل اویا ( ۱۷۰ ) عضلات حرکت کوي .

* د انسان اندامونه د پنځه ویشت ( ۲۵ ) کالو نه روستو بیا نه غځیږي .

* د انساني جسم نیمه حصه په عضلاتو مشتمله ده .

* د هر انسان په وجود کې دوه سوه او اته څلویښت ( ۲۴۸ ) هډوکي وي ، پنځه سوه او اویا ( ۵۷۰ ) پټې وي ، درې سوه او شپیته ( ۳٦۰ ) رګونه وي ، او درې سوه او نوي ( ۳۹۰ ) وریده وي .

* دانسان په وجود کې بعضې اندامونه مختلف کارونه کوي لکه بعضې خوراک پخوي ، بعضې ورنه جوهر اوباسي او د بدن حصه یې جوړوي ، بعضې وینه په غوښه

بدلوي، بعضې په خوراک کې تیزاب یو ځای کوي ، بعضې هډوکي مضبوطوي ، بعضې اعصاب او پټې جوړوي ، بعضې په کې د جسم نه ګنده اجزاء بهر راأوباسي ، بعضې په کې زخمونه جوړوي ، بعضې په کې په جسم باندې ویښتان راخیجوي ، بعضې په کې غابښونو ته سپین والې او وینې ته سُور والې ورکوي .

* بیا د انسان په جسم کې څلور اَرکان دي چې هغه اُور ، هوا ، خاوره او اُوبه دي .

څلور په کې اجزاء دي چې هغه صفراء ، خون ، بلغم او سَودا دي .

* د یو عام انسان په وجود کې دومره اُوبه وي چې لس (۱۰) ګیلنه ورنه ډکیږي .

دومره اُوسپنه په کې وي چې یو وړوکې میخ ورنه جوړیږي .

دومره چَربي په کې وي چې د هغې نه د صابون اووه (۷) ډنډې جوړیدې شي .

دومره چونه په کې وي چې په دې سره د یوې مرغۍ جاله چونه کیدې شي .

دومره فاسفورس په کې وي چې ددینه د دوه زره او دوه سوه (۲۲۰۰) ډَبو تیلي تیاریدې شي .

دومره کاربن په کې وي چې ددینه نهه زره (۹۰۰۰) د رَنجو پنسلونه (سلایان) تیاریدې شي . او څه اندازه په کې ګندهک او میګنشیا هم شته .

* د انسان په پرپوس کې چې د هوا کومې نالۍ تللي راغلي ، په سعودي عرب کې د هغې تصویر په کمپیوټر باندې اخیستل شوی نو هغه د کلمه طیبه " لااله الا الله محمد رسول الله " په شکل باندې جوړې شوي ، چې دا د الله ﷻ د وحدانیت او د رسول الله ﷺ د رسالت ښکاره ثبوت دی .

**فایده** : سبحان الله . دا د انسان په جسم کې د الله ﷻ د قدرت عجیبه نخې دي چې په اوریدو یې انسان حیرا ن پاتې شي ، په زړه کې یې د الله ﷻ عظمت پیدا کیږي ، او انسان په دې نتیجه رسي چې دا انسان الله رب العزت عبث نه دې پیدا کړی بلکه د یو مقصد د پاره یې پیدا کړی چې هغه د الله ﷻ عبادت دی .

ریښتیا ده چې الله تبارک وتعالی فرمایي :

﴿ وَفِيٓ أَنفُسِكُمۡۚ أَفَلَا تُبۡصِرُونَ ﴾ .(۱)

ترجمه : او په خپله ستاسو په ځانونو کې هم (ډيرې نخې دي) ، نو آيا تاسو دا په غور سره نه ګورئ ؟ (او تاسو ته نه ښکاري ؟) .

بل ځای الله ﷻ فرمايي :

﴿ سَنُرِيهِمۡ ءَايَٰتِنَا فِي ٱلۡأٓفَاقِ وَفِيٓ أَنفُسِهِمۡ حَتَّىٰ يَتَبَيَّنَ لَهُمۡ أَنَّهُ ٱلۡحَقُّۗ... ﴾ .(۲)

ترجمه : ډير زر به مونږ دوی ته د خپل قدرت نخې په خواوُ شا دُنيا ، او د دوی په نفسونو کې هم اوښايو ، تر دې پورې چې دوی ته دا واضحه شي چې دا (کتاب) حق دی .

## دعا

الله ربّ العزت دې مونږ او تاسو ته هم په مخلوقاتو د تفکر او تدبّر کولو توفيق راکړي ، او الله ﷻ دې زمونږ د بصيرت سترګې هم کلاوُ کړي چې په هر شي کې راته د پروردګار دا عظيم قدرتونه او حِکمتونه په نظر راځي ، او زمونږ زړونه دې الله ﷻ د خپل عظمت او معرفت نه ډک کړي ، او د هغه د عبادت کولو توفيق دې رانصيبه کړي .

آمِيْن يَارَبَّ الْعَالَمِيْن .

وَآخِرُ دَعْوَانَا أَنِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ

---

(۱) الذاريات آيت ۲۰ ، ۲۱ .

(۲) حم السجده آيت ۵۳ .

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

# خوشخبري

ډيرو ملګرو او علماؤ راته دا مشوره راکړې که په همدې انداز باندې د تقريرونو دا سلسله جاري اوساتلې شي ، او په اهمو موضوع ګانو باندې دغه شان ليکل اوشي نو فايده به يې ډيره زياته وي .

**لهذا زه يو ځل بيا اهلِ علمو ، خطيبانو او ددې کتاب مينه والو ته دا خوشخبري اوروم چې اِن شاء الله په همدغه انداز باندې به بل جلد هم ليکم چې هغه به هم په نزدې وخت کې چاپ شي .**

خو هغه به په دې نوم باندې نه وي ، بلکه آينده راتلونکي جلدونه به په بل نوم وي، شائقين حضرات بيا د ټيليفون په ذريعه معلومات ترلاسه کولې شي .

**ابوالشمس نورالهدیٰ عفی عنه**

**نوټ : که د کتاب متعلق يا بله څه مفيده مشوره وي نو په دې نمبر رابطه کولې شئ .**

**موبائل نمبر : ۰۳۰۶ ۵۴۴۷۱۷۴**

**نوټ:** دا خُطبه د تقریرونو نده بلکه دا صرف شوقا لیکل شوی

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

## د بَرَاعَةُ الإسۡتِهۡلَالُ واله خُطبه

١. اَلۡحَمۡدُ لِلّٰهِ الَّذِيۡ خَلَقَ الۡاَرۡضَ وَالسَّمٰوٰتِ الۡعُلٰى
وَشَرَّفَ الۡمُؤۡمِنِيۡنَ بِالنُّوۡرِ الَّذِيۡ هُوَ نُوۡرُ الۡهُدٰى

٢. وَالصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ عَلٰى مُحَمَّدٍ هُوَ حَبِيۡبُ اللّٰهِ وَ شَمۡسُ الۡهُدٰى
وَعَلٰى آلِهٖ وَاَصۡحَابِهِ الَّذِيۡنَ فَازُوۡا بِالدَّرَجَاتِ الۡعُلٰى

٣. ثُمَّ اَحۡمَدُ اللّٰهَ بِاَنۡ وَفَّقَ الۡعُلَمَاءَ لِخِدۡمَةِ الشَّرِيۡعَةِ الۡغَرَّاءِ
اَلَّذِيۡنَ يَعِظُوۡنَ لِاِصۡلَاحِ النَّاسِ بِالۡوَعۡظِ الۡمُدَلَّلِ وَالۡخُطَبِ الۡفُصۡحٰى

٤. وَيُبَيِّنُوۡنَ مَسَائِلَ الدِّيۡنِ بِطَرِيۡقِ الۡاَسۡئِلَةِ وَالۡاَجۡوِبَةِ الۡفَاضِلَةِ الۡحُسۡنٰى
وَيَجۡتَهِدُوۡنَ لِتَشۡحِيۡذِ الۡاَذۡهَانِ الۡكَامِلَةِ فِيۡ فَهۡمِ الۡكَلَامِ الۡمُغۡلَقِ وَالۡمُعَمّٰى

**د خُطبې ترجمه** : ١. ټول تعریفونه الله ﷻ لره دي چاچې زمکه او اُوچت اسمانونه پیدا کړي، او مشرّف کړي یې دي مؤمنان په هغه رڼا سره کومه چې رڼا د هدایت ده (یعنی الله ﷻ مؤمنان د هدایت په رڼا سره مشرف کړي) .

٢. او درود و سلام دې وي په محمد ﷺ باندې کوم چې د الله ﷻ محبوب او نمر د هدایت دی، او درود وسلام دې وي په اولاد او صحابهؤ د نبي علیه السلام باندې کوم چې په اوچتو مرتبو کامیاب شوي.

٣. بیا زه د الله ﷻ حمد بیانوم په دې باندې چې الله رب العزت علماؤ ته د روښانه شریعت د خدمت توفیق ورکړې، کوم علماء چې د خلقو د اِصلاح د پاره د مُدَلَّل وعظ او فصیحه تقریرونو په ذریعه نصیحت کوي.

٤. او دغه علماء بیانوي خلقو ته د دین مسائل په طریقه د بهترین سوال او جواب سره، او دوی د کامل ذهنونو تیزولو د پاره د پیچیده او مُعمّی کلام په معلومولو کې پوره کوشش کوي

نُورالهدی ، محمد ، حبیبُ الله ، شمسُ الهدی ، احمد .
اِصلاحي مُدَلّل تقریرونه ، اَلاسئلة والاجوبة الفاضلة لِتشحیذِ الاذهان الکاملة.

